اِنَّ من الشعر لحکمة ★ واِنَّ منَ البیان لسحرا

د ټول علم معانی لپاره یوه په زړه پوری تحفه

# خلاصة المعانی

له افاداتو د جید عالم

مولوي **محمد اجمل** خان صاحب دامت برکاتهم

تألیف

## حافظ ملا شمس الله

تطبیق القواعد المعانیة علی الایات القرانیة

ترتیب او تزین:

مولوی رحمت الله آغا ذاکري




ناشر

نور القرآن

خپرندویه ټولنه

0310-8065735

إِنَّ من الشعر لحكمة وإِنَّ منَ البيان لسحرا

دټول علم معانی لپاره یوه په زړه پوري تحفه

# خلاصة المعانى

له افاداتو دجيد عالم مولوي **محمد اجمل** خان صاحب دامت بركاتهم

تألیف :

حافظ ملا **شمس الله**

| تطبيق القواعد المعانية على الايات القرانية |
|---|

ترتیب او تزین: مولوی رحمت الله ذاکري

**نورالقران خپرندویه ټولنه کاسي روډ کوټه**

# دکتاب پیژندنه


نوم خلاصة المعانی

له افاداتو د جید عالم مولوي **محمد اجمل** صاحب

مؤلف حافظ ملا **شمس الله** ترینکوټي

کمپوزر او مرتب مولوی **رحمت الله** اغا خلیل ﴿ذاکري﴾

کمپوز چاري دنور القران اداري د کمپوز او خپرني څانګه

تصحیح خپله مؤلف

خپرندوی نور القران خپرندویه ټولنه کاسي رود کوټه

چاپ کال اول چاپ ۲۰۱۹- ۷- ۲۷ دویم چاپ ۲۰۲۱/ ۳ /۲۶ میلادي




دنور القران اداري دتلیفون شمېره ۰۳۱۰۸۰۶۵۷۳۵

# تقریظ

بسم الله الرحمن الرحیم

**شیخ الصرف والنحو والمعانی مولوی محمد اجمل خان حفظه الله**

د تلخیص المفتاح له اهمیت څخه محترم استاذان ښه
خبر دی که محنت او کوښښ سره وطالب العلم ته وویل شی
نو به علم معانی کی به کما حقه لار ښیونه ورته وشی
ملا حافظ شمس الله د دی کتاب شرح خلاصة المعانی
ترتیب کړی ده ما دی شرحی مختلف ځایونه وکتل
ماشاء الله ډیره بهترینه شرحه ده
دعاکوم چی الله تعالی دی دا شرحه زما او ملا شمس الله لپاره
د خلاصون سبب وگرځوی
امین ثم امین

محمد اجمل عفی عنه .

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

رب يسّر ولا تعسّر وتمّم بالخير وبک نستعين يا فتاح يا علی :

## خطبة الكتاب

## اول سبق

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**الحمدلله على ما انعم وعلّم من البيان ما لم نعلم :**

فائده: هر ځای چي د کتاب په سر کي حمد راغلي نو په دې حمد کي به څلور شيان وي :
هغه څلور شيان دا دي: حامد، محمود، محمود به، محمود عليه :
١-: حامد هغه سړي ته وايی چي حمد بيانوي ٢-: محمود هغه سړي ته وايی چي دچا حمد بيانيږي ٣-: محمود به هغه الفاظو ته وايی چي په هغه الفاظو باندي دمحمود حمد بيانيږي ۴ محمود عليه هغه وجه هغه علت ته وايی چي د کومي وجي دچا حمد بيانيږي :
مثال ته دالله جل جلاله تعريف کوي( هُوَ اللّٰهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى )
تا دالله جلاجلاله ستاينه وکړه نو ته حامد يې الله جل جلاله محمود دئ دغه توري چي تا دالله جل جلاله ستاينه په وکړه دا محمود به دئ د څه وجي چي ته دالله ستاينه کوي دغه وجه چي پر تا باعث ده دې ته محمود عليه وايی :
فائده: کله کله محمود به او محمود عليه سره متحد سي مثال يو سړي مشر دئ زما ډير خدمت کوي زه طالبانو ته وايم مشر ډير خادم سړي دئ نو زه حامد يم مشر محمود دئ دغه توري چي مشر ډير خادم سړي دئ دا محمود به دئ د کومي وجی چي زه دده تعريف کوم چي خدمت دئ هغه محمود عليه دئ نو محمود به او محمود عليه يو شي سو کله کله محمود به او محمود عليه سره جلا سي مشر زما ډير خدمت کوي زه ملا کمال ته وايم مشر ډير ښه سړی دې ګوره هغه علت او باعث په ما باندي چي زه د مشر تعريف کوم هغه خدمت

دي او زه يې ستاينه کوم په دې تورو چې مشر ډير ښه سړی دی نو محمود به او محمود عليه سره جلا سوه دمحمود عليه دپېژندلو طريقه که چيري په ترکيب کي محمود موصوف واقع سو او دمحمود صفت بيان سو نو داصفت به محمود عليه وي حمد راغلي محمود راغلي دمحمود بعد على راغلی نو دعلی وروسته به محمود عليه وي مثال) **الحمد لله رب العلمين** دلته (**رب العلمين**) محمود عليه دئ ځکه دا صفت دئ دالله بل مثال **الحمدلله الذی أحکمَ فی کتابه اصول الشرعية** دلته لله په ترکيب کي موصوف دئ الذی احکم الخ صفت دئ بس هم دغه صفت محمود عليه دئ بل مثال الحمد لله على ما انعم دلته على ما انعم محمود عليه دئ ځکه موږ وويل چي حمد راسي بيا محمود راسي بيا على راسي دعلى وروسته به محمود عليه وي.

## دويم سبق

الحمد لله : علامه تفتازانی په مطول کی دحمد تعريف داسی کړی دئ :هو الثناء بااللسان على الجميل الاختياری على قصد التعظيم سواء تعلق با لفضائل او با لفواضل يوه خبره په ثناء کی کوو: دوی خبری په اللسان کی کوو يوه خبره په اختياري کي کوو يوه خبره کوو پر قصد دتعظيم باندی : يوه خبره کوو پر فضائل او فواضل باندی :
اوله خبره په الثناء کی د ثناء ذاتی تعريف ذکر دخير په ژبه سره :
په اللسان کی دوی خبری کوو : اوله خبره په اللسان کی پوښتنه ذکر دلسان لغو او مستدرک دی ځکه لسان په ثناء کی سته لهذا دلسان قيد ته ضرورت نسته جواب علماء ددی ډير جوابونه ورکوی خو موږ به دری جوابونه ورکړو اول جواب صاحب الکشاف : او صاحب اللباب وائی د ثناء په تعريف کي قطعًا دلسان قيد نسته :صاحب الکشاف صاحب اللباب وايی دثناء تعريف دادی هو الاتيان بما هو مشعر التعظيم : ګوره دثناء په تعريف کی دلسان قيد نسته لهذا دلسان قيد لغو او مستدرک نه دی : دوهم جواب منم چی دلسان قيد په ثناء کی سته عبد الحکيم سيالکوټي تقريبًا غالبًا ددی جواب داسی ورکوی دلسان قيد مى ځکه راوړی چی تا کی تنصيص تصريح با لمورد وسی په اول وهلت کی متکلم تاته دادرښکاره کړی چی واوره دحمد مورد لسان دی : دريم جواب ذکر دلسان تصريح بما علم

ضمنًا دی : دوهمه خبره داده الله جل شانه دصحابه تعریف کوی مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللهِ وَرِضْوَانًا :
الله جل شانه دصحابه تعریف کوی الله جل شانه دانبیاء تعریف کوی الله جل شانه دعامو مؤمنانو تعریف کوی :نو ته به یو وار الله لره لسان ثابتوی او حال دادی الله لره لسان نسته نو ددی دا معنی الله جل شانه چی دچا ستاینه کوی دا حمد نسی جوړیدای ددی دپاره عبد الحکیم السیا لکوټی جواب ورکوی دباللسان څخه دغه جارحه یعنی دغه عُضو دانسان چی قوة گویایي دنن پکښي ده دغه دغوښي ټکړه نه ده مراد بلکي ددې څخه دقوة گویایي یعنی دوینا قوة مراد دئ نو دا معنی هو الثناء ذکر دخیرکول باللسان په قوة گویایي سره ما یلیق بشانه دهر چا خپل شان وي بله خبره ده په اختیاري کي دالله جل جلاله بعض داسي صفات دي چي هغه ته صفت ذاتي وایي لکه الله جل جلاله قدرت لري علم لري دالله جل جلاله دغه صفات دمخلوق سره هیڅ تعلق نه لري داصفات دالله جل جلاله څخه صادریږی بالاضطرار لا بالاختیار اوس که ما دالله ستاینه کول چي هو عالم الله عالم دئ إِنَّ اللهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ الله پر هر شي باندي قادر دئ نو ددې دا معنی چي دادئ په حمد کي را نه سي او حال دادئ چي دا بالاتفاق حمد دئ ددې دپاره موږ جواب ورکوو چي په بالاختیار کي یاء دنسبة ده نو دا معنی هُوَ حمد چي دئ الثَّنَاءُ ذکر دخیر کول باللسان په خپل قوة گویایي سره عَلَى الْجَمِيل په ښه صفت الاختاري دا سړی به په ښو صفاتو کي مختاره وي نو قدرت او علم چي الله جل جلاله لري دا بل چا نه دئ ورکړی دا دده خپل ذاتي صفات دي نو په اختیاري کي دواړه صفات راځي که اختیاري دئ که اضطراري دئ بعض علماء دا جواب ورکوي په اختیاري کي دي یاء دنسبت نه وي دالله صفات که څه هم اضطراري دي خو پر منزله داختیاري دي:
(سواء تعلق بالفضائل او بالفواضل) عبدا لحکیم لیکلي وایی سواء تعلق بالفضائل او بالفواضل دتعریف حصه نه ده ولي تعریف دا کار کوي چي معرف محدود تا ته تصویر کړي په دماغ کي تعریف ددې دپاره نه راځي چي تا ته په محدود کي تعمیم وکړي خو دا قید دتعریف دپاره صرف مُمید دئ یعنی مدد ورسره کوي :

فضائل جمع دفضيلة ده ، فضائل هر هغه خوی دمحدود ته وایی چي تعدية پکښي نه وي :
فواضل: جمع دفاضلة ده فواضل هر هغه خوی ته وایی چي په ده کي تعدية ملحوظ وي
علم معلوم نه وو هم الله پاک عالم وو دعلم په مفهوم کي چي معنی کشف کول تعدية نه سته
که څه هم په نفس الامر او واقع کي دعلم تحقق به غير دمعلومه نه راځي هم دا رنګه قدرت
دالله پاک دقدرت په مفهوم کي تعدية نه سته الله جل جلاله مُحيي او مُميت دئ يعنی الله
جل جلاله سړي ته ژوند ورکوي سړي ته مرګ ورکوي الله جل جلاله مُنعم دئ پر سړي
انعامات کوي دمحيي مُميت منعم په مفهوم کي تعديه سته.

## دریم سبق

**الشکر: دشکر تعریف هو فعل يُنبئ عن تعظيم المنعم بسبب الانعام سواء کان بأللسان او بألجنان او بألارکان :**

شکر يو فعل دئ داسي فعل چي اګاهي ورکوي دمنعم له تعظيم څخه په سبب دانعام مثال
ته ناست يې استاذ راغلي ته ورته ولاړ سي اوس دا ستا ولاړه يو فعل دئ چي اګاهي
ورکوي دلويي دمنعم ځکه ده پر تا انعام کړئ دئ.

دشکر اصطلاحي معنی : **صرف العبد جميع ما انعم الله تعالی الی ما خلق لاجله** ترجمه
استعمالول دبنده ټول هغه نعمتونه چي الله پاک پر ده کړي دهغه شي دپاره دکم شي دپاره
چي پيدا سوي دئ مثال سترګي الله پاک درکړي دي نو مور او پلار ته درحمت په نظر ګوره
قران ته ګوره مسجد ته ګوره نورو ښو کارونو ته په ګوره او س که ته سترګي په دې ځايو
کي استعمال کړې نو شکر دئ او که ته سترګي په فيسبوک کي استعمال کړې يا په ټيوي
کي استعمال کړې يا يې په نورو غلطو ځايو کي استعمال کړې نو نا شکرې ده ولي سترګي
چي الله دکوم ځای دپاره پيدا کړې دي هلته ده استعمال نه کړې :

## نسبت په مابين دحمد او شکر کي

نسبة په مابين دحمد او شکر کي دحمد يو مورد دئ يو يې متعلق دئ دشکر يو مورد دئ
يو يې متعلق دئ :

دحمد مورد يوازي ژبه ده دشکر مورد درې دي ۱- ژبه ۲- زړه ۳- انداموته نو شکر اعم مطلق دئ تر حمد په اعتبار دمورد دحمد متعلق عام دئ ونعمت او غیر نعمت ته دشکر متعلق خاص دئ دشکر متعلق یوازی نعمت وي نو حمد اعم مطلق دئ تر شکر په اعتبار دمتعلق شکر اخص مطلق دئ ترحمد په اعتبار دمتعلق حمد اخص مطلق دئ تر شکر په اعتبار دمورد دحمد اوشکر په موردینو کي نسبة دعموم خصوص مطلق دئ شکر اعم مطلق حمد اخص مطلق دحمد او شکر په متعلقینو کي نسبة دعموم خصوص مطلق دئ حمد اعم مطلق شکر اخص مطلق لیکن دحمد او شکر په مابین کي نسبة دعموم خصوص من وجه ده دوې مادې دافتراق غواړي یوه ماده داجتماع غواړي حمد به وي شکر به نه وي شکر به وي حمد به نه وي شکر او حمد به دواړه وي الله سبحانه دایوب علیه السلام تعریف کوي نِعْمَ الْعَبْدُ اِنَّهٗ اَوَّابٌ اِنَّا وَجَدْنَاهُ صَابِرًا ، دا حمد دئ شکر نه دئ نو ماده دافتراق ده راځي دحمد تعریف ورباندي صادق کړو، لهذادا ثناء ده باللسان په ژبه سره که ته سوال وکړې چي الله جل جلاله لره لسان نه سته جواب الله جل جلالة لره لسان سته کما یلیق بشانه په ښه صفت سره ځکه اَوَّاب او صابر دواړه ښه صفات دي اختیاري دي دنعمت او احسان په مقابل کي نه دي یو صحابي دئ نوم یې صُهَیب دئ عمر رضي الله عنه ته ډېر خوند ورکوي عمر رضی الله عنه وائی نعم المرء صهیب لو لم یَخفِ الله لم یعصِ صهیب ځونه ښه سړی دئ که دخدای ځخه نه بېریدای گناه به یې نه وای کړې دا حمد دئ ځکه په مقابله کي دنعمت نه دئ دحمد تعریف ورباندي صادق دئ عمر رضي الله عنه ثناء وویله په لسان سره په ښه صفت سره اختیاری دئ علی قصد التعظیم هم دئ که څوک سوال وکړي چي دشکر معنی ولی بیان سوه او حال دادئ مذکور په کتاب کي حمد دئ :

**جواب** : لمزید توضیح معنی الحمد که ته پوښتنه وکړې چي مناسب خو داده چي دمدحي معنی هم بیان کړې موږ جواب ورکوو ښایي چي شارح دې مذهب دصاحب الکشاف مختاره کړې وي صاحب الکشاف وایی حمد او مدح اخوان دي .

الحمد لله علی ما انعم الخ سوال عدول دجملې فعلي ځخه وجملې اسمیې ته ولي وسو؟

**جواب**: عدول وجملې اسمې ته ددې دپاره وسو چي دلالت وکړي پر دوام او ثبات باندي.

**پوښتنه:** مصنف ولی داسي وايی الحمد لله ولي داسي نه وايی ولله الحمد سره ددې چي په لله الحمد کي استمرار او ثبات سته فائده د تقديم داده چي په ۱۰۰ فيصده کي ۸۰ فيصده پر شرافت دلالت کوي مصنف چي الحمد لله وويل ددې څخه دا رامعلوميږي چي دخدای حمد دخدای تر ذات اشرف دئ او حال دادئ چي دخدای ذات دخدای تر وصف مُشرّف دئ لهذې وجه دا ځای دلله الحمد دی ؟

**جواب:** دا مقام داتقاضا کوي چي حمد دي پر لفظ الله مقدم سي :

(على ما انعم) لفظ ما په عربية کي ۲۸ معنی ګانی ورکوي لفظ ما چي پر فعل داخله سي يا مصدريه وي يا موصوله وي يا موصوفه وي دلته لفظ ما مصدريه ده موصوله نه ده ځکه فساد راځي لفظا ومعنی :

**فائده:** هغه کلمات چي فعل په تاويل دمصدر اړه وي هغه کلمات درې دي **ما، اَن، لو،** مثال دما **بِمَا رَحُبَتْ اي بِرُحْبَتِهَا** مثال داَنْ **وَانْ تَصُوْمُوْا اَی صيامکم** دوَدَّ **يَوَدُّ** بعد چي لو راسي تقريبا غالبا فعل په تاويل دمصدر اړه وي مثال **لَو تُسَوّٰی بِهِمُ الارض** په علي ما انعم کي ما مصدريه ده ما موصوله نه ده علامه تفتازانی په مطول کي وايی که ماموصوله سي لفظی تاوان به هم وکړي معنوي تاوان به هم وکړي لفظی تاوان يې داد ئ په دنيا کي داسي موصول نه سته چي عائد نه لري موصول به خامخا عائد لري له دې وجه که موږ ماموصوله کړو صدر صله نه سته که ته صدر صله مقدر بولي ای **اَنْعَمَ بِهٖ نو** موږ وايو صدر صله مقدره نه ده که صدر صله مقدره سي نو بيا به په جانب دمعطوف کي صدر صله مقدر بولي ځکه معطوف په حکم دمعطوف عليه کي وي خو صدر صله په جانب دمعطوف کي متعذره ده ځکه ما لم نعلم مفعول به دئ دعلم معنی تاوان يې دادئ انعام مصدر دئ نعمت حاصل بالمصدر دئ انعام دمنعم وصف دي نعمت دمنعم وصف نه دئ که چيري ما موصوله سي نو حمد به پر نعمت سي هغه نعمت چي دمنعم وصف نه دئ که ما مصدريه سي نو حمد به پر انعام سي هغه انعام چي دمنعم وصف دئ او حال دادئ حمد پر انعام هغه انعام چي دمنعم وصف دئ دا اولی دئ تر حمد علی النعمة هغه نعمت چي دمنعم وصف نه دئ :

دالفظی او معنوی تاوان هغه وخت پيښيږي چي ما موصوله سي كه ما مصدريه سي بيا هيڅ تاوان نه پيښيږي نو ترجمه يې داده (الحمد لله علی ما انعم تمام تعريفونه ثابت دي يوازی الله لره دوجي دانعام دده.

## څلورم سبق

(الحمد لله علی ما انعم) اَنعم فعل متعدي دئ مفعول غواړي عرب كله كله دفعل متعدي مفعول به حذف كړي او حال دا چي فعل متعدي مفعول به ته احتياج هم لري.

## فائده: دحذف مفعول

دحذف مفعول په معانی كي خپل اغراض دي ليكن مشهوره يې دوه غرضه دي اول غرض يې دادي متكلم مخاطب ته دابنكاره كوي چي مفعول لري كوه زه تاته په نفس ماده او نفس فعل كي خبره كومه دمفعول سره زما هيڅ كار نه سته په دې صورت كی عرب را ولاړسي مفعول به حذف كړي مثال قوله تعالی قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَالَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ الاية

**ترجمه**: ووايه محمده، ايا برابر دي سره هغه كسان چي پوهيږي او هغه كسان چي نه پوهيږی كه ته ووايی په څه شي پوهيږی او په څه شي نه پوهيږي نو متكلم وايی ددې سره زما هيڅ كار نه سته چی په څه شي پوهيږي او په څه شي نه پوهيږی زه تاته په نفس فعل كي خبره كومه هغه نفس فعل داد ئ هغه كسان چي پوهيږی او هغه كسان چي نه پوهيږی ايا داسره برابر دي ياره ذوق نه لري او حال دا چی معانی ذوقي فن دي:

**دويم غرض**: زه متكلم يم فعل مي ذكر كړي مفعول به خالی نه وي يا به تر شمار لاندي وي يا به تر شمار لاندي نه وي متكلم را ولاړ سي مفعول به حذف كړي مبالغة ووايی ياره دا په شماره كی نه راځي كه راتلي ما به ذكر كړې وای او كه زه بعض ذكر كړم بعض نه ذكر كړم نو ترجيح بلا مرجح به راسي يا خو كه زه بعض ذكر كړم بعض نه ذكر كړم نو مخاطب به دا ګمان وكړي چي مفعولونه هم دغه دي نور نه سته او ټول زما په وسه نه دي پوره چي زه يې ذكر كړم ډير وخت غواړي، وَاِنْ تَعُدُّوا نِعْمَتَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا الله جل جلاله په خپله وايی

که ته زما نعمتونه شماري ستا اغا یې نه سي شمارلای له دې وجه دانعم مفعول حذف دئ تر شمار لاندي نه راځي انعامونه بیخي ډیر دي که بعض ذکر کړي نو ته به داخیال وکړي چي مفعولونه بس هم دغه دي نور نه سته نو قزوینی دانعم مفعول ذکر نه کړي قزوینی وایی زما توان کي نه سته چي زه یې ذکر کړم که بعض انعامات زه ذکرکړم نو ته به دا خیال وکړې چي دالله جل جلاله انعامات هم دغه دي نور نه سته (وَعَلَّمَ مِنَ الْبَيَانِ مَا لَمْ نَعْلَمْ) الله سبحانه را زده کړي دي و موږ ته ما هغه بیان لم نعلم چي موږ دهغه تعلیم نه درلودی:

**پوښتنه:** تعلیم دقران تعلیم دبیان دا دخدای پاک غټ نعمت دئ لهذا تعلیم دقران تعلیم دبیان په انعم کي سته بیا یې دویم وار دذکر کېدو هیڅ ضرورت نه سته مخکي تر دې چي موږ جواب ورکړو یو ه فائده واوره:

## یو تخصیص بعد التعمیم دئ بل تعمیم بعد التخصیص دئ

**فائده:** یو تخصیص بعد التعمیم دئ بل تعمیم بعد التخصیص دئ تخصیص بعد التعمیم دلالت کوي پر عظمة او شرافت باندي تعمیم بعد التخصیص دلالت کوي پر را ټولو دافرادو باندي مثال الاول **قوله تعالى مَن كَانَ عَدُوًّا لِّلَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَرُسُلِهِ وَجِبْرِيلَ وَمِيكَالَ فَإِنَّ اللَّهَ عَدُوٌّ لِّلْكَافِرِينَ الاية:**

**ترجمه:** هغه څوک چي دښمن وي دالله او دملائیکو دالله او درسولانو دالله او دجبریل او دمیکایل پس واقع الله دښمن دئ دکافرو دمشرکینو دپاره: تطبیق: په ملئکته کي ټول ملائیکه راغلي نو تعمیم وسو بیا الله پاک جبریل ومیکال ذکرکړي لهذادا تخصیص بعدالتعمیم دئ دپاره دعظمة شان دجبریل او میکایل:

**ترجمه** دمعانی په طرز **من کان** هر څوک چي وي که یهودي وي که نصارانی وي که مسلمان وی که هره بلا وي **عَدُوٌّ لله** چي دالله دښمن وي **وملئکته** او دالله دملائکو دښمن سي بیا خاص دجبریل او میکایل دښمن وي:

**قاعده:** هر هغه مشتقي چي پر ده حکم وسي او په دې مشتقي کی دننه یو وصف وی نو دا وصف به ددې حکم دپاره علت وي الله پاک چي وموږ ته تعلیم دقران راکوي یا وبل چا ته

تعنیم دقران ورکوي ددې دپاره دلیل دادئ **الرَّحْمٰنُ عَلَّمَ الْقُرْاٰن** :ترجمه رحمن ښوولي دي قران هغه چاته : چاته چي يې اراده سوي په الرحمن کي رحمت دئ رحمت دتعليم القران دپاره علت دئ مثال الثانی **وَمَامِنْ دَآبَّةٍ فِي الْاَرْضِ ولا طٰئِرٍ يَّطِيْرُ بِجَنَاحِيْهِ** ددې تحقيق به انشاءَ الله تعالی دصفت په بحث کي وکړو اوس صرف دا مثال زده کړي (**وَعَلَّمَ مِنَ الْبيان مالم نعلم** ددې يو جواب دادئ چي دلته تخصيص بعد التعميم دئ :

**دویم جواب** ددې دادئ چي دلته مصنف براعة الاستهلال کړي دئ براعة الاستهلال په اصطلاح کي دې ته وایی چي مصنف یا مُقرریا شارح په خپله خطبه کي دخپل کلام په سر کي داسي الفاظ ذکر کړي چي اشاره وکړي ودې ته چي زما ما بعد کلام به له دې کورنی څخه وي مصنف په مابعد کي دمعانی، بیان، بدیع، څخه خبره کوي نو مصنف دخپل کلام په سر کي بیان ذکر کړي ددې دپاره چي براعة الاستهلال ثابت سي :

**مِنَ الْبَيَانِ مَالَمْ نَعْلَمْ)** دلته مِن البيان په ترکیب کي بیان دئ دما څخه یعنی مِن بیانیه دئ په ترکیب کي حال دئ دما څخه بیان په لغت کي **اظهار مافی الضمیر** ته وائی په اصطلاح کي: **المُنطقُ الفَصِيحُ المعرب عما فی الضمیر** ته وایی :

**ترجمه:** بیان هغه وینا ده (الفصيح) چي ښېله ښېله به وي ګنه ګونه به نه وی (المعرب )ښکاره کوونکي به وي (عما فی الضمير) هغه شیان چي دده په زړه وي (المنطق الفصيح المعرب عما فی الضمير)دا چي الله پاک چاته ور نصيب کړې وي نو دا دالله لوی احسان او نعمت دئ پر هغه باندی :

## پنځم سبق قاعده

**من البيان مالم نعلم**

**قاعده:** مِن په عربية کي ډیري معنی ګانی ورکوي خو یوه یې مشهوره معنی ده هغه دا ده مِن للتبیین شیخ عبدالقاهر په شرح مأة عامل کي دا مثال ورکوي **فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ** مِن بیانية دې ته وایی مخکي یو کلمه مبهمه وی مِن بیانیه یې تفسیر وکړی :

**قاعده:** دمن بيانية مخکي به مبهمه کلمه خالي نه وي يا به معرفه وي يا به نکره وي که دغه مبهمه کلمه معرفه وه نو من بيانيه په ترکيب کي حال جوړيږي مثال **قوله تعالى الَّذِي يُوَسْوِسُ فِى صُدُوْرِ النَّاسِ مِنَ الجِنَّةِ والنَّاسِ:**

**ترجمه:** هغه چي وسوسه اچوي په سينو کي دخلکو هغه څوک دي من الجنة والناس ديپريانو او انسانانو څخه دئ دلته **مِنَ الجنة والناس** حال دئ د**الَّذِي** څخه ځکه الذى معرفه دى که دغه مبهمه کلمه نکره وه نو من بيانيه په ترکيب کي صفت جوړيږي مثال **فِي جِيْدِهَا حَبْلٌ مِنْ مَّسَدٍ:**

**ترجمه:** دا چي په غاړه ددې ده رسي وانبکي دخرما دپوستکو : رسي کله دمسد وى کله دمسد نه وي څه وخت چي **مِنْ مسد** وويل سو ابهام ختم سو له دې وجه من مسد صفت دئ د**حَبْلٌ** څخه ځکه **حَبلٌ** نکره ده :

**قاعده:** هر وخت که من بيانيه را مقدم سو تر **مبَيَّن** بيا مبين که معرفه وى که نکره وي په ترکيب کي به حال او ذوالحال جوړيږى ځکه صفت پر خپل موصوف نه سي مقدم کيداى لکه په دې عبارت کي من البيان لم نعلم، دلته من البيان په ترکيب کي حال دي دمالم نعلم څخه (من البيان مالم نعلم دلته من البيان **مبيِّن** دئ ما لم نعلم **مبيَن** دئ:

**پوښتنه:** **مبيَّن** مقدم وي تر **مبيِّن** او حال دا چي دلته **مبيِّن** مقدم دئ تر **مُبَيَّن**؟

**جواب:** دلته **مبيِّن** مقدم سوي دپاره دسجع دبرابرولو دفقرتينو اخيري حرف برابرول دې ته سجع وايى څه وخت چي مصنف بيان مقدم کړو داسي عبارت يې وويلي الحمد لله على ما انعم وعلم من البيان ما لم نعلم نو سجع برابره سوه که مصنف بيان وروسته کړي واي داسي عبارت ويل سوى واي مالم نعلم من البيان نو سجع نه برابري ده :

**(والصلواة على سيدنا محمد خيرمن نطق بالصواب وافضل من اوتي الحكمة وفصل الخطاب وعلى اله الاطهار وصحابته الاخيار)**

**قاعده:** هر ځای که القاب تیر سو وروسته علم راغلي نو دابه په ترکیب کي بدل او مبد
منه جوړېږي خو په بدلول کي به بدل الکل وي دلته علی سیدنا لقب دئ محمد علم د
سیدنا مبدل منه محمد بدل بل مثال په شرح مائة عامل کي **علی ما الفه الشیخ الامام افضل**
**علماء الانام عبدالقاهر بن عبدالرحمن الجرجانی** دلته عبد القاهر بدل دئ د الشیخ څخه
**خیر من نطق بالصواب**، دلته خیر صفت دئ د محمد :
**ترجمه :** داسي محمد خیر من نطق بالصواب چي بهترین دئ دهغه چا چي هغه نطق
بالصواب کوي په صواب سره نطق انبیاء کوي په صواب سره نطق اولیاء کوي په صواب
سره نطق شهداء کوي په ټولو کي چي چا نطق بالصواب کړي وی په هغوی کي محمد
بهترین دئ :
(**وافضل من اوتي الحکمة**) محمد افضل دئ تر هغه چا چي هغه ته پوهي ورکول سوي ده په
ټولو کي د الله رسول افضل دئ :
الله جل جلاله عقل جوړ کړی ۹۹ حصې عقل یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورکړیو
حصه عقل یې پر ټولو کائناتو تقسیم کړی :
یو وخت عمر رضي الله عنه د نبي علیه السلام سره ناست وو : یو صحابي راغلی بل صحابي
سترګه ورایستلې وه : نبي علیه السلام ته صحابي وایی زما سترګه یې را ایستلې ده عمر
رضي الله عنه ته درد ورغلی توره یې را واخیستهٔ ویې ویل زه به دهغه سر پرې کړم نبي علیه
السلام ورته وویل ته کښېنه کېدای سي چي دی صحابي دهغه بل صحابي دواړي سترګې
ور ایستلې وي چي بیا ورغه واقع دهغه دواړي سترګي یې ور ایستلې وې الله پاک ډیر
پوهي نبي علیه السلام ته ورکړي وه (اُوتِيَ) اوتي د ماضی مجهول صیغه ده :
**قاعده:** دمعانی : هر وخت که د فعل فاعل متعین سو بل فاعل یې نه در لودی نه بل فاعل
جوړېدای سو په دغه صورت کي عرب د معروف پر ځای مجهول راوړي او فعل مجهول د
ته وایی چي د فاعل پر ځای دده نسبة ونائب فاعل ته وي دلته فاعل د ایتاء متروک سو
ځکه پوهي ورکول دا صرف د الله کار دئ :

(الحكمة) حكمت چا ته وايی تمام شرّاح او علامه تفتازانی او ناكت ټول دحكمت ترجمه كوي په علم الشرائع باندي هر ځای كه په كتابونو كي علم استعمال سو نو دعلم درې معنی ګانی كيږي اول علم په معنی دمسائلو دويم علم په معنی دا دراک دريم علم په معنی دملكة مسائل څه معنی ادراک څه معنی ملكه څه معنی مثلا ته دفقه يو كتاب ملحوظ كړی مثال قدوري په قدوري كي كتاب الطهارة ملحوظ كړه په كتاب الطهارة كي مثال ته سل مسائل فرض كړه اوس دفقه دغه مسائل په دماغ كي نيول دماغ ته راكشول و دغه كار ته درک وايی نفس دغه مسائل چي ليكلي دي دې ته مسائل وايی :

څه وخت چي ته ددغه مسائلو بار بار درک وكړي زيات تكرار يې وكړي ممارثة يې وكړی نو الله پاک په سړي كي باطنی قوة پيدا كړي ودغه ته ملكه وايی مثال يو سړي اول وار سيكل زده كوي كله چي دا سړي پر سيكل سپور سي نو درې يا څلور پای ډلان واړه وي بيا چپه سي څه وخت چي دی سيكل زده كړي ډير يې وچلوي نو په ده كي داسي قوة پيدا سي چي بيا نه ځينی چپه كيږي ، هر وخت دده زده وي :

دحكمت ترجمه علم شرائع ده دعلم شرائع درې معناګانی دي مخكي تر دې چي مونږ دعلم شرائع معناګانی بيانوو يوه فائده واوره :

فائده: اضافت پر درې قسمه دئ، اضافت منی اضافت فيوي اضافت لامي :

١- اضافت مني دې ته وايي چي دمضاف او مضاف اليه مصداق يو وي كه څه هم مفهوم ددواړو مغاير وي مثال خاتم فضة

٢- اضافت فيوي: دې ته وايي چي مضاف اليه دمضاف دپاره ظرف وي مثال هذا صديق المدرسة دغه زما دوست دئ په مدرسه كي مدرسه دصديق دپاره ظرف ده :

٣- كه نه اضافت بيانيه وو او نه اضافت فيويه وو نو بيا دغه اضافت ته اضافت لامي وايي مثال غلام زيد اوس راسه كه دعلم څخه مسائل واخلې دعلم اضافت وشرائع ته بيانيه دئ يعنی مسائل الشرائع مسائل شرائع دئ شرائع منسائل دئ.

كه دعلم څخه ملكه واخلې بيا دعلم اضافت وشرائع ته فيوي دئ يا بيانيه دی علم الشرائع يعنی ملكة فی الشرائع وملكة من الشرائع كه دعلم څخه ادراک واخلې بيا دعلم اضافت وشرائع ته لاميه دئ علم الشرائع يعنی ادراک الشرائع اوس ما ته ګوره كوم چا ته چي مسائل دشرعية يا ادراک دشرعية يا ملكه دشرعية حاصله ده په ټولو كي دالله رسول صلی

الله علیه وسلم افضل دئ ولي ځکه اسمانی غټ کتابونه څلور دي تورات انجیل زبر دادرې سره چي یو ځای سي دقران پنځلس پارې نه جوړیږي یعنی هغه وحي متلو چي قران دي پنځلس پاري نه جوړیږی وحي غیر متلو چي څلورویشت لکه احادیث دي هغه به څرنګه جوړ سي :

**وفصل الخطاب)** الله پاک ټولو انبیاء ته فصل خطاب ورکړي وو خو کوم فصل خطاب چي رسول الله ته ورکول سوي یوه ته هم نه دئ ورکول سوي :

فصل مصدر دئ یاپه معنی دفاصل یا په معنی دمفصول خو دلته اضافت دصفت وموصوف ته دئ عبارت دارنګه دئ وافضل من اوتي الخطاب الفاصل بین الحق والباطل ترجمه رسول الله افضل دئ تر هغه چا چي ورکول سوی وي خطاب داسي خطاب چي فاصل وي په مابین دحق او باطل کي دا ترجمه هغه وخت صحیح کیږي چي مصدر مبنی للفاعل سي وافضل من اوتي الخطاب المفصول البین ، ترجمه رسول الله افضل دئ تر هغه چاچي ورکول سوی وي خطاب داسي خطاب . چي بیلیږي دا ترجمه هغه وخت صحیح کیږي چي مصدر مبنی للمفعول سي (**وعلی آله دآل اصل اَهلٌ** دئ دلیل په دی باندي تصغیر دئ داهل تصغیر **اُهیلٌ** راځي بیا ها په همزه بدله سوه دقرب مخرج له وجه بیا همزه په الف بدله سوه **آل** جوړ سو **آل** مستعملیږي په اشراف او په اولی الخطر کي بیا شرافت عام دئ دنیوي وي مثال **آل** فرعون او که اخروي وي مثال **آل** بلال داسي نه سي ویلای **آل الحجام** اهل عام دئ اهل په اشراف او غیر اشراف دواړو کي مستعملیږي **اهل الحجام** ویلای سي ( **الاطهار**، اطهار جمع دطاهر لکه اصحاب چي جمع دصاحب ده الاطهار صفت دي دآل که ته پوښتنه وکړي چي اطهار جمع ده آل مفرد دئ لهذا تطبیق نه راغلي دموصوف او صفت او حال دا چي تطبیق شرط دي دموصوف او صفت په مابین کي جواب آل اسم جمع ده لکه قوم رهط اسم جمع که څه هم لفظا مفرد ده خو معنی جمع ده له دې وجه دااسم جمع صفت جمع واقع کیږي ( وصحابته، صحابه خاص دي دنبي علیه السلام تر ملګرو پوري

اصحاب مطلقا ملګرو ته وايي خو دصحابه استعمال غالبه دئ په اصحاب درسول صلی الله علیه وسلم کی نو ګرځیدی ددوي دپاره لکه علم :

**پوښتنه:** څه وخت چي دصحابه استعمال غالبه وو په اصحاب درسول الله کي نو بيا ولی دصحابه اضافت نبي علیه السلام ته وسو؟

**جواب** موږ دلته تجريد کوو ( وصحابته معنی ملګري دنبي علیه السلام :

الاخيار: اخيار جمع د خير ده بالتشديد خيّر صفة مشبهة ده اخيار جمع دخیر نه ده ځکه خير اسم تفضيل دئ اسم تفضيل لايثنی ولا يجمع :

خير بالتخفيف مستعمليږي په جمال اوميسم کي خيّر بالتشديد مستعمليږي په دين او صلاح کي :

## شپږم سبق اما بعد

**امابعد:** هر کله چي مصنف فارغه سو دخطبة الكتاب څخه نو شروع يې وکړه په ديباجة الكتاب کي موږ د امابعد تحقيق دلته کوو مثلا داما بعد اصل معلومه وو داما بعد ترکيب کوو بيا نو اما بعد چي په هر کتاب کي راسي بس هم دغه يې تحقيق دئ :

**داما بعد** اصل : **مهما يكن من شئ بعد الحمد والصلواة** بيا په مهما کي ها خلاف القياس په همزه سره بدله سوه بيا قلب مکانی وسو خلاف القياس امما سو بيا ميم په ميم کي مدغم سو امّا ورڅخه جوړ سو ترکيب مهما مبتداء يكن فعل تام ضمير پکښي ذوالحال من شئ **متعلق** تر كائنا، كائنا به حال سي د ذوالحال حال او ذوالحال دا به فاعل سي ديكن بعد الحمد والصلواة **متعلق** تر يكن: يكن فعل سره له فاعله سره له متعلقه دا به خبر سي دمهما مبتداء سره له خبره دا به شرط سي فلما كان به جزاء سي: دا هغه شرط دئ چي ددې حذف کول واجب دي څه وخت چي فعل حذف سو نو ذوالحال او حال هم حذف سو :

پاته امابعد الحمد والصلواة سو بيا حمد او صلواة حذف سو نو اما بعد پاته سو په بَعدُ کي درې حالته دي په يوه حالت کي مبنی په دوو حالتونو کی معرب که دبعدُ مضاف اليه حذف وه ليکن منوي وه نو په دې صورت کي بَعدُ مبنی ده که دبعد مضاف اليه ذکر وه بيا بعد

معرب ده که دبعدُ مضاف الیه حذف وه نسیا منسیا بیا بعد معرب ده دلته اما بعد مبنی ده:

(امّا ودریده دمبتداء پر ځای چي هغه مبتداء مهما ده دفعل شرط پر ځای ودریده چي فعل شرط یکن دئ یعنی امّا حرفیه دمبتداء او دفعل شرط ددواړو نائبه ده :

**قاعده:** که ټول نه سي کولای نو ټول دلاسه مه ورکوه ګوره دمبتداء سره اسمیة لازم دئ اوس که اما حرفیه عین مبتداء نه سي کېدای اسمیة به ورسره وي هغه دئ بعد ورسره دئ دشرط سره فاء لازمه ده اوس که اما حرفیه عین شرط نه سي کیدای فاء به ورسره وي هغه ده فاء ورسره ده :

فلماکان علم البلاغت وتوابعها الخ) :

**قاعده:** لَمّا په عربیة کي دري قسمه ده لَمّا استثناییة لَمّا جحدیة لمّا حینیه شرطیه ۱- لمّا استثنائیه دي ته وایی چي په معنی دإلّا وي مثال **قوله تعالی اِنْ کُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَیْهَا** ای اِلّا علیها ۲- لمّا جحدیه په معنی دلم وي مثال قوله تعالی **لَمَّا یَذُوقُوا العذابَ** ای لم یذُوقوا العذابَ ۳- لمّا حینیه شرطیه دي ته وایی چي معنی دحین او شرط ورکوي مثال **قوله تعالی فلمّا اَضاءت مَاحَوْلَهُ ذَهَبَ اللهُ بِنُوْرِهِمْ** ( **فلما کان** دلته لمّا حینیه شرطیه ده لمّا که چیري جحدیه وه نو حرف دئ لما که چیری اسثنائیه راغله نو حرف دئ لمّا که چیري حینیه شرطیه راغله داکثر علماء په نزد اسمیه ده او په دې کي قانون دادئ چي وخپل ما بعد ته مضاف وي شرطیې جوړه وي وروسته جزاء راځي مثال **فلمّا اَضاءت مَاحَوْلَهُ ذَهَبَ اللهُ بِنُوْرِهِمْ** دلته لما مضاف ده و **اَضاءت مَاحَوْلَهُ** ته دا به په ترکیب کی شرط سي ذهب الله به جزاء سي علامه تفتازانی په مطول کي وایی لما په معنی د **اذا** ده لیکن په مختصر المعانی کي وایی لما په معنی دا **اذ** ده بنه خبره داده چي لماپه معنی دا **اذ** سي ځکه دلما په **اِذْ** کی دری خویه دي اول خُوی **اِذْ** خپل مدخول ته مضاف وی **لمّا** هم خپل مدخول ته مضاف وی دوهم خوی **اِذْ** ظرفیة

معنی ورکوی لمّاهم دظرفية معنی ورکوی دریم خوی د إذْ مدخول ماضی وی دلمّامدخول هم ماضی وی :

قاعده إذ په هر صورت کی د ماضی معنی ورکوی برابره خبره ده که د إذْ مدخول ماضی وی . اوکه اسمیه وی اوکه مضارعه وی :مثال قوله تعالی فَقَدْ نَصَرَ اللهُ إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ بل دا چی دده سره ماضی متصل وی بیا عام تردی لفظا ماضی وی :که معنی ماضی وی معنی ماضی لکه مضارع چی مجزوم سی په لَمْ یعنی جحدیه ماضیه انکاریه: دلمّا یو خوی إذا ته سوی دی هغه دا إذا په ترکیب کی شرط او جزاء جوړه وی لمّا هم په ترکیب کی شرط او جزاء جوړه وی (علم البلاغت وتوابعها) په ناوی کی یعنی په ښځی کی دوه حسنه دی یو ذاتی حسن دئ : بل عارضی حسن دی : ذاتی حسن هغه دی چی الله پاک ورکړی وی عرضی حسن هغه دی چی ځان یی په نورو شیانو ښایسته کړی وی لکه سفیده وغیره : دکلام هم دوه حسنه دی ذاتی: عرضی : دکلام ذاتی حسن علم البلاغت او علم البیان دی : دکلام عرضی حسن توابع دی :

(فلما كان علم البلاغت وتوابعها من اجل العلوم قَدرًا وادقها سِرًا) هرکله چی علم بلاغت اوتوابع دعلم بلاغت دمرتبی په لحاظ دلوی لوی علومو څخه ؤ : دسِر اورموز په لحاظ ډیر دقیق ؤ : مخکی تردی چی من اجل العلوم عبارت وایو یو تمهید واوره هغه دا هرځای چی اسم تفضیل راغلی داکلی مشکک دی او په کلی مشکک کی ضرور ابهام وی اوس که ددئ اسم تفضیل وروسته منصوب کلمه راغله نو دابه تمیز وی هغه ابهام به لری کړی تمیز هغه اسم نکره دی چی رفع له ذاتی مفرده کوی : یارفع له اجمال نسبة کوی مثال الاول إِنِّي رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ یوسف علیه السلام وایی ما یولس ولیده دلته ابهام دی یوولس معلوم نه دی یوولس انسانان : یوولس حماران : یوولس اسان څه وخت چی كَوْكَبًا وویل سو نو ابهام رفع سو یعنی ما یوولس ستوری ولیده :مثال الثانی طَابَ زَيْدٌ :زید نیک دی دلته ابهام دی ته وایی زید بنفسه نیک دی :دپلار دوجی نیک دئ دڅه وجی نیک دی چی نفس وویل

سو ابهام رفع سو زید ذاتًا نیک دی (**من اجل العلوم قدرًا وادقها سرًا**) دلته قدرا تمیز دی رفع داجمال نسبة کوی :سرًا تمیز دی رفع داجمال نسبة کوی : **قانون** دادی څه وخت چی تمیز رفع داجمال نسبة کوی دابه خالی نه وی یابه رفع دفاعل کوی یابه رفع دمفعول کوی اول ته **مُحَوَّل عن الفاعل** وائی دوهم ته **مُحَوَّل عن المفعول** وائی:

په اصل کی عبارت دارکم دی (**فلما کان علم البلاغت وتوابعها من طائفة علوم اجل قدرها من العلوم ومن طائفة علوم ادق سرها من العلوم**) دلته قدرها سرها دواړه فاعلان دی بیا دفا علیة څخه را پری سوه تمیزین سوه (**من اجل العلوم قدرًا وادقها سرًا**) په مختصر المعانی کی ناکت ویلی من للتبعیض : سوال علم البلاغت او توابع دعلم البلاغت تر ټولو علومو لوړ دی یعنی تر ټولو علومو اجل دی داخو دروا غ دی ځکه علم کلام : تفسیر، حدیث، فقه، دا تر ټولو علومو په مرتبه کی اجل دی : ناکت جواب ورکړی چی دلته من تبعیضیه دی یعنی داجائز دی چی بعض ددغه علومو اجل دي تر بعضو اوس ترجمه داسوه علم بلاغت او توابع دعلم بلاغت په مرتبه کی اجل دی تر بعض علومو :

(**اِذ به یعرف دقائق العربیة واسرارها**) اِذ پر دوه قسمه دئ **اذ** اسمیة، **اذ** حرفیه :

**اذ** اسمیه: په نحو کي راځي هلته یې زده کړه او **اذ** حرفیه دې ته وایی چي دده مابعد علت وي د **اذُ** دماقبل دپاره مخکي دوه معلولان تېر سوه یو معلول دادئ **من اجل العلوم قدرا** بل معلول دادئ **وادقها سرا** دلته **اذ به یعرف** علت دی ددویم معلول دپاره په طریقي دلف نشر غیر مرتب سره (اذ به خالص په ده سره آی بعلم البلاغت وتابعها لا بغیره من العلوم کاللغة والنحو والصرف (**یعرف دقائق العربیة واسرارها** پېژندل کیږي باریکي دعربیة او رموز دعربیة.

## اووم سبق دتلخیص المفتاح

(ویکشف عن وجوه الاعجاز فی نظم القران استارها) دادلیل دئ ددې قول من اجل العلوم قدرا کوم شی چي په اعتبار درتبې او مرتبې اجل وي نو ددې شی غرض او غائیة به هم اجل وي که چیري دیو شي غرض او غائیه دغتي مرتبې نه وه نو بیا داشی دغتي مرتبې نسي کېدای:

دعلم معانی، علم بیان، علم بدیع، غرض او غائیه دغتي مرتبي والا ده نو دوی به هم دغتي مرتبې وي اوس راسه داخبره زده کړه چي دده غرض او غائیه څرنګه دغتي مرتبي والا ده نبي تر هغه پوري نبي نه سې جوړېدای چي تر څو پوري معجزه رانه وړي چي معجزه راوړي نو بیا دی نبیٰ دئ پر نبی باندي ایمان راوړل واجب نه دئ چي تر څو پوري معجزه ورسره نه وي که معجزه ورسره وه بیا ایمان وربانديي راوړل فرض دئ الله پاک هر نبي ته معجزه ورکړې وه مثال موسی علیه السلام ته الله جل جلاله داعصی معجزه ورکړې وه الله عیسي علیه السلام ته دطبابت او دډاکټري معجزه ورکړې وه الله پاک زموږ نبی ته ډیري معجزې ورکړې وي اکبره (لویه) معجزه دنبي علیه السلام قران وو:

هر نبی چي به وفات سو معجزه به ورسره ختمه سوه درسول الله معجزه تر اوسه پوری باقی ده او همیشه به وی: خالص په علم بلاغت او توابع دعلم بلاغت دا معلومیږی چی قرآن معجزه ده ولی ځکه قرآن په فصاحت او بلاغت کی انتهاء ته رسیدلی دی: ولی ځکه قرآن مشتمل دی پر دقائق او اسرار باندی داسی دقائق او اسرار چی دانسان دقدرت څخه خارج دی: معرفة داعجاز القرآن وسیله ده و تصدیق ته دنبی علیه السلام تصدیق دنبی علیه السلام وسیله ده دفوز بالدارین:

(ویکشف عن وجوه الاعجاز فی نظم القرآن استارها) ښکاره کیږی دمخونو او دطرقو داعجاز په داسی حال کی چی هغه کائن دی په نظم د قرآن کی څه شي چی ښکاره کیږی استارها پردی دوجوه الاعجاز:

(فی نظم القرآن حال دئ دوجوه الاعجاز څخه: مصنف رحمة الله علیه دلته استعاره کړی ده: یو لفظ پر ځای دځپل محل په بل محل کی استعمالول دیته مجاز یا استعاره وائی: که لفظ مستعمل سو په مَا وُضِعَ لَهُ کی دیته حقیقة وائی: که لفظ مستعمل سو په غیر ما وضع

له کی دیته مجاز وائی : دمعنی حقیقی او معنی مجازی به مناسبة وی : که دمعنی حقیقی او معنی مجازی مناسبة نه ۇ : دیته استعاره نه ویل کیږی : دمعنی حقیقی او معنی مجازی مناسبة ضروري وی: دغه مناسبة به تشبیهی وی : یا به تشبیهی نه وی : که تشبیهی ۇ دیته استعاره وائی : که تشبیهی نه ۇ دیته مجاز مرسل وائی : مثال الاول رَاَیتُ اَسَدًا یَرمِی اسد واضع وضع کړی دی دحیوان مفترس دپاره دلته اسد مستعمل دئ په رجل شجاع کی (والعلاقة بینهما هی المشابهة فی الشجاعه : علاقه دتشبیه په مابین ددوی دواړو کی شجاعة دئ مثال الثانی یَجعَلُونَ اَصَابِعهُم فِی اٰذَانِهِم دلته ذکر دی کل چی اصابع دی اراده جزء دی چی اناملِ دی د اصابع او انامل په مابین کی تشبیه نسته خو علاقه سته هغه علاقه دکل او جزء ده :

استعاره کله بالکنایه وي دې ته استعاره مکنیه وائی :

استعاره کله باللوازم وي دې ته استعاره تخیلیة وایی استعاره کله بالمناسب وي دې ته استعاره ترشیحیه وایی :

هر کله چي په استعاره کي علاقه دمشبه او مشبه به وي که په عبارت کي مشبه او مشبه دواړه ذکروه دې ته تشبیه وایی استعاره نه ورته وایی :

۱-: ذکر مشبه اراده دمشبه به کنایة معلومیږي دې ته استعاره ممکنیه وایی .

۲-: اثبات دلوازم دمشبه به مشبه لره دې ته استعاره تخیلیه وایی .

۳-: اثبات دمناسب دمشبه به مشبه لره دې ته استعاره ترشیحیه وایی.

مثال: اَنْشَبَتِ المنیةُ اظفَارَها، مرگ ښخي کړې خپلي منگولي مُنیه مرگ ته وایی ذکر دمرگ مراد هم مرگ مشبه به کنایة معلومیږي چي هغه مرغه دئ دې ته استعاره مکنیه وایی .

دمرغه سره منگولي لازم دي اثبات دمنگولو مرگ ته دې ته استعاره تخییلیه وایی دمرغه سره منگولي ښخول او نه ښخول مناسب دي اثبات دښخ کېدو مرگ لره دې ته استعاره تر شیحیه وایی .

ذکر مشبه به اراده دمشبه دې ته استعاره مصرحه وایی مثال رایت الاسد فی الحمام دلته مصنف رحمة الله علیه دوجوه الاعجاز تشبیه دهغه اشیاءُ سره ورکړي چي هغه تر پر دې

لاندي وي يعنی مصنف دوجوه الاعجاز تشبيه ورکړي داشياء **مُحتَجبه تحت الاستار** سره ذکر وجوه الاعجاز مراد هم وجوه الاعجاز هغه اشياء چي تر پردې لاندي وي هغه کناية معلوميږي نو استعاره بالکنايه سوه هغه اشياء چي ترپردې لاندي وي دهغه سره پر ده لازمه ده اثبات دلوازم وجوه الاعجاز لره استعاره تخييليه ده يا خو مصنف دوجوه الاعجاز تشبيه ورکړې دصور الحسنه سره ذکر مشبه چي وجوه الاعجاز دي مراد هم مشبه چي وجو الاعجاز دي صور الحسنه کناية معلوميږي نو استعاره بالکناية سوه دسور الحسنه سره مخ لازم دی اثبات دلوازمو وجوه الاعجاز لره استعاره تخييليه ده دصور الحسنه سره دمخ پټوالي او نه پټوالی مناسب دئ اثبات دمناسب وجوه الاعجاز لره استعاره تر شيحيه ده .

**(نظم القران)** دې ته وايی **تأليف کلماته مترتبة المعانی متناسقة الدلالات علی حسب ما يقتضيه العقل لا تواليها فی النطق** .

دعقل مند سړي عقل چي څنګه تقاضا کوي چي دې الفاظو ته دي داسي ترتيب ورکړل سي چي معانی يي ترتيب واره وي او دلالات يي متصل په ښايسته ترتيب راځي دې ته نظم القران وايی مثال **ذالک الکتابُ لا ريب فِيه**) دا کلمات داسي سره مؤلف سوي داسي سره جوړ سوي چي مترتبة المعانی دي معانی يې ترتيب واره دي متناسقة الدلالات دي يعنی ښايسته دلالت وا لا دي دقران دالفاظو دوې معنا ګانی دي يوې معنی ته يی معنا **اوّلي** وايی چي معنی لغوي هم ورته وايی دويمې معنا ته يي معنی ثانويه وايی :

**معني اوّليه** ته معنا لغوی وايی **(ذالک)** هغه **(الکتاب)** کتاب دئ **(لا)** هيڅ **(رَيب)** شک ( فيه)په ده کي دغه يې معنی **اوّليه** ده .

معنا ثانويه داده : دقران مخاطب مؤمن او کافر دواړه دي ليکن کافر منکر دئ او دمنکر دپاره تاکيد راوړل واجب دئ دغه تاکيد راوړل معنا ثانويه ده.

علم معانی والا دمعنی ثانويه څخه بحث کوي .

(أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ) دلته قصر سوی دامعنا ثانویه ده: دلالات درې دي ۱-: مطابقي ۲-: تضمنی ۳-: التزامي په کوم ځای کي چي دمطابقي ضرورت وو هلته به مطابقي راوړي په کوم ځای کي چي دتضمنی ضرورت وو هلته به تضمنی راوړي په کوم ځای کي چي دالتزامي ضرورت وو هلته به التزامي راوړي.

## اتم سبق دتلخیص المفتاح

(وكان القسم الثالث من مفتاح العلوم الذي صنفه الفاضل العلامة ابو يعقوب يوسف السكاكي اعظم ماصنف فيه من الكتب المشهورة نفعا لكونه احسنها ترتيبا واتمها تحريرا واكثرها للاصول جمعا):

موږ مصنف ته وویل چي تا په دې فن کي کتاب ولي تصنیف کړی؟

ده جواب راکړی: ځکه علم بلاغت او توابع دعلم بلاغت اجل دعلومو ادق دعلومو دي یا موږ مصنف ته وویل چي مفتاح العلوم مشتمل دئ پرپنځو اقسامو باندي ۱- الصرف والاشتقاق ۲-: النحو ۳-: المعانی، بیان، بدیع ۴-: العروض والقوافی ۵-: المنطق:

**پوښتنه:** مصنفه تا په مفتاح العلوم کي دقسم الثالث تلخیص ولی وکړو مصنف وایی قسم الثالث دمفتاح از روي نفع تر هغه کتب مشهوره چي تصنیف يې په علم البلاغت کي سوی تر هغو اعظم دئ ددې دپاره درې دلائل راوړي:

۱-: دلیل دی چي قسم الثالث ډېر احسن دئ تر نورو کتبو از روي ترتیب ۲-: دلیل دادئ چي قسم الثالث اتم دئ تر نورو کتبو ا زو روي تحریر ۳-: دلیل دادئ په قسم الثالث کي ډېري قواعدي راجمع سوي.

(وكان القسم الثالث: دا کان عطف دئ پر اول کان باندي (السكاكي) سکاکی منسوب دئ وسکاکة ته سکاکة یو کلی دئ په نېشاپور کي یا سکاک یو کلی دئ په عراق کي یا سکاک یو کلی دئ په یمن کي سیوطي وایی دا منسوب دئ ونیکه ته دده کان سکاك للذهب او الفضة دده نیکه دسرو او سپینو زرو سکي وهلی وقيل كان بيته فى سكة السكاكين.

(وكان القسم الثالث) القسم الثالث اسم دكان دئ (اعظم ما صنف فيه الخ) دا به خبر سي دكان (اعظم ما صنف فيه من الكتب المشهورة نفعا) اجمالا تركيب اعظم مضاف ما ذوالحال صنف فيه صله دما من الكتب المشهورة حال دما څخه يعني دهغه ضمير څخه چي (ما) ته راجع دئ نفعا تميز داعظم دا به ټوله خبر دكان سي .

(لكونه احسنها ترتيبا) ځكه قسم ثالث ډير احسن دئ تر كتبو مشهوره از روي ترتيب يعنى په قسم ثالث كي چي څرنگه ترتيب دئ په نوو كتوبو كي داسي ترتيب نه سته:

( ترتيبا :وهو وضع كل شئ فى مرتبته : هر شي په خپله مرتبه كي ايښول دې ته ترتيب وايى مثلت مثلا دروازه دځمكي سره متصل ايښودل كيږي كلكن دځمكي څخه پورته ايښودل كيږي بس دغه ترتيب دئ كه ته دروازه دكلكن پر ځاى كښيږدي او كلكن ددروازې پر ځاى كښيږدي نو دا ترتيب نه دئ له دې وجه په دې كتاب كي هره قاعده پر خپل ځاى پرته وه دا رنگه چي دمسند اليه احوال به شروع سوه نو دمسند اليه مكمل قواعد به په مسند اليه كي پيدا كيدى چي دمسند احوال به شروع سوه نو دمسند مكمل قواعد به په مسند كي پيدا كيدى .

درانگه نه دئ چي دمسند قواعد دمسند اليه په احوالو كي پيدا كيږي دمسند اليه قواعد دمسند په احوالو كي پيدا كيږي .

(واتمها تحريرا ) تحريرا دتفعيل باب دى يو شي په ښايسته انداز ليكل او تهذيب وركول دې ته تحرير وايى قسم ثالث اتم دئ تر نورو كتبو ازوري تحرير يعنى قسم ثالث په دومره ښايسته انداز ليكل سوى چي نور كتب په دومره ښايسته انداز نه وه ليكل سوي محشى په مختصر المعانى كي پر اتمها نكته ليكلې اتمام دتمام څخه دئ تمام نهايه ته وايى نهايه بسيط شى دې بسيط تقسيم نه قبلوي كوم شى چي تقسيم نه قبلوي هغه زيادت او نقصان نه قبلوي كوم شي چي زيادت او نقصان نه قبلوي دهغه څخه اسم تفضيل نه جوړيږي:

## قاعده

**قاعده** : په اسم تفضیل کې خامخا زیادت وي په اسم تفضیل کې **مفضل** او **مفضل علیه** په اصل ماده کې سره شریکان وي **مفضل** واصل مادې ته قریب وي په نسبة ومفضل علیه ته.
مثال زید افضل من عمر په نفس فضیلت کې زید او عمر سره برابر دي لیکن د زید فضیلت زیات دئ تر عمر لیکن د مصنف دعبارت څخه دا را معلومیږي چي ټول کتب دعلم بلاغت په نفس اتمام کي سره برابر دي خو په قسم ثالث کې اتمام زیات دئ تر نورو کتبو او حال دا چې دا خبره غلطه ده ځکه اتمام زیادت او نقصان نه قبلوي محشی ددې دوه جوابه ورکړي یو جواب دادئ کتب مشهوره قریب دي وتمام التحریر ته قسم ثالث اقرب دئ تمام التحریر ته :
دویم جواب په قسم ثالث کې اتمام سته په اعتبار دکیف سره نه په اعتبار دکم سره په اعتبار دکم سره قسم ثالث او کتب مشهوره سره برابر دي لهذا په قسم ثالث کې تر نورو کتبو اتمام زیات دئ په اعتبار دکیف سره نه په اعتبار دکم سره مثال یو بلب په یو طرف کي دې بل بلب په بل طرف کې دئ په اعتبار دکم او مقدار سره برابر دي په اعتبار دکیف سره یې فرق سته په یوه کې رڼا زیاته وي په بل کې رڼا لږ وي .

(**واکثرها للاصول جمعا**) جمعا تمیز دئ داکثرها (**للاصول**:ترکیب دللاصول: **للاصول** به **متعلق** سي تر **جمعا** پوري که ته سوال وکړي چي جمعا خو عامل دئ للاصول معمول دئ او حال دا چي معمول دمصدر نه مقدم کیږي پر مصدر باندي ځکه مصدر په وخت کې دعمل مأوّل وي بان مع الفعل اي ان یجمع اَن حرف موصول ما بعد صله معمول پر عین صله نه سي مقدم کېدای نو معمول دصلې پر موصول بطریقة الاولی نه سي مقدم کېدای داخبره چي موږ کوو چي مصدر عندالعمل مأول وي بان مع الفعل دا ځکه عمل دفعل اصل دئ او مصدر اسم دئ نو فلا بد من تاویله جواب: للاصول متعلق دئ تر محذوف پوري داسي محذوف چي تفسیر یي دئ قول کړي جمعا لیکن علامه تفتازانی وایی حق داده چي للاصول متعلق سي تر جمعا مذکور پوري .

قاعده: که چیري معمول ظرف وو یا جار او مجرور وو نو په دې صورت کي معمول تر خپل عامل مقدم کېداى سي ځکه په ظرف کي رائحه من الفعل کافی ده.

نهم سبق دتلخیص المفتاح

(ولکن کان غير مصون عن الحشو والتطويل والتعقيد قابلا للاختصار ومفتقرا الى الايضاح والتجريد)

لکن دفع دتوهم کوي داسي توهم چي را پيدا سوي دئ (من کلام سابق) له مخکنی کلام څخه هغه توهم دادئ هر کله چي قسم ثالث دمفتاح العلوم اعظم وو په اعتبار دنفع ځکه قسم ثالث احسن وو په اعتبار دترتيب، اتم وو په اعتبار دتحرير، په قسم ثالث کي ډيري قواعدي راجمع وي نو توهم وسو چي قسم ثالث به محفوظ وي دحشو تطويل، تعقيد څخه نو فلا حاجة الى تاليف المختصر المسمي بالتلخيص المفتاح مصنف رحمة الله عليه دغه توهم دفع کړي په دې قول ولکن کان غير مصون عن الحشو والتطويل والتعقيد قسم ثالث محفوظ نه وو دحشو تطويل تعقيد څخه ځکه مصنف تاليف دمختصر وکړي داسي مختصر چي مسمي دئ په تلخيص المفتاح سره (الحشو) هو الزائد المستغنى عنه حشو هغه زائد ته وايي چي کلام ور څخه مستغنى وي کلام احتياج نه ورته لري (الزائد المستغنى عنه) صفت پر ۷ قسمه دئ دلته المستغنى عنه صفت موضحه دئ دا لزائد دپاره (التطويل) تطويل دې ته وايي وهو الزائد على اصل المراد بلا فائدة علامه تفتازانى په مختصر کي وايي دحشو او تطويل فرق به راسي په بحث داطناب کي (تعقيد) تعقيد دې ته وايي وهو کون الکلام مغلقا لا يظهر معناه بسهولة لخلل فى اللفظ او فى الانتقال کلام داسي مغلق کېدل چي مقصود دکلام په اسانتيا سره وفهم ته نه راځي له دې وجي چي خلل په لفظ کي وي يا په انتقال کي وي.

قابلا للاختصار: قسم ثالث قابل داختصار دئ ځکه په ده کي تطويل دئ.

مفتقرا الى الايضاح: قسم ثالث محتاجه دئ وايضاح او غوړلو ته ځکه په ده کي تعقيد دئ.

والتجريد: قسم ثالث محتاجه دئ وتجريد ته ځکه په ده کي حشو ده تجريد په اصل کي ښاخ تراشي ته وايي،

(الفتُ مختصرا يتضمن ما فيه من القواعد ويشتمل على ما يحتاج اليه من الامثلة والشواهد):

الفت جواب دئ دلما كان علم البلاغة الخ.

پوښتنه: الفت مختصرېې وويل داسي يې نه وويل اختصرته ؟
جواب: كه دمصنف مقصد يوازى اختصار واى نو ده به ويلي واى اختصرته دمصنف مقصد يوازې اختصار نه دئ دمصنف مقصد دادئ قاعدى به راوړم كه يې ضرورت وو مثالونه به راوړم كه يې ضرورت وو شواهد به وړاندي كوم كه يې ضرورت وو.
كلام به سره خلاصوم كه تعقيد پكښې وو له دې وجه دمصنف مقاصد ډير دي ځكه ده الفت مختصرا وويل.
يتضمن: يشتمل دا دواړه صفات دي دمختصرا دپاره .

الفت مختصرا يتضمن ما فيه من القواعد: ترجمه ما جوړ كړى مختصر داسي مختصر يتضمن چي په بغل كي را اخلي (ما فيه من القواعد) ټول هغه قواعد چي په قسم ثالث كي دي (ويشتمل على ما يحتاج اليه من الامثلة والشواهد) ما جوړ كړى مختصر داسي مختصر (يشتمل چي مشتمل دئ (على ما يحتاج اليه من الامثلة والشواهد) پر هغه امثله او شواهد باندي چي هغه ته ضرورت وو.

## قواعد امثله شواهد

قواعد جمع دقاعدة ده دقاعدې تعريف حكم كلي ينطبق على جميع جزئياته ليتعرف احكامها منه: ترجمه دا يو حكم كلي دئ داسي حكم كلي چي منطبق به وي پر ټولو جزئياتو ددې دپاره چي معلوم سي احكام دجزئياتو:
په علمي ژبه دقاعدې دانطباق څه شكل وي په علمي ژبه باندي دقاعدې انطباق پر خپلو جزئياتو ددې شكل دادئ صغرى سهلة الحصول به جوړه كړي ددغه فن قاعده به كبرى كړي حد اوسط به لرې كړي ثبوت دمحمول به موضوع لره وكړي انطباق به په خپله حاصل سي مثال زيد فى ضرب زيد مرفوع لانه فاعل وكل فاعل مرفوع فزيد مرفوع گوره دلته

دمرفوع حکم زید ته ثابت سو بس دې ته انطباق وایی مثال دمعانی ځکه موږ معانی وایو الله سبحانه کافر ته وایی قیامت به راځي کافر قیامت نه منی (اِنَّ الدِّیۡنَ لَوَاقِعٌ) الایة اوس صغری سهلة الحصول جوړه وو اِنَّ الدِّیۡن لواقع کلام مع منکر وکل کلام مع منکر یجب توکیده نتیجه انا الدین لواقع یجب توکیده ،

**امثلة:** امثلة جمع دمثال ده مثال راوړل کیږي دپاره دوضاحت دقاعدې.

**شواهد:** جمع دشاهدة ده شاهد راوړل کیږي دپاره داثبات دقاعدې دمثال او شاهدد تر مینځ نسبة دعموم او خصوص مطلق دئ هر شاهد مثال دئ هر مثال شاهد نه دئ ځکه په شاهد کي شرط دادئ چي وثیق بالعربیة به وي.

مثال ته ماته وایی زید په ضرب زید کي فاعل دئ دا مثال دئ شاهد نه دئ ځکه دا وثیق بالعربیة نه دئ، السُّفهاء په سَيَقُوۡلُ السُّفَهَآءُ کي کي فاعل دئ دا مثال هم دئ شاهد هم دی ځکه وثیق بالعربیة دئ.

## دمثال او شاهد فرق

په شاهد سره دلیل نیول کیږي په مثال سره دلیل نه نیول کیږي (ولم الُ جُهدًا فی تحقیقه وتهذیبه ورتّبته ترتیبا اقرب تناولا من ترتیبه):

آلُ ال دا لَوَ څخه دئ اَلوَ خواري کښلو ته وایی چي نفی پر راغلي معنی سَپمول لَم الُ ما ځان نه دئ سپمولي (جهد په خواري کښلو کي:

آلُ متعدي دئ ومفعولین ته مفعول الاول حذف دئ ای لم الک جهدا دلته خطاب وغیر معین ته دئ ترجمه اي هر مخاطبه ماله تا ځان نه دي سپمولي په خواري کښولو کي:

**فی تحقیقه**: په تحقیق کي دمختصر:

**وتهذیبه**: په پاکوالي کي دمختصر:

**ورتبته ترتیبا**: ما ترتیب ورکړی مختصر ته په ترتیب سره داسي ترتیب (اقرب تناولا) چي ډېر نژدې دئ ازروي اخذ (من ترتیبه د سکاکی ترتیب یا من ترتیب قسم الثالث:

که دمن تر تیبه ضمیر سکاکی ته راجع سي نو اضافت دمصدر وفاعل ته دئ که ضمیر وقسم ثالث ته راجع سي نو اضافت دمصدر ومفعول ته دئ :

**تناولا:** تناول په اصل کي دې ته وایی مدالید لاخذ الشئ اخذ دتناول سره لازم دئ ذکر ملزوم چي تناول دئ اراده دلازم چي اخذ دئ .

## لسم سبق

ولم ابالغ فی اختصار لفظه تقریبا لتعاطیه وطلبا لتسهیل فهمه علی طالبیه) ترجمه م مبالغه نه ده کړې ده دلفظ په اختصار کي **تقریبا لتعاطیه:** چي تاکي قریب سي اخذ ده ( وطلبا لتسهیل فهمه علی طالبیه) چي تا کي طلب راسي ده دفهم داسانتیا پر طالبانو دمختصر(**تقریبا وطلبا**) دا دواړه مفعول له دي **دلم ابالغ** دپاره مفعول له دفعل مذکور دپاره علت وي مفعول له دفعل مذکور دپاره قید وي تقریبا وطلبا دا دواړه دلم ابالغ دپاره علت دي، تقریبا وطلبا دا دواړه دلم ابالغ دپاره قید دي :

**پوښتنه:** تقریبا وطلبا یا به دلم څخه مفعول له وي یا به دابالغ څخه مفعول له وي دلته تقریبا وطلبا نه دلم څخه مفعول له کیدای سي او نه دابالغ څخه مفعول له کیدای سي اول تقریبا وطلبا دلم څخه مفعول له نه سي کېدای ځکه علت او قید مستقل وي او قانون دادئ چي قید مستقل وي دهغه مقید به هم مستقل وي لم حرف دئ غیر مستقل کلمه ده دا مقید په قید سره نه سی کېدای له دې وجه تقریبا وطلبا دلم دپاره قید نه سي جوړېدای دویم تقریبا وطلبا دابالغ دپاره مفعول له نه سي کېدای ځکه هر هغه کلمه چی مقیده په قید سره سي او نفی پر داخله سي نفی قید لري کوي مقید پر یږدي دلته ،لم، تقریبا، وطلبا، لري کوي ابالغ نه لیري کوي لم تقریبا وطلبا سره ولاړه اوس یې معنی دا ده ابالغ ما مبالغه کړې ده لفظ په اختصار کی چی تا کي قریب نه سي اخذ ده چی تا کی طلب را نه سي ده دفهم داسانتیا ؟

**جواب:** علامه تفتازانی په مطول او مختصر کي وایی بلکل قاعده همدا ده لیکن تقریبا وطلبا دا دواړه مفعول له دي دلم ابالغ په اعتبار دتضمین ، تضمین دې ته وایی دیوه لفظ

معنی ښیښبل په بل لفظ باندي دلته لم ابالغ متضمن دئ وترکتُ المبالغة ته لم ابالغ دا معنی ما مبالغه پریښوول فی اختصار لفظه دده دلفظ په اختصار کي تقريبا لتعاطيه، دده دپاره چي، قریبا سي اخذ دده وطلبا لتسهيل فهمه ددې دپاره چي طلب را سي داسانتیا دفهم دده علی طالبيه پر طالبانو دمختص له دي وجه تقريبا وطلبا دا دواړه قیدونه دي دترکت المبالغة دپاره تقريبا وطلبا دا نه دلم دپاره قیدونه دي نه دابالغ دپاره قیدونه دي.

## قاعده

**قاعده:** که جار مجرور او مفعول له تر فعل مذکوره پوري تعلق نه صحیح کیدی نو په فعل کي به تضمین کیږي مثال سمع الله لمن حمده دسمع باب په لام سره نه متعدي کیږي نو سمع به متضمن سی قَبِلَ لره سمع الله لمن حمده دا معنی واوریدل قبوله یې کړه الله دهغه څا خبره چي دده حمد یې ووایو ، :

**قاعده:** هرهغه کلمه چي مقیده په یو قید سره وي او پر دې کلمه باندي نفی داخله وي نفی قید وهي مقید نه وهي دا قاعده کلیه نه ده دا قاعده اکثریه ده . نفی ډیر قید وهي مقید نه وهي کله کله نفی قید او مقید دواړه ووهي مثال قوله تعالی لا ذَلُولٌ تُثِيرُ الأَرْضَ دلته تُثِيرُ صفت دئ دذَلُولٌ او صفت دموصوف دپاره قید وي دلته نفی مقید او قید دواړه وهي یعنی لا ذلول او تثير الأرض دواړه وهي بل مثال وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ حَمِيمٍ وَلَا شَفِيعٍ يُطَاعُ ای لا شفاعة ولا طاعة کله کله نفی مقید ووهي مثال قوله تعالی وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَى مَا فَعَلُوا وَهُمْ يَعْلَمُونَ ای لم يصروا عالمين يعنی ان علم الاصرار متحقق منهم مع قطع النظر عن الاتصاف بالعلم وعدمه : مګر مقتضی اصلی چي شائع ده په استعمال کي عند البلغاء هو التوجه الی القيد فقط مثال قوله تعالی لا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَأَنْتُمْ سُكٰرٰى حيث توجه النهي عن القرب حال السكر لا الی قرب الصلوة مطلقا :

(واضفتُ الى ذالک فوائد عثرت فی بعض الکتب القوم علیها وزوائد لم اظفر فی کلام احد بالتصریح بها ولا بالاشارة الیها) ما ور زیات کړه ودې قواعدو ته، امثله ته، شواهد و ته زوائد داسي زوائد چي زه نه وم کامیابه دیو چا په کلام کي چي تصریح دئ سوي وي په دغه زوائدو باندي څه معنی دا معنی مصنف وایی ما چي دي قواعدو ته زوائد ورزیات کړې دا زما خپل ذهن او اختراع ده که څوک پوښتنه وکړي چی مصنفه تا چیرې قواعدو ته زوائد ور زیات کړې دې ته به اشاره سوې وي نو مصنف وویل ولا بالاشارة الیها هیڅ اشاره ورته نه وه سوې (واضفت الی ذالک) علامه تفتازانی په مختصر کي وایی دذالک مشار الیه قواعد وامثله وشواهد دي که ته سوال وکړې مشار الیه جمع ده اسم اشاره مفرده ده نو تطبیق نه راغلي دمشار الیه او داسم اشارې ددې جواب موږ ورکو چي دذالک مشار الیه قواعد امثلة شواهد دي لیکن موږ مشار الیه په تاویل دمذکور اړه وو نو تطبیق راغلی.

(واضفت الی ذالک زوائد: مصنف چي داخبره کوئ چي ما دې قواعدو مذکوره وو ته ور زیات کړه زوائد دا دوه امکانه لري یو دا امکان لري چي مصنف دي دخپل نفس کسر کړې وي هغه دا چي دا زوائد که تا یاد کړه ښه خبره ده او که تا دا زوائد یاد نه کړه پروا نه لري یعنی دا زوائد غیر معتبرة بها دي .

دویم دا امکان لري چي مصنف دا زوائد زیات کړه ددې دپاره چي په دې زوائد و کي فائده زیاته ده که څوک توهم وکړي چي دا خو مصنف دخپل نفس مدحه وکړه موږ جواب له دې توهم ځخه ورکو دامن باب التحدیث بالنعمة دئ وقد قال علیه السلام انما الاعمال بالنیات دا خبره شیخ عبیدالله قندهاري کړې ده (وسمیته تلخیص المفتاح) دا کتاب ما مسمی کړ په تلخیص المفتاح سره (وانا اسئل الله من فضله ان ینفع به کما نفع باصله انه ولی ذالک) زه سوال کوم دالله څخه چي په دې سره دې نفع ورسوي په داسي حال کي چي نفع به کائنه وی دده دفضله لکه څرنګه چي دده په اصل نفع رسیدلي ځکه الله ولي دئ ددغه

نفع **وانا اسئل الله** تقديم دمسند اليه پر مسند فعلي باندي كله دتقوى دپاره وي لازالة الاشتراک، تقوي دې ته وايی چي مخاطب دمتکلم په کلام کې شکمن وي نو متکلم مخاطب ته داسي کلام وړاندي کړي چي ددې کلام په ذريعه سره متکلم دمخاطب شک ورختم کړي زه متکلم يم پالوان مخاطب دئ مخاطب چي پالوان دئ دا مخاطب قائل داشتراک وي مثلا مخاطب يو فعل څلور ځايه ثابتوی متکلم را ولاړ سي دمخاطب اشتراک ورختم کړي فعل يو ځای ثابت کړي تخصيص وکړي بس همدې ته تخصيص وايی له دې وجه که ستا مخاطب ستا په کلام کي شکمن وو نو ته به تقديم دمسند اليه پرمسند فعلي وکړي که ستا مخاطب قائل داشتراک وو نو ته به تقديم دمسند اليه پر مسند فعلي وکړي (**وانا اسئل الله** دلته تقديم دمسند اليه راغلی پر مسند فعلی باندي:

**پوښتنه:** دلته تقديم دمسند اليه نه تقوي فائده کوي نه تخصيص فائده کوي اول دانا اسئل الله مخاطب شکمن نه دئ ځکه هر څوک دالله څخه سوال کوي له دې وجه هرسړی داشتراک قائل دئ او اشتراک په دعاء کښي ښه دئ لهذا دلته تقديم دمسند اليه تقوی نه فائده کوي دوهم ټوله دنيا وايی موږ دخدای څخه سوال کوو تقديم دمسند اليه تخصيص نه فائده کوی؟

جواب علامه تفتازانی وايی مصنف دا غواړي چي وانا اسئل الله دا جمله حال سي دسميته دتا دضمير څخه يا داضفت دضمير څخه يا درتبته دضمير يا دالفت دضمير څخه مصنف وائی ما چي قواعدومذکوره وو ته فوائد اوزوائد ورضم کول نو دخدای څخه مي سوال کوي ما چي کتاب ته نوم ورکوي نو دخدای څخه مي سوال کوی په هر حال کي ما دخدای څخه سوال کوی اوس که مصنف تقديم دمسند اليه نه وای کړی نو واو به پر فعل مضارع مثبت راغلی وای او حال دا دئ چي واو پر فعل مضارع مثبت داخلول نا جائز دي څه وخت چي تقديم دمسند اليه راغلی نو جمله اسميه سوه او پر جمله اسميه واو داخلول جائز دئ که ته پوښتنه وکړې چي واو هم ليري کړه انا هم ليري کړه داسي عبارت ووايه اسئل الله :

**جواب:** په اسئل الله کي توهم دجملې مستأنفې کیږی او حال دا چي مصنف استیناف ن
غواړي له دې وجه مصنف دا اراده لري چی واو للحال سي ددې دپاره چي سوال دنفي
مقارن سي دټولو افعالو سابقو څخه لیکن تقدیم دمسند الیه یوازی دحال دصحت دپار
دئ دتقوي او دتخصیص دپاره نه دئ (من فضله ان ینفع به، ان ینفع په تاویل دمصد
ذوالحال دئ من فضله حال دئ:

**ترجمه** زه سوال کوم دالله څخه ان ینفع بِهِ چي په ده سره نفع ورسوي حال دادئ نفع به د
وي من فضله چي دا به دده فضل وي زموږ به هیڅ کمال نه وي .

## یولسم سبق تحقیق د وهو حسبي ونعم الوکیل

(وهو حسبي ونعم الوکیل) :

ونعم الوکیل ، واو کله عاطفه وي، کله حالیه وي، کله اعتراضیه وي محشی په مختص
المعانی کي وایی واو عاطفه دئ ځکه اصل په واو کي واو عاطفه دئ واو حالیه نه د
ځکه جمله حالیه انشائیه نه واقع کیږي واو اعتراضیه نه دئ ځکه جمله معترضه په مینځ
دکلام کي راځي اعتراض په اخیر دکلام کي نه وي :

ونعم الوکیل: ددې جملې مخته درې جملې دي ١- وانا اسئل الله ٢- انه ولي ذالک ٣
وهو حسبي ونعم الوکیل عطف پر وانا اسئل الله نه صحیح کیږی ځکه وانا اسئل الله جم
حالیه ده ونعم الوکیل جمله انشاییه ده والانشاء لا تکون حالا دونعم الوکیل عطف پ
انه ولی ذالک نه صحیح کیږی ځکه انه ولی ذالک جمله معللة ده ونعم الوکیل دا جمل
صلاحیت دتعلیل نه لري نو معلومه سوه چي نعم الوکیل عطف دي پروهو حسبي باندې
ونعم الوکیل جمله انشائیه ده وهوحسبي جمله خبریه ده :

**پوښتنه:** عطف دانشاء پر اخبار نه صحیح کیږي دلته عطف دانشاء را غلی دئ پر اخبار باندي ؟

**جواب:** محشی ورکړي په مطول کي بعض وایی عطف دانشائې پر اخباریه باندي صحیح دئ.

**دویم جواب:** موږ ورکوو چي دلته عطف دخبریې پر خبریه باندي دئ ځکه موږ په جانب دمعطوف کي مبتداء مقدروو ای وهو نعم الوکیل .

**دریم جواب:** په نعم الوکیل کي موږ تاویل کوو **ای وهو مقول فی حقه نعم الوکیل** متعلق دخبر انشائیه ده له دې وجه وهو مقول فی حقه نعم الوکیل جمله خبریه ده نو عطف به دخبر یې پر خبریې راسي ونعم الوکیل دا جمله عطف ده پر حسبي باندي .

**پوښتنه:** دا عطف نه صحیح کیږي ځکه دلته عطف دجملې پر مفرد راغلی دئ ؟

**جواب:** دلته عطف دجملې پر جمله باندی دئ ځکه حسبي متضمن دئ معنی لره دفعل ای یحسبنی ویکفینی:

**دویم جواب:** هغه جمله چي دې لره محل داعراب وی پر ځای دمفرد واقع وي نو ددې جملې عطف پر مفرد باندي صحیح دئ یا موږ وایو معطوفه علیها انشائیه ده ځکه مقصود انشاء دمدحي ده پر دارکم چي الله کافی دئ نو معطوفه علیها انشائیه ده معنی خبریه ده لفظا نو فیکون عطف الانشاء علی الانشاء، یا موږ وایو جمله معطوفه خبریه ده ځکه مقصود اخبار دئ عن وکالة الله لا انشاء الوکالة فیکون عطف الخبریة معنی علی الخبریة لفظاً ومعنًی .

## دولسم سبق مقدمه

څه وخت چي مصنف فارغ سو له دیباجې څخه نو شروع یې وکړه په مقدمه کي :

## مقدمه

دوې خبري دئ يوه خبره په تقسيم دکتاب کي ده دويمه خبره په لفظ مقدمه کي .

اوله خبره دا کتاب پر صحيح قول باندي مشتمل دئ پر څلورو اجزاء باندي ١- مقدمه ٢- فن اول ٣- فن ثانى ٤- فن ثالث :

**وجه دحصر:** په دې کتاب کي چي کوم شى ليکلي وى هغه به خالي نه وي يا به من قبيل المقاصد وي يا به من قبيل المقاصد نه وي که من قبيل المقاصد نه وو بيا مقدمه ده که من قبيل المقاصد وو بيا به خالي نه وي که چيري تا ساتي دخطاء څخه فى تادية معنى المراد نو دا فن اول دئ که چيري تا ساتى دتعقيد معنوى څخه نو دا فن ثانى دئ او که په ده سره وجوه دتحسين بيانيدي نودا فن ثالث دئ علامه تفتازانى په مطول کي وايى حق او ښه خبره داده چي خاتمه جزء دفن ثالث ده يعنى خاتمه په فن ثالث کي داخله ده .

دويمه خبره **پوښتنه:** مصنف مقدمه نکره راوړه الفن الاول الفن الثانى الفن الثالث يې معرفه په الف لام راوړه دا ولى څه وجه ده ؟

**قاعده:** ضمير مرجع غواړي يا لفظا يا معنى يا حکما الف اللام معهود غواړي ذکر دراجع به غير دمرجع ناروا دئ الف اللام عهد خارجي استعمالول به غير دمعهود ناروادئ، مقدمه مي نکره راوړه ځکه دمقدمي معهود نه سته الفن الاول الفن الثانى الفن الثالث دادرې سره مي معرفه په الف لام راوړه ځکه ددوي معهود دمقدمې په اخير کي څه ناڅه بيان دئ علامه تفتازانى وايى بعض ملايان را ولاړ سوې دي دمقدمې په تنوين کي يې بحث شروع کړي څوک وايى په مقدمه کي تنوين دتقليل دئ څوک وايى په مقدمة کي تنوين دتکثير دئ څوک وائى په مقدمة کي تنوين دتعظيم دئ علامه تفتازانى وائى دا اداب دمحصلين نه دي دغتو غتو علماء سره دا خوند نه کوي چي په معمولي شي کي اختلاف سره کوي علامه تفتازانى وايى زه دمقدمة په تنوين کي خبره نه کوم :

**مقدمة**: وزن **مُفَعِّلَةٌ** صیغه داسم فاعل ده باب دتفعیل دئ **قَدَّمَ يُقَدِّمُ تَقْدِيمٌ** دتفعیل باب متعدي راځي بنفسه په متعدي کې دمفعولیة معنی ملحوظ کیږي دمقدمة معنی وړاندي کوونکي بل لره او حال دادئ چي مقدمة خپله وړاندي سوي ده :

**قانون** واوره يو باب دبل باب پر ځای استعمالیږي مجازا **قَدَّمَ** په معنی د**تَقَدَّمَ** سره دئ **تقدمً** باب د**تَفَعُّلَ** دئ دتفعل باب تقریبا غالبا لازمي راځي لهذامقدمة په معنی د**مُتَقَدِمة** ده متقدمة معنی خپله مخکي کونکي مقدمة ، ماخوذ ده دمقدمة الجیش څخه مقدمة الجیش هغه جماعت ته وایی چي دلښکر مخکي وي دپاره درهبري مقدمة العلم او مقدمة الکتاب هم تقریبا دغه کار کوي دد مابعد چي کم مقصود راځي ده په مقدمه کي څه شیان ذکر کړي ددې دپاره چي لاره هواره سي ومقصود ته یعنی مقصود په اسانه سي علامه تفتازانی مقدمه پر دوه قسمه کړې ۱- مقدمة العلم ۲- مقدمة الکتاب وروسته وایی مقدمة العلم او مقدمة الکتاب دا هغه شی دئ چي پر ډیرو ملایانو او پر فضلاء ورک دئ ددې په حقیقت نه پوهیږي نو ځکه ددوي خر په خټو کي بند وي يوه پوښتنه ځنی سوې وي خو دوی دهغې جواب نه لري نو وایی زما څخه يې واوره مقدمه پر دوه قسمه ده ۱- مقدمة العلم ۲- مقدمة الکتاب دمقدمة العلم تعریف ما یتوقف علیه الشروع فی العلم علی وجه البصیرة الکاملة چي پر ده موقوفه وي شروع فی العلم پر طریقه دبصیرة کاملة باندی په مقدمة العلم کي تعریف موضوع غرض بیانیږي دمقدمة الکتاب تعریف طائفة من کلامه قدمت امام المقصود لارتباط له بها وانتفاع بها فیه دا يوه طائفه دکلام ده داسي طائفه چي مخکي به وي تر مقصود ددې دپاره چي دمقصود ارتباط راسی په طائفه سره ددې دپاره چي په ده سره نفع ورسیږي په مقصود کي رساله شمسیه دقطبي متن دئ هلته مصنف وایی المقدمة فی تعریفه وموضوعه وغرضه دلته تعریف موضوع غرض عین مقدمه ده نو ظرفیت دشي راغلي خپل نفس ته دا خو دی سو لکه ده چي وویل المقدمة فی المقدمة له دې وجه دا ظرفیة دشي خپل نفس ته راغلی دویمه خبره دا ده چي سکاکی ډیر غټ ملا دئ سکاکی مقدمه دکتاب په اخیر کي راوړی ده او حال دادئ چي مقدمه تر مقصود مخکي وی .

**جواب:** دالمقدمة څخه مقدمة الكتاب اخلو دتعريف موضوع غرض څخه مقدمة العلم اخلو نو ظرفية دشي خپل نفس ته را نه غلی .

سکاکی چي مقدمه دکتاب په اخير کي راوړي هلته دمقدمې څخه مقدمة العلم اخلو په مقدمة العلم کي دا شرط نه سته چي تر مقصود مخته به وي .

علامه تفتازانی وایی ما چي تقسيم دمقدمي وکړی دا دپاره ددفع داعتراضينو..

يوصف بهاً المفرد والكلام والمتكلم) په فصاحت سره موصوفه کیږي مفرد لکه عرب وایی کلمة فصيحة کلام لکه عرب وایی کلام فصيح متكلم لکه عرب وایی شاعر فصيح وكاتب فصيح .

**پوښتنه:** مصنف دفصاحت تعريف ونه کړ او حال دادئ چي تقسيم دشی فرع وي تعريف لره دشي ؟

جواب: يوما به الاشتراک دئ بل ما به الامتياز دئ په تعريف کي ما الا شتراک وي په تقسيم کي ما به الامتياز وي مثلا دكلمې تعريف لفظ وضع لمعنى مفرد وهي اسم وفعل وحرف اسم فعل حرف دادرې سره ضد دي ځکه قسم الشئ ضد له داسم فعل حرف ما به الاشتراک دادئ لفظ وضع لمعنى مفرد داسم فعل حرف ما به الامتياز دادئ لانها امّا ان تدل على معنى الخ

دلته قزويني دمقسم ما به الاشتراک بيان نه کړي قزويني دمقسم ما به الامتياز بيان کړی دا ولی علا مه تفتازانی وایی چي يو شي ما به الاشتراک ولري نو به يې ذکرکوی دلته فصاحة المفرد فصاحة الكلام فصاحة المتكلم دادرې سره داسي متضادين دي چي ما به الاشتراک نه لري ما به الامتياز لري ځکه ده اول وار تقسيم وکړی که ته ووایی چي يو بل ملا دارنګه کار کړی دئ علامه تفتازانی وایی هوکې علامه ابن حاجب اول وار مستثنى تقسيم کړي ده ودوو اقسامو ته ۱- متصل ۲- منقطع ځکه دا ما به الاشتراک نه لري ما به الامتياز لري له دې وجه مفرد کلام متكلم ما به الاشتراک نه لري علامه تفتازانی دفصاحت

تعريف داسي کوی هي تنبيئ عن الابانة والظهور فصاحت دلالت کوی پر اِبانت او ظهور باندي دفصاحت ما ده چي هر ځای راسي پر ابانت او ظهور باندي دلالت کوي لکه عرب وايی فصح الاعجمي دا سړي فَصحَه سو دا هغه وخت ورته وايی اذا نطق لسانه چي ژبه يې دلکنت څخه خلاصه سي داله دې وجي وايی چي دفصحي اصلي ذاتي معنی ابانة او ظهور نه دئ ابانت او ظهور ورسره لازم دئ ځکه دی دتنبئ قيد ورسره لګوي که چيری دده اصلي معنی ابانت او ظهور وای نو ده به ويلي وای وهی بمعنی الإبانة والظهور، فصحه په اصل کي دې ته وايی چي په خوا به يې غړک وشاربله شلومبې به يې په کاسه کي توی کړې بيا به يې کوچي را ټول کړل دا کوچي دابو پرسر ښکاره کېدل دې ته په عربي کي فصحه وايی .

## دیارلسم سبق

**(غلام زيد دا مرکب غير مفيد دئ )**

**پوښتنه** که چيري يو سړی مرکب غير مفيد په فصيحه توګه ووايي نو دا مرکب غير مفيد فصيح دئ تا دفصاحت تقسيم کړي دئ ودرو اقسامو ته فصاحة المفرد فصاحة الکلام فصاحة المتکلم تا تقسيم دفصاحة ومرکب غير مفيد ته نه دئ کړی دا ولی څه وجه ده .

دقزويني دکتاب د.وه غټ شارحين تير سوی يو خلخالی دئ بل زووزنی دئ خلخالی وايی مرکب غير مفيد په کلام کي داخل دئ مراد دکلام څخه ما ليس بکلمة دئ بيا عام تردئ مرکب تام وي که مرکب نا قص وي علامه تفتازانی وايی په ټول عربية کي مرکب غير مفيد ته کلام نه دئ ويل سوي له دې وجه مرکب غير مفيد په کلام کي داخلول\نا جائز دي علامه تفتازانی په مختصر کي دوه جوابه ورکړي دي يو جواب دادئ په مرکب غير مفيد کي فصاحت سته په اعتبار دمفرداتو نه په اعتبار دترکيب سره مثال په غلام زيد کي غلام جلا کلمه ده فصيحه ده زيد جلا کلمه ده فصيحه ده له دې وجه مرکب غيرمفيد په فصاحت فی المفرد کي داخل دئ دويم جواب دادئ مرکب غير مفيد فصيح دئ په اعتبار دترکيب او دا

مركب غير مفيد داخل دئ په مفرد كي مرا د دمفرد څخه ما ليس بكلام دئ بيا عام تر د
مفرد وي كه مركب نا قص وي .

**فائده** مفرد دڅلورو شيانو په مقابل كي راځي ١- مفرد كله دجملې او كلام مقابل وي ٢
: مفرد كله دتثنې او جمعې مقابل وي ٣- مفرد كله دمضاف او شبه مضاف مقابل و
٤-: مفرد كله دمركب مقابل وي دلته مفرد دجملې او كلام مقابل دئ .

**(والبلاغت يوصف بها الاخيران فقط)**

**والبلاغت وهي تنبئ عن الوصول والانتهى**: بلاغت اګاهي وركوى دوصول او انته
لكه عرب وايى بلغ الرجل رجل په صغر كي انتهى ته ورسيدى يعنى بلوغ ته ورسيدى
بلاغت سره دوه شيان موصوفه كيږي ١-: كلام مثل كلام بليغ ٢- متكلم مثل شاعر بلي
ولم يسمع كلمة بليغة :

**فقط**: قط اسم فعل دئ په معنى دانته دئ فاء فضيحيه ده يا فاء په فقط كي دتزين دپا
ده قط لغړه معلوميږي چي فاء پر داخله سوه نو په كلمه كي ښايستوالى راغلي دا هغه وخ
كه فاء په فقط كي دتزين دپاره سي كله فاء فضيحيه وي فضحه په عربو كي شرمندګي
وايى دئ فاء ته فاء فضيحيه ځكه وايى چي دا شرط شرمنده كوي ( فقط) فاء واقع ده
**جواب** دشرط مقدر كي شرط به ته خپله راباسي تقدير دعبارت دادئ **واذا وصفت ب**
**الاخيرين فانته عن وصف المفرد بها :**

## تعريف الفصاحة فى المفرد

**(فالفصاحة فى المفرد خلوصه من تنافر الحروف والغرابة ومخالفة القياس)** دا دفصاح
فى المفرد تعريف دئ هر وخت كه كلمه ددرو امراضو او عيوبو څخه خالي سوه بس دغ
كلمه فصيحه ده په كلمه كي درې شيان دي ١- صورت ٢- ماده ٣- دلالت ١-كلمه
صوري ناجوړې نه لري كه كلمى صوري ناجوړي درلوده دى ته مخالفة القياس وايى ٢-

کلمه به مادی ناجوړي نه لري که کلمې مادی نا جوړي درلوده دې ته تنافرالحروف وایی
٣- کلمه به دلالتی نا جوړي نه لري یعنی ذهن به دلفظ معنی ته ژر سبقت کوی که دکلمې دلالتی نا جوړې وه دې ته غرابت وایی له دې وجه کلمه به ددرو امراضو څخه خالی وي که خالی وه نو کلمه فصیحه ده ځکه کلمه سلب کلی غواړي سلب جزیی نه غواړي که په کلمه کي یو مرض وو بس دغه کلمه غیر فصیحه ده ( **فالفصاحة الكائنة فى المفرد**) په مطول کي محشی وایی فی المفرد په اعتبار دمتعلق صفت دي دالفصاحة دپاره پوښتنه ظرف لره دلالت نه سته پر تعریف دمتعلق باندي نو تقدیر دمتعلق از روی معرفه تقدیر دیو داسي امر دئ چي پر دې هیڅ دلیل نه سته دویم دلته حذف دموصول راځي سره دبعض صلی محشیانو جواب ورکړې دئ چي دا په اعتبار دمتعلق سره حال دي دمبتداء څخه علی ما جوزه بعض النحات وقوله الکائنة لیس تقدیر اللفظ بل تقدیر للمعنی دوهم جواب دادئ چي ظرف په اعتبار دمتعلق سره صفت دئ دالفصاحة څخه که ته سوال وکړي چي دلته حذف دموصول سره دبعض صلی راځي موږ وایو حذف دموصول سره دبعض صلي هغه وخت راځي چي اسم فاعل په معنی دحال او استقبال وي که چیري اسم فاعل په معنی دحال او استقبال نه وو بیا الف اللام په اسم فاعل کي حرف تعریفی دي موصولي نه دئ وههنا کذالک نو حذف موصول سره ډبعض صلی نه راغلی که ته سوال وکړي چي ظرف لره دلالت نه سته پر تعریف دمتعلق باندي موږ جواب ورکو چي تعریف دمتعلق نه دئ پیدا دظرف ددلالت څخه ( **فالفصاحة فى المفرد خلوصه**، فصاحة فی المفرد به خالی وي ( **من تنافر الحروف والغرابة ومخالفة القياس** دتنافر الحروف څخه دغرابت څخه دمخالفة القیاس څخه علامه تفتازانی په مطول کي وایی ده چي کوم تعریف دفصاحت فی المفرد کړي اصل کي دا تعریف نه دئ دفصاحت فی المفرد دفصاحة فی المفرد تعریف دادئ **كون اللفظ جاريا على القوانين المستنبط من استقراء كلامهم كثير الاستعمال على السنة العرب الموثوق بعربيتهم** خلوص دمفرد من تنافر الحروف والغرابة ومخالفة القیاس دا درې سره دکون سره لازم دي له دې وجه دفصاحة فی المفرد حد کون دئ خلوصه من تنافر

الحروف والغرابة ومخالفة القياس دا دفصاحة فی المفرد حد نه دئ يوازي ورسره لازم دئ .

**پوښتنه:** دفصاحت فی المفرد تعريف په لازم سره کول څرنګه دئ دويمه پوښتنه: فصاحت فی المفرد وجودي دئ خلوصه عدمي دئ دوجودي تعريف په عدمي سره کول څرنګه دئ علامه تفتازانی جواب ورکوي وايی داحد نه دئ دارسم دئ که حد وايي بيا به تاسوال کولای په تعريف رسمی کي تعريف دوجودي په عدمي سره جائز دئ په لازم سره جائز دئ .

## څوارلسم سبق

(فالتنافر نحو غدائره مستشزرات الی العلی)

## تعريف التنافر

**تعريف دتنافر:** هو وصف فی الکلمة يوجب ثقلها علی اللسان وعسر النطق بها دايو وصف دئ په کلمه کي داسي وصف چي واجب کوي ثقل دکلمې پر لسان باندي او واجبوي عسر النطق په کلمه سره تنافر الحروف پر دوه قسمه دئ ١-: متناهي فی الثقل ٢- غير متناهي فی الثقل علامه تفتازانی داول مثال ورکوي هِعْخَعْ دا عرابي دناقي څخه سوال وسو اعرابي وويل فقال ترکتها تَرْعیٰ الهِعْخَعْ ما پريښوول ناقه ولاړه ناقه دچراګا ځای ته هِعْخَعْ په ثقل کي انتهاء ته رسيدلی دي مثال الثانی لکه مستشزرات په قول دامرء القيس کي شعر غدائره مستشزرات الی العلی تضل العقاص فی مثنی ومرسل :

**غدائره** :کوڅی ددې مستشزرات پورته سوي دي الی العلیٰ ولوړ طرف ته تضل پټيږي العقاص دويښتانو غونچه فی مثنی ومرسل په اوبدلو او ايله ويښتانو کي په منشاء دثقل کي درې قوله دي يو قول وايی منشأ دثقل قرب دمخارجو دي ځکه دا داسي مثال لري لکه زولنې چي دانسان په پښو کي وی انسان څومره ستړي وي دژبې استعمال په نژدې

نژدې مخارجو کي همدارنګه ستړيا لري ۲- قوله وايی منشأ دثقل بعد دمخارجو دئ ځکه دا داسي مثال لري لکه انسان چي ډير په تپوسي څومره ستړی کيږي ژبه په ليري ليري مخارجو کي استعمالول همدادرنګه ستړيا لري ۳- قول وايی منشأ دثقل جمع دصفاتو متضاده ووده حروف پر ذرې قسمه دي مهموسه رخوه، مهموسه شديده، مهجوره، مثال په مستشزرات کي شين دمهموسه رخوه څخه دئ تاء دمهموسه شديده څخه ده زاء دمهجوره څخه ده علامه تفتازنی وايی منشأ دثقل ذوق سليم دئ **كل ما يعدهُ الذوق الصحيح ثقيلا متعسر النطق فهو تنافر** موږ اول قول ته وويل په چيش کي قرب دمخارجو دئ ته په جيش کي څه وايی دجيش کلمه ثقيله ده که فصيحه ده وايي دجيش کلمه فصيحه ده په شجی کي هم قرب دمخارجو دئ ته په شجی کي څه وايي دشجی کلمه ثقيله ده که فصيحه ده وايي کلمه دشجی فصيحه ده موږ ورته وايو په جيش او شجی دواړو کي قرب دمخارجو سته ته وايي په دواړو کي ثقل نه سته نو ددې څخه دا رامعلوميږي چي منشاء دثقل قرب دمخارجو نه ده موږ دويم قول ته وويل په بلغ غلب کي بعد دمخارجو سته ته په بلغ غلب کي څه وايي چي په بلغ ، غلب کي ثقل سته که نه سته دی وايی په بلغ غلب کي ثقل نه سته نو ددې څخه دا رامعلوميږي چي منشأ دثقل بعد مخارجو نه دئ دريم قول وايي که دمستشزرات څخه مستشرف ويل سوی وای لزال ذالک الثقل دا ثقل به زائله سوې واي لکن په مستشرف کي ثقل سته ځکه شين او راء دصفاتو متضاده څخه دئ موږ علامه تفتازانی ته وويل که چيري منشأ دثقل ذوق سليم وايی نو بيا به مصنف ذکر کړي وای علامه تفتازانی ددې دپاره دوه دليله وايي يو دليل دادئ ذوق باطنی شی دئ ستا ذوق ستا سره دئ دويم دليل دادئ هر کله چي دری سره اقوال منشأ دثقل نه وو نو پاته ذوق سليم سو علامه تفتازانی اکثره حوالې دمعانې پر ذوق سليم ورکوي موږ زوزنی ته وويل چي ته منشأ دثقل قرب مخرج بولې نو ته په **اَلَمْ اَعْهَدْ** کي څه وايي فصيح ده که غيري فصيح که الم اعهد فصيح سي نو بيا خو منشأ دثقل قرب مخرج نه سو که ثقيله سي نو دقران کلمه غير فصيحه سوه هر کله چي دقران کلمه غير فصيحه سوه نو کلام غير فصيح سو چي کلام غير فصيح سو قران غير فصيح سو چي قران غير فصيح سوه نو قران معجزه نه ده لکن الله پاک ټولي دنيا ته چيلنج ورکوي چي قران معجزه ده

**جواب:** زوزنی قياس کوي زوزنی وايی اشتمال دقران پر يو کلمه غير فصيحه باندی [illegible]
فصاحته نه خارجيږي لکه اشتمال دقران پر يو کلمه غير عربي باندي قران له عربية څخه [illegible]
خارجوي قران عربي دئ **قال الله تعالى إِنَّا أَنزَلْنَاهُ قُرآنًا عربيا وقد اشتمل على كلمات غير**
**عربية كالقسطاس فانها كلمة رومية اسم للميزان وكالسجل فانها كلمة فارسية اسم**
**للصحيفة وكالمشكاة فانها كلمة هندية اسم للطاقة التى لاتنفذ و مع اشتماله على تلك**
**الكلمات الغير العربية لم يخرج من كونه عربيا كما تشهد له الاية (دسوقي) :**

**موږ وايو:** دا قياس قياس مع الفارق دئ اول جواب په قران کي دا شرط نه سته چي ټو
کلمات به عربي وی ځکه په قران کي عجمي کلمات سته لکه مشکاة جبرئيل په قران کي
دا شرط دئ چي ټول کلمات به فصيح وي دويم جواب الله پاک قران ته عربي ويلی دي [illegible]
اعتبار داسلوب معنی دول او طرز يعنی دقران کلمات به دعربي په طرز به وي مو[illegible]
زوزنی ته وايو که الم اعهد کلمه غير فصيحه سي بيا به الله پاک په دې خبر وي يا به [illegible]
وي خبر که نه وي خبر نو نسبة دجهل الله پاک ته کيږي که خبر وي نو الله د کلمه غير فصيحه
پر ځای باندي کلمه فصيحه ولي نه راوړي نو نسبة دعجز الله پاک ته کيږي او حال دا دئ
چي الله ﷻ دعجز او جهل څخه منزه او پاک دئ له دې وجه کلمه د الم اعهد فصيحه ده:

غدائره مستشزرات الي العلى په غدائر کي ضمير راجع ده وفرع ته مقصد دشاعر [illegible]
خپل کلام کي بيان دکثرة الشعر دئ الشعر (ويښتان) .

## پنځلسم سبق

**(والغرابة نحوفاحما ومرسنا مسرّجا . اي كالسيف السريجي فى الدقة والاستواء او**
**كالسراج فى البريق واللمعان) :**

## تعریف الغرابت

**دغرابت تعریف:** کون الکلمة وحشیة غیر ظاهرة المعنی ولا مانوسة الاستعمال کلمه به وحشي وي معنی به یې ظاهره نه وي استعمال به یې شناخته نه وي مشهوره به نه وي غیر ظاهرة المعنی الخ دا تفسیر دئ دللوحشیة:

**تقسیم دغرابة** :غرابة پر دوه قسمه دئ یو قسم غریب هغه دئ چي ته دده معنی معلومه وي نو دلغاتو کتابونه به ور پسې لټوې دویم قسم غریب هغه دئ چيَ دکتابونو په کتلو سره یې تا ته معنی نه معلومیږی نو ته به په دغه ماده کي مناسبة بعیده ملحوظ کړې بیا به تاته ددې معنی معلومه سي مثال الاول تکاکاتم وافرنقعوا، مثال الثانی مسرّج، عیسی بن عمر النحوی دخرې څخه را ولویدی خلک وباندي راجمع سوو هغه قول دادئ **مالکم تکأکأتم علیّ تکأکؤکم علي ذِي جِنَّةٍ افرنقعوا علی اي اجتمعتم تنحوا عنی** یو بل قول دئ چي دده پر زړه صفراء راغله ترجمه تا سو لره څه درپېښه ده چي پر ما را جمعه سوي یاست لکه ستاسو جمع کېدل چي پر پریانو وي لیري سئ زما څخه په عربو کی یوه ویل چي دده شیطان په هندیة ژبه خبري کوي پریږدئ یې :

دتکأ کاتم افرنقعوا الفاظ عربو ته دومره نابلده معلوم سو چي دا دعربي الفاظ دئ که داوردو الفاظ دي موږ چي دلغاتو کتابونه وکتل نو دتأکأتم معنی اجتمعتم وه دافرنقعوا معنی انتشار وه:

دغریب دویم قسم مسرج دئ لکه په دې شعر کي شاعر وایي **ومقلةً وحاجبًا مزجّجا+ وفاحما ومرسنا مسرجا**،ترجمه **و مقلةً** توري بوري سترګي ( توري سپینی سترګي ) وحاجبا مزججا نري اوږدې وریځي **وفاحما** سکاره والا ویښتان **اي شعرا اسود کالفحم**:

**فائده :** دنسبة دپاره درې شیان استعمالیږي کله په عربي کی دنسبة دپاره تاء وي لکه مناطقة، حنابلة، اشاعرة، کله دنسبة دپاره یاء وي لکه افغاني کله دنسبة دپاره اسم فاعل

وي لکه لابن ( شدو والا ) تامر(خورما والا ) وفحما سکاره والا ویښتان ، مرسنا دلته مجاز دئ ذکر جزء اراده دکل مرسن د ظرف صیغه ده مرسن معنی ځای د رسی یعنی ښځې یا دغوا پوزه ورسوری کړي ودغه ځای ته چي رسی وراچوي دې ته مرسن وایی اوس دمرسن ځخه ټوله پوزه مراد ده ، ومرسنا پوزه داسي پوزه مسرجا لکه سیف سریجي في الدقة والاستواء داسي پوزه لکه سراج فی البریق واللمعان :

**مسرجا:** په مسرج کي غرابة دئ دمسرج معنی دکتابو په کتلو نه معلومیږي دلته به ت مناسبة بعیده ملحوظ کړې په مسرجٌ کي به دنسبة معنی ملحوظ کړې او دغه نسبة به سیف سریجي او سراج ته وي یعنی زما دمحبوبې پوزه داسي ده مسرجا اي کالسیف السریجي لکه سیف سریجي والا په نرموالي او برابر والی کي کالسراج فی البریق واللمان یا لکه څراغ په رڼا کي علامه تفتازانی په مطول کي پر دې ځای ډیر خوندور اعتراض کړی دئ:

**پوښتنه:** مسرج باب دتفعیل دئ دتفعیل په باب کي نسبة خپلي مادې ته وي لکه دسبّحه نسبة تسبیح ته دلته به هم دمسرج ماده او مبدأ تسریج وي ته ولي نسبة بعیده کوي؟

**جواب:** دمسرج ماده چي د تسریج ماده ده دا د لغاتو په کتابونو کي نه سته بلکي ددې مادې څخه سراج او سریجي موجود دئ ، اشتقاق دسراج او سریجي څخه نه صحیح کیږي ځکه دا دواړه جامدان دي له دې وجه موږ مجبوره یو ونسبتي بعیده ته :

**پوښتنه:** که عربو دغه ماده استعمال کړې وه او معنی یې په بهجه او حسنه سره کړي و بیا ته څه وایي سرّج الله وجهه اي بهجه وحسنه ، الله دي دده مخ ښایسته کړي ګوره دسرج ماده سراج ده نو ماده لري؟

**جواب:** علامه تفتازانی دوه جواب ورکوي اول جواب په ټول عربیة کي او په معتمد کتابونو کي دسرّج ماده سراج نه ده راغلې دا تا له ځانه جوړه کړې ده دسراج څخه:

**دویم جواب:** که دسرج ماده سراج سي نو دا به تا په لیري کتابونوکي پیدا کړې وي نو بیرته غریب سو .

فائده: الغريب غريبان غريب پر دوه قسمه دئ يو غريب قبيح دئ ودې ته غريب متعوّر هم وايی بل غريب حسن دئ غريب حسن داسي دئ لکه مجمل مجمل بعد التفسير اوقع فی الذهن وي غريب حسن بعد التفسير اوقع فی الذهن وي غريب حسن په قران او احاديثو کي راځي مثال إِنَّ الانسانَ خُلِقَ هَلُوْعًا، هلوع غريب حسن دئ وروسته الله تفسير وکړ اذا مَسَّهُ الشَّرُّ جزوعا تکأ کاتم افرنقعوا، منسرج غريب قبيح دئ .

(والمخالفة نحو الحمد لله العلی الاجلل)

## تعريف مخالفة القياس

مخالفة القياس دې ته وايی چي مخالفة وي د ما ثبت عن الواضع څخه لکه استقام استقام په اصل کي استقوَم وو د واو حرکت قاف ته ولاړي واو په الف بدل سو استقام جوړ سو په قانون صرفی سره استَحْوَذَ يستَحوذُ دلته قانون صرفی وايي واو دي په الف بدل سی موږ واو په الف نه بدلوو ځکه دا کلمهٔ واضع داسي وضع کړې ده الله پاک په قران کي وايي اَلَمْ نَسْتَحْوِذْ، نستَحوذ دقانون صرفی مخالفه ده ليکن نَسْتَحْوِذ موافق دئ د ما ثبت عن الواضع، واضع موږ ته وايي دقال يقول قانون به په تمام باب داستفعال کي چلوي سوا داستحوذ وکذالک قَال و عَوِرَ قانون صرفی دادئ چي په مصدر کي حرف علت حذف سي په عوض کي به يې تاء را وړل کيږي لکه عِدَةٌ عدة په اصل کي وِعْدٌ وو واو حذف سو په عوض کي يې تاء راغله عدة سو مثال استقامةٌ استقامة په اصل کي اسْتِقْوام وو بيا دقال يقول په قانون سره دواو حرکت قاف ته ولاړي بيا د قال باع په قانون سره واو په الف بدل سو بيا التقاء دساکنينو راغله الف حذف سو په عوض کي يې تاء راغله استقامة سو په التقاء دساکنينو کي شرط دادئ چي التقاء تنوينی به نه وی التقاء تنوينی دې ته وايی چي په دوو ساکنينو کي يو ساکن تنوين وي لکه په هُدًا کي هدًا په اصل کي هُدَیٌ وو ياء د قال

باع په قانون سره په الف بدله سوه هُدانٌ سو دلته دوه ساکنه دي یو الف دئ بل نون دئ دغه نون نون تنوینی دئ بیا التقاء تنوینی راغله الف حذف سو هدًی پاته سو لیکن واضع راته وویل دا قانون په لغةٌ مائةٌ کي نه سته لغة په اصل کي لغوٌ دئ دقال باع په قانون سره لُغانٌ سو دوه ساکنه راغله یو ساکن الف دئ بل ساکن نون تنوین دئ خو څه وخت چي حرف علت حذف سو په عوض کي یې تاء راغله ځکه دا واضع دا رنګه وضع کړې دئ (نحو الحمدلله العلي الاجلل) په اجلل کي په کار دا وو چي اجلّ ویل سوی وای لام په لام کي مدغم سوی وای لیکن دا مخالفه دئ د ماثبت عن الواضع.

## شپاړسم سبق کریه فی السمع

**(قیل ومن الکراهة فی السمع نحو کریم الجرشی شریف النسب)**

ځینی وایی فصاحة فی المفرد دې ته وایی چي مفرد به خالی وي من تنافر الحروف له تنافره دحروفو والغرابة له غرابته و المخالفة له مخالفة القیاس ددې سره سره به مفرد خالی وي من الکراهة فی السمع له کراهت فی السمع، څخه یعنی لفظ به پر غوږو بد نه لګیږي لکه شاعر وایي په مدحه کي دسیف الدولة چي نوم یې علی دئ **مبارک الاسم اغرّ اللقب ، کریم الجرشی شریف النسب:**

مبارک الاسم: مبارک نامه والا (اغر اللقب) روښانه لقب والا (کریم الجرشی) ښه مزاج والا دئ (شریف النسب) ښه نسب والا دئ:

اغر په عربي کي هغه آس ته وایي چي نور تور وي صرف تندی یې سپین وي لیکن اوس کنایي ده دهر واضح معروف څخه دلته محل داستشهاد جرِشی دئ جرشی پر غوږ ښه نه لګیږي (وفیه نظر) په دې قول دقیل کي نظر دئ علامه تفتازانی ددې دپاره دوه دلیله وایي یو دلیل یې دادی دا کلمه به پرژبه باندي درنه وي یا به پرژبه باندي درنه نه وي که

چيري دا کلمه پر ژبه باندي درنه وه نو بيا دا کلمه داخله ده په تنافر الحروف کي که چيري دا کلمه پر ژبه باندي درنه نه وه نو بيا دا کلمه مخل بالفصاحة نه ده دويم دليل يې دادئ دديې کلمې به پر خپله معنی دلالت نادر وي يا به نادر نه وي که دديې پر خپله معنی باندی دلالت نادر وو نو بيا په غرابة کی داخله ده که دديې پر خپله معنی باندي دلالت نادر نه وو نو بيا مخل بالفصاحة نه ده نوري خبري په مطول او مختصر کي پر دي سوي دي هغه به هلته وايو

## تعريف الفصاحة فی الكلام

(والفصاحة في الكلام خلوصه من ضعف التاليف وتنافر الكلمات والتعقيد مع فصاحتها)

دفصاحة فی الكلام دپاره ۷ شرائط دي ۷ سره به نه وي ۱-: په ټول کلام کي به نحوی قاعده ماته نه وي ۲-: دټول کلام کلمات به پر ژبه باندي درانه نه وي ۳-: په ټول کلام کي به تعقيد لفظی نه وي ۴-: په ټول کلام کی به تعقيد معنوی نه وي دا څلور سره دکلام مجموعې شرائط دئ دريې شرائط افرادی دي ۱-: دکلام په کلماتو کی به تنافر دحروفو نه وی ۲-: غرابة به نه وي ۳-: مخالفة القياس به نه وي مثال قوله تعالی أُولَٰئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ الاية دا يو کلام دئ په دې ټول کلام کي نحوي قاعده ماته نه ده په ټول کلام کي تنافر دکلماتو نه سته په ټول کلام کي تعقيد لفظی نه سته په ټول کلام کي تعقيد معنوی نه سته دکلام په ټولو کلماتو کي تنافر دحروفو نه سته غرابة نه سته مخالفة القياس نه سته ( مع فصاحتها ) خلخالي را ولاړ سوی دئ دمع فصاحتها ترکيب يې کړی دئ خلخالي وايي مع فصاحتها حال دئ په تنافر الکلمات له کلماتو څخه علامه تفتازانی رد ورباندي کړی دئ علامه تفتازانی وايي مع فصاحتها حال دئ دخلوصه دضمير څخه مع فصاحتها حال جوړول دکلماتو څخه غلط، مع فصاحتها حال جوړول دخلوصه دضمير څخه صحيح، دمع فصاحتها حالية نه صحيح کيږي په تنافر الکلمات کي له کلماتو څخه ځکه نفی چي پر کلماتو راسي کلمات ليري کړي کومه کلمه چي مقيده په يو قيد سره وي قيد ليري کړي مقيد پريږی دي اوس يې معنی دا ده کلام فصيح دې ته وايی چه ضعف تاليف به پکښې نه وي تعقيد به پکښې نه وي :

## تنافر الکلمات پر دوه قسمه دئ

یو تنافر دهغه کلماتو دئ چي هغه کلمې فصحي وي بل تنافر دهغه کلماتو دئ چي هغه
کلمې غیر فصحي وي نو دا معنی ضعف تالیف به پکښې نه وي تعقید به پکښې نه وي
تنافر دکلماتو فصیحیه به نوي تنافر دکلماتو غیر فصیحیه که وي پروا نه لري او د
درواغ دي خلاف المقصود دئ علامه تفتازانی وایی مع فصاحتها حال دئ دخلوص
دضمیره څخه نو دامعنی خلوصه، کلام به خلاص وی له ضعف تالیف څخه دتنافر الکلمات
څخه به بالکلیه خلاص وي دتعقید لفظی او معنوی څخه به بالکلیه خلا ص وي مع
فصاحتها حال ددې کلام به داوی چي هره هره کلمه به فصیحه وي

## تعریف ضعف التالیف

(فالضعف نحو ضَرَبَ غلامه زیدًا) تعریف دضعف تالیف ان یکون تالیف الکلام علی
خلاف القانون النحوی المشهور بین الجمهور کالاضمار قبل الذکر لفظاً ومعنی وحکما
ضعف تالیف دې ته وایی چي کلام جوړ وي پر خلاف دقانون نحوی داسي قانون نحوی
چي مشهور عندالجمهور دئ لکه اضمارقبل الذکر لفظا او معنی او حکما مثال ضَرَبَ
غلامه زیدا، ترکیب غلامه فاعل دضرب زیدا مفعوٓل دضرب دغلامه ضمیر راجع دئ
وزید ته او زید مفعول دئ نو اضمار قبل الذکر راغلی لفظا ومعنیً او داسبب دئ دضعف
تالیف اضمار قبل الذکر لفظا جائز دئ مثال فَأَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهِ خِيْفَةً موسی دفی نفسه
ضمیر موسی ته راجع دئ موسی لفظا مؤخر دئ رتبة مقدم دئ اضمارقبل الذکر په فضله
کي ناجائز دئ عند الجمهور خلافا للاخفش ،وابن جنی، اخفش، او ابن جنی وایي اضمار
قبل الذکرچي څرنګه په فاعل کي جائز دي همدارنګه په مفعول کي جائز دي یو عقلي دلیل
وایی بل نقلي دلیل وایی دواړه به ورختم کړو :

**عقلي دلیل یې دادئ :** فعل چي څرنګه فاعل ته ضرورت لري فعل مفعول ته هم داسي
ضروت لري له دې وجه اضمار قبل الذکر په فاعل کي جائز په مفعول کي هم جائز ؟

**جواب:** نحویان دالفاظو څخه بحث کوی له معانیو څخه بحث نه کوي **مثال رأيتُ إمرءةً** ولي فعل به غير دفاعل څخه نه تاميږي فعل به غير دمفعول څخه تا ميږي مثال ضَرَبَ زيدٌ نقلي دليل يې دادئ شاعر وايي جزي **رَبُّهُ عَنِّي عديّ ابن حاتم، جزاء الكلاب العاويات وقد فعل:**

جزئ ربه، جزاء دي ورکړی رب دعادي بن حاتم چا ته جزا ورکړي عادي بن حاتم ته دي جزا ورکړي جزاء الکلاب العاویات لکه جزاء دسپیانو داسي سپیان چي غفول سوي دي وقد فعل او داکار وسو، دوی وایي د**رَبُّهُ** ضمیر راجع دئ وعادی ابن حاتم ته عادی ابن حاتم مفعول دئ نو اضمار قبل الذکر راغلی ددې دپاره علامه تفتازانی جواب ورکوي علامه تفتازانی وایي دربه ضمیر په جزئ کي دنن یو مصدر دئ چي جزاءً دئ هغه ته دربه ضمیر راجع دی له دې وجه دلته احتمال پیدا سو واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال :

**فائده:** هر ځای چي ضمیر راسي مرجع یې نه وي نو ضمیر به دفعل دمصدر ته راجع وي مثال **قوله تعالی اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰی وکذافَارْجِعُوْهُمْ هُوَ اَزْکٰی لَکُمْ**، په اول مثال کي دهو ضمیر عدل ته راجع دئ په دویم مثال کي دهُوَ ضمیر رجوع ته راجع دئ.

## اووه لسم سبق دتنافر بحث

**(والتنافر كقوله شعر وقبر حرب بمكان قفر، وليس قرب قبر حرب قبر، وقوله شعر كريم متى امدحه امدحه والورى معي، واذا مالمته لمته وحدى)**

## تعریف تنافر الکلمات

**ان تكون الكلمات ثقيلة على اللسان وان كان كل منها فصيحة:**

کلمات به پر ژبه درانه وي که څه هم هره کلمه جلا جلا فصیحه وي تنافر دکلماتو پردوه قسمه دئ ۱-: متناهٍ فی الثقل ۲-: غیر متناه فی الثقل، مثال داول **قبر حرب بمكان قفر**

«و ليس قرب قبر حرب قبر: قبر حرب بمكان قفرِ ، قبر دحربي په داسي ځای کي دئ چي هغه خالي دئ له اوبو او وښو څخه وليس قرب قبر حرب قبر او حال دادئ چي دحربي وقبر ته بل نژدې قبر نه سته مثال ددويم کريم متى امدحه امدحه والورى معي، واذامالمته لمته وحدي، په دې دوارو شعرو کي فرق دادئ په اول شعر کي منشأ دثقل نفس اجتماع دکلماتو ده هره کلمه جلا جلا فصيحه ده په دويم شعر کي منشأ دثقل اجتماع دحروفو دکلماتو ده چي هغه تکرار دامدحه دئ خالص جمعه په مابين دحاء او هاء دامنشأ دثقل نه ده ولي لوقوعه في التنزيل مثل فَسَبِّحْهُ په دويم شعر کي استاذ شاګرد ته وويل ته په دې شعر کي څه وايي شاګرد ورته وويل دمدحي په مقابل کي ذم او هجاء وي ليکن دلته دمدحي په مقابل کي لوم دئ استاذ ورته وويل غير هذا اريد ماسوا له دې زه اراده لرم صاحب ورته وويل لا ادري غير ذالک استاذ ورته وويل دغه تکرار دامدحه امدحه سره دجمعي په مابين دحاء او هاء کي دا تکرار دامدحه امدحه منشأ دثقل ده علامه تفتازاني دخلخالي يوه خبره په مطول کي ذکر کوي خلخالي وايي اصل تنافر دکلماتو دې ته وايي چي ديوې کلمې په بغل کي بله کلمه کښيږدي او هيڅ ظاهري تناسب نه وي لکه جمع دسطلٍ دقنديل سره سطل معنى پياله قنديل معنى څراغ له دې وجه دادواړي کلمې ظاهري مناسبة نه لري نو دلته تنافر سته علامه تفتازاني وايي دوي کلمې چي سره جمعه سي او مناسبت ونه لري دا مخل بالبلاغت دي مخل بالفصاحة نه دئ کلام بې محله راوړل بلاغت خرابو فصاحة نه خرابوي سطل و قنديل مناسبت نه لري دواقع په اعتبار له دې وجه دتنافر داسي مفهوم بيانول ناجائز دي لکه خلخالي چي بيان کړي:

دويم شعر ترجمه (کريم متى امدحه امدحه والورى معي، معنى دئ ښه سړی دئ څه وخت چي زه دهغه مدحه وکړم نو زه مدحه وکړم په داسي حال کي چي خلګ زما سره ملګري وي (واذا مالمته لمتهُ وحدي هغه وخت چي زه دده ملامتيا بيانوم نو زه دده ملامتيا بيان کړم په داسي حال کي چي زه يوازي يم علامه تفتازاني وايي په اذا مالمتُه کي ده وباچا ته دا ورښکاره کړه چي زه بلکل په تا پسي بد رد وايم ولي اذا او مالمته چي سره

يو ځای سي پر تحقيق دلالت کوی ليکن ما خلک معلومول چي زه ستا مدحه کوم خلک څه کوی او زه ستا ملامتيا بيانوم خلک څه کوي .

## اتلسم سبق تعريف التعقيد

(والتعقيد ان لا يكون ظاهر الدلالة على المراد لخلل اما في النظم)

والتعقيد: اى كون الكلام معقدا: تعقيد مصدر دی معنی يو شي ته غوټه ورکول .

**پوښتنه:** تعقيد صفت دمتکلم دئ او تا تعريف دفصاحت فی الکلام شروع کړی دئ نو حمل دأن لا يكون الخ پر تعقيد نه صحيح کيږی ؟

**جواب:** اى كون الكلام معقدا، تعقيد مصدر مبنی للمفعول دئ مصدر مبنی للفاعل نه دئ دکون الکلام معقدا تعريف دادئ ان لا يكون الكلام ظاهر الدلالة على المراد لخلل اما في النظم كلام به ښکاره دلالت نه کوي پر معنی مراد باندي دوجي دخلل فی النظم، لا يكون په لايكون کي ضمير راجع دئ وکلام ته :

المراد: دمراد په قيد سره غرابت خارج سو ځکه دغرابت دلالت ښکاره نه وي پر معنی موضوع له باندي دتعقيد دلالت خو پر نفس معنی باندي ښکاره وي ليکن دتعقيد دلالت ښکاره نه وي پر هغه معنی مراد باندي اوس که يو څوک تاته ووايي چي دغرابت او د تعقيد څه فرق دئ نو ته به ورته ووايي دغرابت او دتعقيد دوه فرقونه دي اول فرق غرابت په کلمه کي راځي تعقيد په کلام کي راځي ، دويم فرق دغرابت پر نفس معنی باندي دلالت ښکاره نه وي دتعقيد پر نفس معنی باندي دلالت ښکاره وي چي دهري کلمې جلا جلا معنی وکړی ليکن دتعقيد دلالت ښکاره نه وي پر هغه معنی مراد باندي (لخلل اما في النظم واما في الانتقال : عبدالحکيم سيالکوټي يوه نکته ليکلي په حاشيه کي وايي په قران کي خفی مشکل متشابه مجمل سته نو دتعقيد په تعريف کي خفی مشکل مجمل

متشابه را داخل سوه ځکه خفی مشکل مجمل متشابه دا ښکاره دلالت نه کوي پر معنی مراد باندي ددې خو دا معنی چي چيري خفی مشکل مجمل متشابه وي هلته به تعقيد وي او په کوم کلام کي چي تعقيد وي هغه کلام دفصاحته ووتي، او کوم کلام چي دفصاحته ووتی هغه کلام دبلاغته ووتی او کوم کلام چي دبلاغته ووتی هغه کلام داعجاز وحد ته نه رسيږي چي داعجاز وحد ته نه ورسيدی قران نه دئ نو دا معنی په کوم ځای کي که خفی مشکل مجمل متشابه وو هغه قران نه دئ عبدالحکيم سيالکوټي وايي لخلل اما فی النظم واما فی الانتقال داعبارت به ته دتعريف حصه جوړوي که دا عبارت دتعريف حصه نه سي نو به دتعقيد تعريف پر خفی مشکل مجمل متشابه صادق راسي ولي خفی مشکل مجمل متشابه ښکاره دلالت نه کوي پر معنی مراد باندي څه وخت چي لخلل اما فی النظم واما فی الانتقال دتعريف حصه جوړه سوه نو خفی مشکل مجمل متشابه دتعقيد دتعريف څخه خارج سوه ځکه خفی مشکل مجمل متشابه دا چي ښکاره دلالت نه کوي پر معنی مراد باندي دا ديو بل غرض د وجي تعقيد چي ښکاره دلالت نه کوي پر معنی مراد باندی دا ددې وجي چي خلل په لفظ کي وی يا خلل په انتقال کي وي لخلل اما فی النظم واما فی الانتقال دا قضيه منفصله ده دقضيې منفصلې علامه داده چي اما به راغلی وي يابه او راغلی وي لخلل اما فی النظم واما فی الانتقال دا قضيه منفصله مانعة الخلو ده خلو ناروا ده داسي نه سي کېدای چي په کلام کي دی تعقيد وی او نه دي خلل په لفظ کي وي او نه دي خلل په انتقال کي وي خامخا به خلل يا په لفظ کي وي يا به خلل په انتقال کي وي جمع روا ده يوځای به په کلام کي تعقيد وي خلل فی النظم خلل فی الانتقال دواړه به وي (**کقول الفرزدق فی خال هشام شعر وما مثله فی الناس الا مملکا ابو امه حیٌّ ابوه يقاربه ، اي حيٌّ يقاربه الا مملکا ابو امه ابوه**) خلل فی النظم دې ته وايي مبتدا پر يوه خوائي خبر پر بله خوائي موصوف يوې خوا ته ځغلی صفت بلي خوا ته، مبدل منه يوې خوا ته ځي بدل بلي خوا ته:

**قانون :** دادئ مبدل منه او بدل متصل وي مبتداء او خبر متصل وي موصوف او صفت متصل وي .

**پوښتنه:** دا خو عین ضعف تالیف دئ چي مبتدا یو خوا ته ځي خبر بلي خوا ته ځي مبدل منه پر یوه ځي بدل پر بله، موصوف یوې خوا ته ځغلی صفت بلی خوا ته، نو دتعقید لفظی ضرورت نه سته ذکر دتعقید لفظی لغو او مستدرک دئ ؟

**جواب:** علامه تفتازانی په مطول او مختصر کي وایی ذکر دتعقید لفظی لغو او مستدرک نه دی عین ضعف تالیف نه دئ ځکه مبتداء یو ځای راوړل خبر بل ځای راوړل مستثنی پر مستثنی منه مقدم کول دموصوف او صفت په مابین کي فصل راوړل دمبدل منه او بدل په مابین کي فصل راوړل دا ټوله په کلام دعربو کښي جائز دئ لیکن یوازی ذهن سترړی کوي چي مبتداء یو ځای وي خبر بل ځای وي موصوف یو ځای وی صفت بل ځای وي دضعف تالیف او دتعقید لفظی په مابین کي نسبة دعموم خصوص من وجه دئ ضعف تالیف به وي بدون التعقید مثال **جاءنی احمدٌ بالتنوین** تعقید لفظی به وي ضعف تالیف به نه وي دا په هغه صورت کي چي اجتماع ددغه امورو دهر یوه شائع الاستعمال سي په کلام دعربو کي ضعف تالیف او تعقید لفظی دواړه جمع کیږي په بیت دفرزدق کي کقول الفرزدق فی مدح خال هشام لکه قول دفرزدق په مدحه کي دماما دهشام ماما ابراهیم دئ هشام دابراهیم خوریي دئ **وما مثله فی الناس الا مملکا ابوامه حي ابوه یقاربه.**
ترجمه په دنیا کي یو ژوندي سړي دابراهیم په مثل نه سته مګر باچا چي هغه باچا هشام دئ دهشام دمور پلار دابراهیم پلار دئ .

**وما مثله فی الناس حي یقاربه الا مملکا ابوامه ابوه.** ددې شعر اصل ترکیب دادی **ما** مشابه بلیس **مثله** مبدل منه **حيّ** موصوف **یقاربه** صفت موصوف مع الصفة دا به مستثنی منه سي **الا** حرف استثناء **مملکا** موصوف **او امه** مبتداء **ابوه** خبر مبتدا مع الخبر دا به صفت سي دمملکا موصوف مع الصفة دا به مستثنی سي دحيٌ مستثنی منه مع الاستثناء دا به بدل سي دمثله مبدل منه مع البدل دا به اسم سي دما **فی الناس** په اعتبار دمتعلق خبر دئ **دما** تطبیق دمثال د ممثل له سره دادئ :

ابو امّه مبتداء ابوه خبر دمبتدا او دخبر په مابین کي فصل په حيٌّ راغلي دئ لکه په دې مثا
کی ابو اُمِّه حيٌّ اَبُوهُ، حيٌّ موصوف يُقارِبُه صفت دموصوف او صفت په مابين کي فصل
په ابوهٗ راغلی دئ لکه په دې مثال کي حيٌّ اَبُوه يُقارِبُه حيٌّ مستثنی منه مُمَلكا مستثنی
تقديم دمستثنی راغلی دئ پر مستثنی منه باندي لکه په دې مثال کي الا مُملكا ابو اُمِّه
حيٌّ ابوه يقاربه مثله مبدل منه حيٌّ بدل دمبدل منه او دبدل په مابين کي ډير فصل راغلي
دئ لکه په دې مثال کي ماملثلهُ فی الناس الا مملّكا اَبُو اُمِّهٖ حيٌّ.

## نولسم سبق کلام به ظاهر الدلالت نه وي له وجه دخلل په انتقال کي

(واما فی الانتقال کقول الاخر شعر سأطلب بعدالدار عنکم لتقربوا وتسکب عيناي الدموع لتجمدا)

واما فی الانتقال عطف دئ پر اما فی النظم باندي اي لا يکون الکلام ظاهر الدلالة علی المراد لخلل واقع فی الانتقال کلام ښکاره دلالت نه کوي پر معنی مراد باندي له وجه دخلل داسي خلل چي واقع دئ په انتقال کي ما ته ګوره دلفظ يوه معنی لغوي او حقيقي ده بله معنی يې مجازي ده تعقيد معنوي دې ته وايي چي ذهن دمعنی لغوي معنی حقيقي څخه ومعنی مجازي ته انتقال په اسانتيا سره نه کوي ځکه دمعنی لغوي حقيقي او دمعنی مجازي په مابين کی وسائط ډير وي خفی قرائن وي لکه شاعر وايي سأطلب بعد الدار عنکم لتقربوا وتسکب عيناي الدموع لتجمدا، په سأطلب کي سين زائد دئ دپاره دتاکيد لکه په قران کي الله پاک وايی سَنَكْتُبُ مَاقَالُوا، دلته په سنکتب کي سين زائد دئ دپاره دتاکيد ، دشعر ترجمه ساطلب يقيني زه طلب کوم بعد الدار دسرای ليري والي، عنکم ستاسو څخه ، لتقربوا، ددې دپاره چي تاسي رانژدې سي په تَسْكُبُ کی دوه روايته دي يو روايت دادئ چي تسکبُ مرفوع وويل سي نو به عطف سي پر ساطلب باندي دويم

روایت دادئ چي **تسکبُ** منصوب وویل سي نو به عطف سي پر **لتقربوا** باندي لتقربوا منصوب دئ په ان مقدر سره تسکبَ به هم منصوب سي په ان مقدره سره علامه تفتازانی وایي ظاهرا دمتکلم دمراد سره دا لګیږي چي تسکبُ مرفوع وویل سي عطف سي پر ساطلب باندي تسکب که عطف سي پر لتقربوا نو به تسکب علت سي دساطلب ځکه معطوف په حکم کي دمعطوف علیه وي ، تسکب که عطف سي پر ساطلب نو به تسکب جمله مستأنفه سي یقینی زه طلب کوم دسرای دلیري والی ستاسو څخه ددې دپاره چي تاسي رانژدې سي **وتسکب عینای الدموع لتجمدا** زما سترګي تویه وي اوښکي ددې دپاره چي وچي سي داسږي دوي کنایه کوي یوه کنایه په تسکب عینای الدموع کي کوي بله کنایه په لتجمدا کی کوي یوه کنایه اصاب ده حق ده بله کنایه اخطأ ده کنایه دې ته وایي چي ذکر دملزوم وکړی اراده دلازم وکړي **تسکب عینای الدموع** زما سترګي اوښکی تویه وي دا **دتسکب عینای الدموع** معنی لغوی معنی حقیقی ده داوښکي دتویدلو سره غم لازم دئ تقریبا او غالبا واسطه فراق داحباء دئ دا کنایه حق ده ولی ذکر داوښکو دتویدلو اراده دغم خواشینی دې ته ذهن په اسانی سره ځي په واقع او نفس الامر کي که سړی ژاړي نو ذهن تک ودې ته کوي چي داسړي غمجن دئ خواشینه دئ داسړي دلتجمدا په کنایي کي خطاء دئ دلتجمدا معنی حقیقي وچوالی دسترګو دلتجمدا لازمي معنی داده دسترګو داوښکو دوچیدو ضرورت سته او دا سترګي اوښکي نه تویوي نو بخل کوي د وچو سترګو سره بخل بالدموع لازم دئ دا سړي را ولاړ سوي دئ دلتجمدا سره یې سرور فرحه لازمه کړی ده دسترګو دوچوالي څخه ذهن وبخل بالدموع ته ځي یعنی ذهن و دې ته ځي چي دده سترګي په اوښکو تویولو کي بخل کوي دې سړي دلتجمدا څخه ذهن سرور ته بیولي دي ذهن دلتجمدا څخه فرحي او سرور ته نه ځي په دغه ځای کي داسړی غلط دئ ځکه ذهن دلتجمدا څخه وفرحي او سرور ته په اسانی نه ځي داسړي دشعر داترجمه کوي زه یقینی طلب کوم دسرای دلیري والی ستاسو څخه ددې دپاره چي تاسي را نژدې سي او زما سترګی او ښکي تویه وي ددې دپاره چي خوشحالی راسي :

موږ وایو اصلي معنی يې داده زما سترګي به دومره اوښکي توي کړي چي اخير به بخل بالدموع وکړي علامه تفتازانی وایی دشاعر مقصد او مطلب څه دئ علامه تفتازانی وايي خلګ ددې شعر داسي ترجه کوي وايي زمانه دسړي دضدکار کوي يعنی زمانه دسړي دمقصد او دمطلوب دنقیض کارکوي زما مقصد وصال دئ چي زما او ستاسو به محبت وي، زه به زمانی ته بعدالدارښکاره کړم زمانه به وصال را ولی زه به زمانی ته تسکب عینای الدموع ښکاره کړم زمانه به خوشحالی راولی :

له دې وجه خلګ وايي دشاعر مقصد دادئ په سأطلب بعد الدار کي به زه فراق ورښکاره کړم لتجمدا زمانه به خوشحالې راولی علامه تفتازانی وايي خلګ ددې شعر داسي تشریح کوی خو دا ډېره عجيبه ده سبحان الله څه انچيکه ترجمه کوی دشعر تفتازانی وايي قطعاً داسړي والله که دارنګه وايي چي زمانه دي دسړي ضد کوي که ما فراق غوښتي زمانه به قرب راولی که ما غم غوښتي زمانه به خوشحالی راولی دا دي له ځانه جوړه کړه یاره :

علامه تفتازاني وايي دا سړي دارنګه وايي قانون دادئ **لکل عسر یسرٌ** دهري سختي وروسته اسانتیا سته او دهری تنګي وروسته خوشالي سته يعنی دخلاصیدو لا ره سته نو دې وايي زه به بعدالدار طلب کوم اخير به اسانتیا قرب راسي زه به خواشنی او غم کوم اخير به خوشحالی راسي له دې وجه دهري سختي وروسته اسانتیا سته دهري بدايي وروسته نهايه سته زه که نن داسختي پرځان یوسم او خواشنی پر ځان یوسم اخيري به قرب راسي خوشحالی به راسي (**فان الانتقال من جمودالعين الى بخلها بالدموع**) انتقال دذهن دجمود العين څخه به وي وبخل ته دعين: عين به بخل کوي **بالدموع** په اوښکو تويدلو سره (**لا الى ماقصده من السرور**) ذهن تګ نه کوي وهغه سرور ته چي ده قصد کړي دهغه ( **قيل ومن کثرة التکرار وتتابع الاضافات** ) بعض علماء وايي فصاحة في الکلام دې ته وايي **خلوصه مما ذکر ومن کثرة التکرار وتتابع الاضافات** کلام به خالی وي دمما ذکر څخه ددې سره سره به کلام خالی وي دکثرة التکرار څخه يعني په کلام کي به کثرة التکرار نه وي کلام به خالی وي دتتابع الاضافات څخه يعنی په کلام کي به تتابع

داضافاتو نه وي مثال دکثرة التکرار (کقوله شعر وتُسعدُني فی غَمْرَةٍ بعدَ غَمْرَةٍ سُبُوحٌ لَهَا مِنهَا عَلَيْهَا شَوَاهِدُ) ترجمه تسعدنی زما کومک کوي فی غمرة په سخترپیا او سختی کي بعد غمرة وروسته تر بلي ستري او سختي سبح په عربي کي دې ته وايي چي سرې داوبو پر سر لامبو وهي لاسونه يوي او بلي خوا ته وهي پرمخ روان وي موږ چي د الله تسبیح بیانوو هغه دارنګه کوو چي الله جا جلاله دتمام عیبو خلاص دئ سبوحٌ داسي تګ او داسي جوتکه وهي لکه سړی چي لامبو وهي نه هلاکيږي نو دا آس داسي تګ کوي چي سړی نه غورځوي لها داسي آس چي ددې آس دپاره شواهد دلائل علامات سته منها په حال کون ددې علاماتو چی دا راناشی دي دآس له بدن څخه عليها او دلالت کوي دآس پر ښه والي ، لها منها عليها داکثرة التکرار دئ :

تکرار دې ته وايي ذکر الشئ مرة بعد اخری یو شي یو وار ذکر کېدل وروسته بیا ذکر کېدل یو شي چي دوه واره ذکر سي دا يو تکرار دئ دويم وار چي یو شي دوه واره ذکر سي نو به دا دوه تکراره سي دريم وار چي یو شي دوه واره ذکر سي نو به دا دري تکراره سي لهذا یو شي چي شپږ واره ذکر سي نو دا کثرة التکرار دئ :

**پوښتنه:** په دې شعر کي چي سبوح لها منها عليها شواهد دلته خو تکرار سته لیکن کثرة التکرار خو نه سته نو بيا دا مثال دکثرة تکرار دپاره غلط دئ ؟

**جواب:** علامه تفتازانی وايي ته په دې ځای کي غلط سوی يې چي جفت جفت ، جوړه جوړه، ته کثرة التکرار وايي علامه تفتازانی وايي دکثرة التکرار دا معنی چي یو شي دوه واره ذکر سي نو دا تکرار دي چي دريم وار ذکر سي داکثرة التکرار دئ تفتازانی وايي منم اول وار چي یو شي جوړه ذکر سي نو دا تکرار دئ ددې وروسته بیا جوړه نه غواړی اوس په دې شعر کي چي لها منها عليها دئ دلته کثرة التکرار سته مثال دتتابع الاضافات.

**(قوله شعر حمامة جرعی حومة الجندل اسجعي، فأنت بمرأی من سعاد ومسمع**

**حمامة** مضاف دی و**جرعي** ته **جرعی** مضاف دی و**حومة** ته **حومة** مضاف دی و**جندل**
ته بس دغه تتابع الاضافات دی، دشعر اصلی ترجمه داده اې کوترې دریګنی ځمکې
دلوې حصې ددبرنی ځمکې غومبر کوه ددې شاعر محبوبې (سعاد) دکوترې ووغمبر
غوږ نیولې وو او شاعر وسعاده ته کتل نو ځکه یې کوترې ته وویل چې ته غومبر مه
کوه چې بیا سعاده ځي:

بعض علماء ددې شعر ترجمه داسې کوي اې کوترې دریګنی ځمکې دلویې حصې ددبرني
ځمکې غومبر کوه، انت بموضع ترین منه سعاده وتسمعین کلامها،ته په داسې ځای کې
یې چې سعاد وینی او دسعاد خبرې اورې دشعر داسې ترجمه کول غلطه ده نقلا او عقلا
دشعر داسې معنی کول غیر صحیح ده نقلا ځکه مجرور په من سره وروسته تر مرأی او
مسمع هغه فاعل الرؤیة والسماع دئ، کلام دبعضو علماء دا تقاضا کوي چې مجرور
من سره هغه مفعول دئ دشعر داسې معنی کول غیر صحیح دئ عقلا ځکه حمامة چې
دسعاده او از اورې نو پر حمامه باندې واجب دئ سکوت ځکه یوشی په یو وار باندې وي

او سماع نه سي کولای (**وفیه نظر**) په دې کې نظر دئ مخکې بعضو علماؤ وویل چې
کثرة التکرار او تتابع الاضافات مخل بالفصاحة دئ موږ بعضو علماؤ ته دکثرة التکرار
او تتابع الاضافات جوابونه ورکوو اول دکثرة التکرار جواب ورکو موږ وایو داکثرة
التکرار به ژبه سترې کوي پر ژبه به درانه وي بیا به ژبه نه سترې کوي پر ژبه به درانه نه وي
که داکثرة التکرار ژبه سترې کوی پر ژبه باندې درانه وی نو بیا داکثرة التکرار په تنافر
دکلماتو کې داخل دئ که داکثرة التکرار ژبه نه سترې کوي پر ژبه باندې درانه نه وي نو
بیا دا کثرة التکرار مخل بالفصاحة نه دئ کر سره ته څنګه دا جُرئت کوي چې کثرة التکرار
مخل بالفصاحة دئ مطلقا کثرة التکرار مخل بالفصاحة نه دئ مطلقا ځکه دا واقع دئ په
قول دعلیه السلام کې قال النبي علیه السلام الکریم ابن الکریم ابن الکریم ابن الکریم
یوسف بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم بل مثال دکثرة التکرار چې مخل بالفصاحة نه وي

**قوله تعالی وَنَفْسٍ وَّمَا سَوَّاهَا فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا، الایة :**

دويم دتتابع الاضافات جواب وركو موږ وايو دا تتابع الاضافات به ژبه سترې كوي پر ژبه باندي درانه به وي يا به تتابع الاضافات ژبه نه سترې كوي پر ژبه باندي به درانه نه وي كه تتابع الاضافات ژبه سترې كوي پر ژبه باندي درانه وي نو بيا تتابع الاضافات په تنافر دكلماتو كي داخل دى، كه تتابع الاضافات ژبه نه سترې كوي پر ژبه باندي درانه نه وي نو بيا تتابع الاضافات مخل بالفصاحة نه دئ :

گرسره ته دا جرئت څنگه كوې چي تتابع الاضافات مخل بالفصاحة دى، تتابع الاضافات په قران كي واقع دى ، مثال قوله تعالى ﴿مِثْلَ دَأْبِ قَوْمِ نُوحٍ﴾ الاية بل مثال قوله تعالى ﴿ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهُ زَكَرِيَّا﴾ الاية .

## شلم سبق تعريف الفصاحة فى المتكلم

**(والفصاحة فى المتكلم ملكة يقتدر بها على التعبير عن المقصود بلفظ فصيح):**

متكلم به موږ څه وخت فصيح بولو متكلم به موږ هغه وخت فصيح بولو چي په ده كي يو ملكه وي داسي ملكه چي دى به قدرت لري ددغې ملكې په زور چي هر وخت دى وغواړي په لفظ فصيح سره تعبير كولای سي د هر مقصود څخه.

ملكه يو داسي شى دئ ، : چي په سترگو نه ليدل كيږي قائم بالغير وي ملكه يو باطنى شى دئ، ملكه دمقولة الكيف څخه ده :

**دملكې تعريف: انها كيفية راسخة فى النفس :**

دايو كيفيت دئ داسي كيفيت چي هميشه به وي په نفس كي دكيفيت تعريف په نيز دقدماء دادئ **انها هيئة قارة لا تقتضى القسمة ولا نسبة لذاته** كيفيت يو داسي هيئتي قاره دئ چي تقاضا دقسمت نه كوي تقاضا دنسبت نه كوي بالذات فوائد القيود په اول قيد سره حركت اوزمان ووتي حركت او زمان هغه اعراض دئ چي دمسبوق عدم دلاحق دوجود

دپاره سبب دئ دزمان مثال لس بجې دي ګوره يعنى دلسو بجو عدم ديو لسو بجو
دوجود دپاره سبب دئ يعنى لس بجې به ختمېږي بيا به يولس بجې را ځي دحرکت مثال
پر ځمکه روان يم قدمونه اخلم ما چي قدم کښېښود اوس چي زه بل نوى قدم پر ځمکه ږدم
نو دزاړه قدم عدم دنوى قدم دوجود دپاره سبب دئ يعنى يو وار به زوړ قدم ختمېږي بيا به
نوى قدم په وجود کي راځي :

په لاتقتضى القسمة په دې قيد سره کم مقداري ووتى ځکه کم مقداري تقسيم قبلوي مثلا
يو ګونى غنم دي اوس دايوه ګونى غنم تقسيم قبلوي شل کيلو دي يوې خواته سي شل
کيلو دي بلي خوا ته سي کيف تقسيم نه قبلوي يعنى کيف مقدار نه قبلوي يعنى کيف ته
عدد نه ويل کېږي يعنى کيف ته طول نه سي ايښودلاى يعنى داسي نه سي ويلاى چي په
تا کي درې سيره ملکه ده او په نيک کي څلور سيره ملکه ده دلانسبة په قيد سره اضافه
ووتى اضافة لکه اب او ابن تصور دهر يوه له دوې دوو موقوفه دئ پر تصور دهغه بل
باندي دکيف تصور موقوفه نه دئ په غير پوري احسن تعريف دکيف په نيز دمتاخرينو
دادئ انه عرض لا يتوقف تصوره على تصور غيره ولا يقتضي القسمة واللاقسمة في
محله اقتضاء اوليا دلا يقتضي القسمة په قيد سره کميات ووته دلا قسمة په قيد سره
وحدت او نقطه ووته ځکه وحدت بلکل تقسم نه قبلوي نقطة نهاية الخط ته وايي هم
يو ددوارو څخه بسيط دى عرض دى تقاضى کوي دنه قسمت اقتضاء اوليا :

**پوښتنه:** مثلا تا دفقه سل مسائل ياد کړى ۵۰ په طهارت کي ۵۰ په صلواة کي ګوره کيف
تقسيم قبول کړ تا ويل کيف تقسم نه قبلوي دلته خو کيف تقسيم قبول کړ ؟

**جواب:** اقتضاء اوليا کيف تقسيم نه قبلوي، په خپل ځا ن کي کيف تقسيم قبلوي په ضمن
دغير کي مثال په يو مولوي کي ملکه ده ته دا نه سي ويلاى چي دغه يې پښې دي دغه يې
غوږونه دي دغه يې سترګي دي يعنى دا نه سي ويلاى چي دا يوه کيلو ده يا دا څلور کيلو
ده په ضمن دغير کي تقسيم قبلوي ستا سل مسائل دفقه ياد دي دا يو کيفيت تا ته عارض
دئ دا کيفيت تقسيم قبلوي ملکه يو کيفيت دئ داسي کيفيت چي راسخ به وي په نفس کي
که راسخ نه وو بيا دا حال دئ ملکه نه ده تقريبا غالبا په طالب العلمي کي په سړى کي حا

ږي ملکه نه وي بيا چي سړی عالم سي ډير درسونه وکړي بيا هغه کيفيت راسخ سي په ده کي ملکه پيدا سي ځکه علماء وايي که په طالبي کي دسړي ۴۵ فصيده مطالعه خلاصه سوه نو دا بهترين طالب دئ او دا په راتلونکي کي بهترين عالم جوړېدای سي که دطالبي په دور کي دسړي مطالعه ۴۵ فيصده ته و نه رسېده نو دا طالب دي پکوړې خرڅوي دمور او پلار خدمت دي وکړئ.

**ملكة يقتدر بها:** پوښتنه: محشيان او علامه تفتازاني وايي مصنف يعبّر ولی نه وايي سره ددې چي يعبّر اخصر هم دئ مصنف يقتدر ولی وايي ؟

**جواب:** که چيري مصنف يعبر ويلی وای نو تا به دمتکلم تعبير ته کتلای که ده تعبير کړی وای نو بيا به تا ده ته فصيح ويلای او داخبره غلطه ده مصنف چي يقتدرُ وويل نو متکلم که تعبير وکړ او که تعبير ونه کړ متکلم فصيح دئ **عن المقصود بلفظ فصيح** متکلم به دهر مقصوده تعبير په لفظ فصيح کولای سي په المقصود کي الف اللام داستغراق عرفي دئ که يو سړی په ښو الفاظو غيبت کوي مدحه په ښو الفاظو نه سي کولای يا مدحه په ښو الفاظو سره کوي ليکن غيبت په ښو الفاظو سره نه سي کولای نو داسړی فصيح نه دئ دمتکلم مقصود که مدحه وي که ذم وي دی به تعبير په لفظ فصيح کولای سي باچا خپلي ښځي ته هار جوړ کړی وو باچا په دې هار ډير فخر کاوو چي دا هار ډير قيمتي دئ او په خپله ښځه يې هم فخر کاوو چي دا ډيره ښايسته ده يو شاعر را ولاړ سو دده دهار او دښځي پې خلاف شعر ووايو، اوداسي يې وويل، هار خو ډير ښايسته دئ ليکن داهار چي ددې په غاړه سو ضَاع بې ځايه سو بل سړی ددې شاعر سره ضد درلودی، نو داشعر يې دده پر دروازه وليکي باچا چي وليدی ډير په خښم سو نو شاعر يې را وغوښتی شاعر چي راغلی شاعر پوه سو چي قيصه خو خونډوره نه ده نو پر عين يې لاس تير کړ همزه ور څخه جوړه سوه ای ضاءَ هار خو ډير ښه هار دئ بيا چي ددې په غاړه سو نور وځلېدی ګوره ددې شاعر يو ځای مقصد ذم وو نو ده ضاع ووايو بل ځای دشاعر مقصد مدحه وه نو ده ضاء ووايو له دې وجه متکلم به دهر مقصوده تعبير په لفظ فصيح کولای سي :

**بلفظ فصیح**: **پوښتنه**: مصنف دا عبارت ولي ووایو بلفظ فصیح مصنف داسي عبارت ولی ونه وایو بکلام فصیح؟

**جواب**: مصنف دا عبارت ووایو بلفظ فصیح ددې دپاره چي دا عام سي مفرد او مرکب ته.

## یوویشتم سبق البلاغة فی الکلام

*(والبلاغت فی الکلام مطابقته لمقتضی الحال مع فصحاته):*

بلاغت ددووشیانو په وجود کي راځي یو فصاحة الکلام بل مطابقة، هر وخت که په کلام کي فصاحت وو او په کلام کي مطابقت وو بس دا کلام بلیغ دئ دبلاغت الکلام دپاره ۸ اته شرطونه دي ۷ شرطونه دفصاحة الکلام وو ۸ شرط دمطابقت دي دفصاحة الکلام شرطونه دادي ۱-: په مجموعه کلام کي به نحوي قاعده ماته نه وي ۲-: تنافر الکلمات به نه وي ۳-: تعقید لفظی به نه وي ۴-: تعقید معنوي به نه وي ۵-: په هره هره کلمه کي به تنافر الحروف نه وي ۶-: غرابت به نه وي ۷-: مخالفة القیاس به نه وي ۸-: کلام به مطابق وي لمقتضی الحال دحال دتقاضا سره:

## والبلاغت فی الکلام مطابقته لمقتضی الحال مع فصاحته:

درې خبری دي یوه خبره په مطابقة کي دوّیمه خبره په مقتضی کي دریمه خبره په حال کي اوله خبره په حال کي، دحال تعریف **هو الامر الداعی الی ان یعتبر مع الکلام الذی یؤدی به اصل المراد خصوصیة ما**: **هو**: حال، **الامرُ**: یو شی دئ **الداعی** چي متکلم را بولي **الی ان** ودې ته **یعتبر** متکلم دي معتبر کړی **مع الکلام الذی یؤدی به** اصل **المراد** سره دهغه کلامه چي اداکیږي په ده سره اصل مراد خصوصیة ما:

**یو خاص خصوصیت:** زه متکلم یم نصیب الله مخاطب دئ مخاطب ته یو کیفیت عارض دئ هغه کیفیت انکار دئ دمخاطب انکار الامرُ یو شي دئ الداعي چي متکلم را بولي الی ان یعتبر ودې ته چي متکلم دی معتبر کړي مع الکلام الذی یؤدی بہ اصل المراد سره دهغه کلامه چي اداکیږي په ده سره اصل مراد لکه زید قائم خصوصیة ما یو خاص خصوصیت چي هغه تاکید دئ انکار ختم کوي بس دا مقتضی دحال ده :

کله زما مخاطب په داسي حال کي ماته ناست وي وایي مبتداء او خبر دواړه معرفه راوړه ما مبتدا او خبر دواړه معرفه را وړو نو مادده دحال تقاضا پوره کړه کله به زما مخاطب په داسي حال کي ما ته ناست وي وایي خبر پر مبتدا را مقدم کړه ما خبر پر مبتداء را مقدم کړ نو مادده دحال تقاضی پوره کړه کله به زما مخاطب په داسي حال کي ماته ناست وي وایي مبتداء په وار وار ذکر کیږي دمبتداء دذکر کېد و هیڅ ضرورت نه سته خبر ذکر کړه نو ما مبتدا ذکر نه کړه خبر می ذکر کړ نو مادده دحال تقاضا وړپوره کړه نو زما کلام بلیغ دئ مطابق دئ دمقتضی دحال سره عبدالحکیم سیالکوټي دمختصر په حاشیه کي یو خبره کوي وایي دحال ظاهري عبارت ته چي ګوري حال به تول عمر دوجودي شیانو تقاضا کوی لیکن داسي نه ده حال کله دوجودي شیانو تقاضا کوي کله دعدمي شیانو تقاضا کوي مثال فاعل راوړه مفعول راوړه دا دواړه وجودي دي فاعل مه راوړه مفعول مه راوړه دا دواړه عدمي دي عبدالحکیم سیالکوټي وایي که چیري حال تول عمر دوجودي شیانو تقاضا کولای بیا به په کاز دا وای چي ده داسي تعبیر کړی وای <u>الامر الداعی الی ان یعتبر فی الکلام</u>: تا را بولی ودې ته چي ته معتبر کړه په کلام کي فاء پر جزیت دلالت کوي یعنی دکلام جزء یې جوړ کړه لیکن دې مع راوړي چي دکلام سره یې معبتر کړه دکلام سره هم وجودي معتبریږي هم عدمي معتبریږی کلام به څرنګه مطابق کیږي دمقتضی الحال سره علامه تفتازانی وایی مقتضی الحال تول عمر کلي شی وی کلام مؤکد وي مثال ته زما مخاطب یې ستا حال انکار دئ انکار دتاکید تقاضا نه کوي انکار تقاضا کوی دکلام مؤکد دکلي شی ته به کلام جزي چي **انّ زیدًا قائم** دئ دکلام مؤکده دکلی شي نفر او جز ګرځوئ بس دا مطابقت دئ :

مثلا دامخاطب دئ دا یی یو حال دئ دا یی بل حال دئ دا یی بل حال دئ دایی بل حال د
دا یی بل حال دئ دایی بل حال دئ دا یی بل حال دئ دمخاطب ۷ حاله دي ۷ يې تقاضاو
دي ما دمخاطب ۷ سره تقاضاوي ورپوره کړې نو زما کلام په بلاغت کي انتهاء
ورسېدی او که زما دمخاطب ۷ تقاضاوي دي او ما دمخاطب درې تقاضاوي ورپوره کړ
نو زما کلام بليغ دئ ليکن دغتې درجې نه دئ ځکه دی **مطابقتُهُ** وايي يعنی دده دح
دتقاضو يوه تقاضاورپوره کول دې کلام ته هم بليغ وايي :

او هره تقاضا دده ورپوره کول دا دبلاغت دپاره شرط نه دئ مثال دمخاطب يو حال تقاض
دکلام مؤکد کوی بل حال دمخاطب دادئ دې وايي دا حکم يو وخت ثابت سوی دئ ټو
عمر نه دئ ثابت سوی دده دغه حال دا تقاضاکوي چي ته ما ته جمله اسميه راوړه چي ټو
عمر ثابت سی اوس زما مخاطب دوی تقاضاوي کوي يوه تقاضا کلام مؤکد راوړه دوي
تقاضاکلام مؤکد دجملې اسميې په شکل راوړه ما جمله اسميه راوړه ليکن مؤکد مي را
وړی ما دده يوه تقاضا ورپوره کړه دويمه تقاضا مي ورپوره نه کړه نو زما کلام بليغ
ليکن دغتې درجې نه سو :

ما ته ګوري: نن مسلمان ودې حالت ته ورسيدی ځينی انسانان په عملي جامه په عمل
توګه والله ﷻ ته دا وربنکاره کوي چي دآخرت په کارونو کي خير نه سته ددنيا
کارونو کي خير سته فلاح کاميابي خير ټوله روپی دي که دچا سره روپی وې بس هغ
کاميابه دئ مثال که دخان سړی زوی لمانځه ته ولاړ نه سي دخان خوا نه په بديږي دورو
يې خوا نه په بديږي هغه کارونه چي دسړي آخيرت خرابوي ددوی خوا نه په بديږي ک
دخان زوی يوه ورځ سکول ته ولاړ نه سي مور، پلار خو څه کوی، دکور چوکېدار ا
پرېشانه وي چي سکول ته ولي نه ولاړی :

نن سبا په سل ۱۰۰ فيصده کي اتيا ۸۰ فيصده مسلمانان ودغه حالت ته رسيدلي دي د
ټوله غلط دئ فلاح او کاميابي په هغه چا کي ده چي په ده کي شپږ صفتونه وي يعن
بهترين او کاميابه دخير سړی هغه څوک دئ چي په ده کي شپږ صفتونه وي هغه شپ

صفتونه دادي الله ﷻ وايي﴿ذَٰلِكَ ٱلۡكِتَٰبُ لَا رَيۡبَۛ فِيهِۛ هُدٗى لِّلۡمُتَّقِينَ ۝ ٱلَّذِينَ يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡغَيۡبِ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَمِمَّا رَزَقۡنَٰهُمۡ يُنفِقُونَ ۝ وَٱلَّذِينَ يُؤۡمِنُونَ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبۡلِكَ وَبِٱلۡأٓخِرَةِ هُمۡ يُوقِنُونَ ۝ أُوْلَٰٓئِكَ عَلَىٰ هُدٗى مِّن رَّبِّهِمۡۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ ۝ سورة البقره له ١-٥ پوري

بس خاص دغه کسان کامیابه دي دمخاطب حال دا تقاضا کوي چي قصر وکړه که الله داسي ويلي واي اولئک مفلحون دغه کسان کامیابه دي قصر نه وسو نو دامعنى دا خلک هم کامیابه دي دنیا گټونکي هم کامیابه دي الله قصر وکړ دده ذهن يې ورختم کړچي فلاح او کامیابي دلته ده په دغو صفتونو کي ده په دنیا کي نه سته :

دلته دمخاطب حال دوې تقاضاوي کوي يوه تقاضا دا چي مبتداء او خبر دواړه معرفه راوړه الله دواړه معرفه راوړه بله تقاضا دا چي صيغة الفصل راوړه الله صيغة الفصل راوړه نو کلام بليغ دئ مطابق دئ دمقتضى الحال سره حال پر دوه قسمه دئ ١-: حال حقيقي ٢-: حال تنزيلي حال حقيقي دې ته وايي چي مخاطب حقيقة منکر وي او ته کلام مؤکد ورته راوړې حال تنزيلى دې ته وايي چي دمخاطب انکار په منزله دعدم انکار کړې يا دمخاطب عدم انکار په منزله دانکار کړي نوح عليه السلام دالله په کلام کي تَرَدد نه کوي بیا هم الله تاکید راوړي مثال﴿وَلَا تُخَٰطِبۡنِي فِي ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓاْ إِنَّهُم مُّغۡرَقُونَ﴾ علامه تفتازانى وايى منطقين کلي صادقوي پرجزي لکه انسان پر زيد، عمر، بکر، خالد، اهل معانى والا کلام جزي نفر او جزء گرځوي دکلي شی :

## (وهو مختلف فان مقامات الكلام متفاوتة) :

الله پاک ټول انسانيت ته خبره کوي په ټول انسانيت کي يهود هم سته مشرکين هم سته کافران هم سته مؤمنان هم سته نصارى هم سته ديهودو يو حال دئ يوه يې تقاضا ده دمشرکينو يو حال دئ يوه يې تقاضا ده دکافرانو يو حال دئ يوه يې تقاضا ده دمؤمنانو يو

حال دئ یوه یې تقاضا ده دنصاراوو یو حال دئ یوه یې تقاضاده له دئ وجه مقتضیات الحال مختلف دئ ( **وهو مختلف**) وهو مقتضی دحال **مختلف** مختلف دي :

**فان مقامات الکلام متفاوتة:** دکلام ځایونه یو له بله سره جلا وي دمقام او حال په مابین کي اتحادي ذاتي دئ فرق یې اعتباري دئ دمقام او دحال انحلال ودوو موجبتین کلیتینو ته کیږي **کل حالٍ مقامٌ وکل مقامٍ حالٌ** خو فرق یې اعتباري دئ مثال زه یو سړی ته خبره کوم په دې مکان کي دې ته مقام وایي، زه یو سړی ته خبره کوم په یو زمانه کي ودې ته حال وایي.

## دوه ویشتم سبق فمقام کل من التنکیر...یباین مقام خلافه

**(فمقام کل من التنکیر، والاطلاق، والتقدیم والذکر یباین مقام خلافه ):**

هغه مقام چې دهغه مقام سره تنکیر دمسند الیه مناسب وي مثال رجل فی الدار قائم یا دهغه مقام سره تنکیر دمسند مناسب وي دا مباین دئ دهغه مقام سره چي دهغه سره تعریف دمسند الیه مناسب وي یا تعریف دمسند مناسب وي نحو زید قائم وزید القائم مقام داطلاق الحکم لکه زید قائم دا مباین دئ دهغه حکم سره چي مقید په تاکید سره وي مثال **انّ زیدً قائم** مقام دتقدیم دمسند الیه مباین دئ دمقام دتاخیر دمسند الیه سره مقام دذکر دمسند الیه مباین دئ دمقام دحذف دمسند الیه سره ددې هر یوه تحقیق پر مخ راروان دئ :

**یباین مقام خلافه اي خلاف کل منها)** د **خلافه** ضمیر راجع دئ وکل ته که دخلافه ضمیر تنکیر ته راجع سي نو دامعنی **یُبایِنُ** مباین دئ تنکیر ، اطلاق، تقدیم، ذکر، یباین مقام خلاف التنکیر دا ټوله دتنکیر دمقام سره مخالف دي دا خبره غلطه ده ځکه دتنکیر دمقام یوائې تعریف مقام مخالف دئ دخلاف ضمیر راجع دئ وکل ته حاصل ددې دادي چي ضمیر په قول دشارح کي اَی خلاف کل منها راجع دئ واربعه مذکوره ته نو مقابله دجمعې

بالجمع راغله قانون دادئ جمعه چي پر جمعه راسي نو دا فائده کوي توزيع داحاد پر احد باندي په دې صورت کي هر يوه ته خپل ضد ور رسيږي :

(ومقام الفصل يباين مقام الوصل) دفصل مقام دوصل دمقام سره مخالف دئ که چيري ددوو جملو تر مينځ من کل وجوه اتصال وو کامل اتصال وو بيا واو را وړل حرام دئ نا روادئ مثال يوه جمله مبدل منه وي بله جمله بدل وي نو قوله تعالی ﴿أَمَدَّكُمْ بِمَا تَعْلَمُونَ، أَمَدَّكُمْ بِأَنْعَامٍ وَبَنِينَ﴾ امدکم بما تعلمون دا جمله مبدل منه ده امدکم بانعام وبنين دا جمله بدل ده ددوې دواړو جملو په مابين کي واو را وړل حرام دئ ځکه کمال اتصال دئ.

که ددوو جملو په مابين کي کمال انقطاع وه يا جهة جامعه نه وو بيا واو را وړل حرام دئ مثال لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللّٰهِ واو نه سته ولي جامع نه سته که من وجه اتصال وو من وجه انفصال وو بيا به واو راوړی مثال قوله تعالی يُقِيمُونَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكٰوةَ په يقيمون او يؤتون کي ضمير راجع دئ ومؤمن ته دا اتصال دئ.

اقامة الصلوة جلا شی دئ : انفاق فی سبيل الله جلا شی دئ دا انفصال دئ علامه تفتازانی په مطول او مختصر کي يو نکته پورته کوي :

**پوښتنه:** دمقام الفصل يباين مقام الوصل عنوان ولی جلا سو مصنف به داسي عبارت ويلي وای فمقام کل من التنکير والا طلاق والتقديم والذکر والفصل يباين مقام خلافه ؟

**جواب:** جلا عنوان ځکه ورکول سو چي دلته اشاره ده عظمة شان ته دفصل او دوصل په ټولو ابوابو کي عظيم باب دفصل او دوصل دئ بعض علماء وايی کوم چا چي فصل وصل زده کړي نو ددې سړي معانی زده دي که چا فصل او وصل زده نه کړي نو ددې سړي معانی نه دئ زده علامه تفتازانی يو بله پوښتنه را پورته کړې ده :

**پوښتنه:** مصنف به داسي عبارت ويلي وای ومقام الفصل يباين مقام خلافه ؟

**جواب:** ومقام الفصل يباين مقام الوصل دا عبارت مي وويل ددوو وجهو يوه وجه اظهر
بله وجه اخصرية ځکه دفصل مخالف چي وصل دئ دا ښکاره ذکردئ ديباين مقام خلاف
ښخه دانه معلوميږي چی دفصل مخالف به څوک وي دخلافه پنځه حروفه دي دالوصل
پنځه حروفه دي مګر په الوصل کي همزه وصليه ده همزه وصليه په درج کي غورځي
دي وجه يباينُ مقام الوصل تر يباينُ مقام خلافه اخصر دئ په اعتبار دوينا نه په اعتبا
دکتابت (**ومقام الايجاز يباين مقام خلافه**) دايجاز مقام داطناب او دمساوات سر
مخالف دئ الله ﷻ فرمايي ﴿وَاِذِاسْتَسْقٰى مُوْسٰى﴾ در په ياد کړه هغه وخت چي موسی
وغوښتلي اوبه لِقَوْمِهٖ دخپل قوم دپاره فَقُلْنَا پس موږ وويل اضْرِبْ ووهه (اي موسی
بِعَصَاکَ الْحَجَرَ﴾ لکړه خپله پر کاڼي ﴿فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ﴾ پس روانی سولې له دې کاڼي
څخه ﴿اِثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا﴾ دولس چينې:

ګوره انفجار دچينو په وهلو وي که انفجار دچينو په وينا وي انفجار دچينو ددې کاڼي
څخه په ضرب وي په وينا نه وي دلته عبارت سته فَضَرَبَ اِنْفَجَرَتْ مِنْهُ بياضَرَبَ حذف سو
بس دغه ايجاز دئ الله جل جلاله وايي زما صفتونه هيڅ څوک نه سي جمعه کولای الله جل
جلاله وايي که ټول بحرونه رنګ سي ټول لرګي قلمونه سي ټول مخلوقات يې ليکي لا ب
خلاص نه سي الله دا ټول صفتونه په لنډ سورة کي راجمعه کړي دئ مثال قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ
الاية بس دغه ايجاز دئ اطناب دعشق په مقام کي چليږي:

الله وايي په خپل کلام کي موسی ته وَمَا تِلْکَ بِيَمِيْنِکَ يَامُوْسٰى﴾ اوس موسی عليه السلا
ته داسي په کار وه چي ويلی يې وای هِيَ عَصَايَ ليکن موسی عليه السلام شروع سو قَالَ
هِيَ عَصَايَ اَتَوَکَّؤُ عَلَيْهَا وَاَهُشُّ بِهَا عَلٰى غَنَمِىْ وَلِىَ فِيْهَا مَاٰرِبُ اُخْرٰى﴾ الاية دا دعشق مقا
دئ مساوات په کلام مساوي کي چليږي (**وکذا خطاب الذکی مع خطاب الغبي**) کوم خطاب
چي ته ذکي ته کوې دا مباين دئ دهغه خطاب څخه چي ته يې غبي ته کوې خطاب پر دوه
قسمه دئ نفس وينا ته هم خطاب وايي کمه جمله چي تا مخاطب ته وړاندي کړه دې ته هم

خطاب وايي علامه تفتازانی وایی دلته مراد دخطاب څخه ما خُطبَ بِه مراد دئ وكذا خطاب الذكي الخ دلته كاف دتشبيه دئ يعنى وكذا يباين خطاب الذكي مع خطاب الغبي

(**وَلِكل كلمة مع صاحبتها مقام**) هره كلمه دخپل ملگري سره جلا مقام لري مثال ضَرَبَ داذا سره جلا مقام لري هر ځای كه متكلم مخاطب ته دا وغواړي چې داكار سوی وبوله بس دا كار وسو په دې صورت كې به متكلم دماضی سره اذا را وړي ځكه الله جل جلاله ټول بحثونه چې دقيامت كوي نو اذا را وړي دماضی سره **إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ. إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ** **إِنْ** په محتملاتو كې استعماليږي مثال **إِنْ دَخَلْتِ الدارَ فَانْتِ حرةٌ** كه څه هم **إِن** او **إِذَا** په نفس تعليق كې شريكان دي:

(وارتفاع شان الكلام فى الحسن والقبول بمطابقته للاعتبار المناسب وانحطاطه بعدمها)

دبلاغت او دفصاحت په منډې كې ستا كلام هغه وخت قبليږي چې څومره مطابقت پكښې راغلى وي دمقتضى الحال سره :

**وارتفاع شان الكلام** : دكلام دشان لوړوالى **فى الحسن** دحسن په منډي كې **والقبول** دقبليدو په منډي كې داراځي **بمطابقته** چې كلام مطابق سي **للاعتبار المناسب** دمقتضى دحال سره :

علامه تفتازانی دوه اعتراضه پورته كړي دي ډير خوندور دي دا دواړه اعتراضونه پر ترزويني باندي دي :

**پوښتنه:** ستا دعبارت څخه دا رامعلوميږي چې په نفس مطابقت سره دكلام دشان ارتفاع راځي حال دادی په نفس مطابقت سره دكلام شان راځي ارتفاع نه راځي ارتفاع په زيات مطابقت سره راځي؟

**جواب:** علامه تفتازانی جواب ورکړي دئ وايي مراد دکلام څخه کلام فصيح دئ کلا
فصيح دکلام شان دئ نو به په نفس مطابقت سره دکلام دشان ارتفاع راسي.

**پوښتنه:** ته وايي په مطابقت دکلام حسن په کلام کي راځي حسن خو په بديع س
راځي ؟

جواب: حسن پردوه قسمه دئ ۱-: ذاتي ۲-: عارضي علامه تفتازانی وايي دلته مر
دحسن څخه حسن ذاتي دئ حسن عرضي نه دئ حسن ذاتي په بلاغت کي داخل دئ دک
وړه والا حسن په مطابقت سره راځي(**والحطاطه بعدمها**) دکلام دشان راکښته کېد
دا په عدمي مطابقت سره کيږي .

## درويشتم سبق دمقتضی الحال بحث

(**فمقتضی الحال هو الاعتبار المناسب**)

دمقتضی الحال او داعتبار مناسب په مابين کي نسبة دتساوي دئ مقتضی دحال اعتب
مناسب دئ اعتبار مناسب مقتضی دحال دئ يعنی کوم شي چي اعتبار مناسب دئ هغ
شی مقتضی دحال دئ کوم شي چي مقتضی دحال دئ هغه شي اعتبار مناسب دی، علا
تفتازانی داعتبار عجيبه تعبير کوئ اعتبار په عربي کی څه شي ته وايي تفتازانی واي
عرب وايي **اِعْتَبَرْتُ الشئَ** دا هغه وخت وايي **اذا نظرتَ اليه وراعيتَ حالَهُ** هغه وخت چي
په شي کي وکتل او دده دحال رعايت دي وکړي ودغه ته دا خلک اعتبار مناسب وايي
پالوان ته خبره کوم ما پالوان ته وکتل پالوان زما دخبري منکر رامعلوميږي يعنی ما
پالوان کي انکار معتبر کړ ما چي په ده کي انکار معتبر کړ او دانکار سره مناسب تاکي
دئ ما چي تاکيد راوړي او دا تاکيد مي مناسب وباله دده دانکاربس دغه اعتبار مناسب
دئ او مقتضی دحال دئ علامه تفتازانی وايی که ددوي په مابين کي نسبة دتساوي نه سو
نو قزوينی يا عام علماء يو به درواغجن بولي ارتفاع شان الکلام دلته ارتفاع مصدر دئ
تفتازانی وايی مصدر چي مضاف سي او مبتداء واقع سي تقريبا غالبا حصر فائده کوي

قزوينى دا قصر كړي دئ ارتفاع دشان كلام نه راځي الّا مګر راځي چي كلام مطابق سي داعتبار مناسب سره يعنى كلام نه بليغ كيږي مګر چي كلام مطابق سي داعتبار مناسب سره دا اوله مقدمه دقزوينى ده دوهمه مقدمه ارتفاع دشان كلام نه راځي مګر چي كلام مطابق سي دمقتضى الحال سره اوس زه تا ته وايم چي دمقتضى الحال او داعتبار مناسب په مابين كي نسبة دتساوي ومنه، او كه ددوي دواړو په مابين كي نسبت دتساوى ونه منى نو به په ذوو قصرينو كي يو قصر مات سي يا به دقوزوينى قصر مات سي يا به دنورو علماء قصر مات سي مثال يو داسي ماده راغله چي مطابق به وي دمقتضى الحال سره داعتبار مناسب سره به مطابق نه وي او حال دادئ داكلام فصيح بلل كيږي ګوره دقزوينى قصر مات سو ځكه قزوينى ويلي وو چي ارتفاع دشان كلام نه راځي مګر چي كلام مطابق سي داعتبار مناسب سره او دلته اعتبار مناسب نه سته دا تاوان هغه وخت راځي چي ددوي دواړو په مابين كي نسبة دتساوى ونه بولې .

## ځلرويشتم سبق فالبلاغة راجعة الى اللفظ

(**فالبلاغت راجعة الى اللفظ باعتبار افادته المعنى بالتركيب**) ددې فن ماهر مولا ناشيخ عبدالقاهر جرجانى دئ دعبدالقاهر جرجانى ټول اقوال په نيز دبلغاء قبول دي عبدالقاهر جرجانى يوه خبره كړې ده په هغه خبره كي تعارض او تناقض دئ علامه قزوينى دهغې خبري تعارض او تناقض ختم كول غواړي په دې عبارت فالبلاغت راجعة الى اللفظ الخ :

مخكي تر دې چي دشيخ خبره كوو دوه جماعته دي يو جماعت وايي بلاغت صفت دلفظ دئ بل جماعت وايي بلاغت صفت دمعنى دئ دشيخ دعبارت څخه دارامعلوميږي يو ځاى وايي بلاغت صفت دلفظ دئ بل ځاى وايي بلاغت صفت دمعنى دئ شيخ كما حقه ددادواړو جماعتو محكمه كول غواړي كوم خلك چي بلاغت صفت دلفظ بولي هغه وايي ته دبلاغت تعريف ته وګوره بلاغت دې ته وايي **مطابقة الكلام لمقتضى الحال** كلام به مطابق وي دمقتضى الحال سره ګوره دلته دبلاغت په تعريف كي كلام ذكر دئ نو

ښكاره خبره ده چي بلاغت صفت دلفظ دئ كوم خلك چي بلاغت صفت دمعنى بولي هغ
وايي هر ترا مُسَجّع او مُكَفّى كلام را وړه دمعنى ثانويه خيال پكښي مه ساته دا كلام پ
زندگی بليغ نه سي كېداى نو ښكاره خبره ده په معنى كي دبلاغت ډير دخل دئ عبدالقاه
جرجانى كله وايي بلاغت صفت دلفظ دئ كله وايي بلاغت صفت دمعنى دئ دعبدالقاه
جرجانى په خبره كي تعارض دئ دهغه دووجماعتو په مابين كي ټكر دئ ددې ټك
دختميدو دپاره او دشيخ دكلام دتطبيق كولو دپاره علامه قزوينى دغه عبارت ووايو
علامه تفتازانى رحمة الله عليه ورسره خوښه كړه وي ويل خبره دا رنګه ده لكه قزوينى چ

وايي نو عبدالرحمن قزوينى ووېل **فالبلاغت راجعة الى اللفظ باعتبار افادته المعن**

**بالتركيب** بلاغت صفت دلفظ دئ ليكن وچ په وچه نه په دې حيثيت نه چي دى لفظ ا
صوت دئ بلكي په دې اعتبار چي لفظ به افاده دمعنى ثانويه وركوي بالتركيب:

دخبري خلاصه داده شيخ چي دا وايي بلاغت صفت دلفظ دئ او بلاغت صفت دمعنى دئ
دشيخ په دوو خبرو كي تعارض نه سته دى دا وايي دده مقصد دادئ چي دواړه جماعت
صحيح دي يوازى يو دبل خبره دي سره ومنى هغه جماعت چي وايي بلاغت صفت دلفظ
دئ هغه دي دا ومنى چي په لفظ كي دمعنى دخل سته هغه جماعت چي وايي بلاغت صفت
دمعنى دئ هغه دى داومنى چي په معنى كي دلفظ دخل سته :

(**وكثيرا ما يسمى ذالك فصاحة ايضا**) علامه قزوينى په دې عبارت كي يو فائده ر
ښودل غواړي هغه دا يو كلام دمخاطب دمكمل احوالو رعايت وكړي بلاغت ډير پر م
ولاړ سي نو عرب وايي دا كلام په اعلى طبقاتو دفصاحت كي دئ يعنى عرب ډير كرت
بلاغت په فصاحت سره مسمي كوي حالانكي بلاغت جلا شي دئ فصاحت جلا شى ليك

عرب بلاغت په فصاحت سره مسمى كوي مجازا **وكثيرا ما** زيات كرته **يسمي ذالك** د
مطابقت مسمي كوي **فصاحة ايضا** په فصاحة سره ايضا لكه دا مطابقت چي مسمي كوي
په بلاغت سره :

**وكثيراما ذالک الخ** قاعده: هر ځای که دکثیراما او قلیلا ماوروسته فعل واقع سو نو دوی به پرترکیب کي مفعول فیه جوړیږي نحاة ودې ته اسماء محذوفة الاحیان وایي یعنی داصفات دي داحیانا مقدر دپاره :

**پوښتنه:** کثیراما که چیری صفت داحیان سي بیا په دې ترکیب کي شرط دادئ چي صفت به جمعه مکسره وي یا به واحده مؤنثه وي دلته کثیرا ما نه جمعه مکسره ده نه واحد مؤنثه ده؟

**جواب:** کثیراما صفت دئ داحیانا دپاره احیانا موږ ملحوظ کوو په اعتبار دمفهوم سره نه په اعتبار دلفظ سره که چیري کثیراما صفت سي داحیانا او احیانا ملحوظ سي په اعتبار دلفظ سره بیا کثیرة ویل واجب دي :

قاعده: عرب چي کله په یو کلمه کي عموم پیدا کوي نو عموم په الف اللام استغراقي ،کل استغراقي، من استغراقي، نکره تحت النفی سره راځي دلته په ما زائده تاکیدیه سره عموم راغلی دکثیرا معنی ډیر کثیرا ما معنی ډیر کرته (**ولها طرفان اعلی وهو حدالاعجاز ومایقرب منه واسفل وهو ما اذا غیر عنه الی ما دونه التحق عند البلغاء باصوات الحیوانات**):

**قاعده:** مطابقت کلي مشکک دئ کلي مشکک تقسیم قبلوي زیادت او نقصان قبلوي مثلا دمخاطب ٧ حاله دئ ٧ تقاضا دئ ما دمخاطب ٧ اوه سره تقاضاوي ور پوره کړې نو زما کلام په بلاغت کي انتهاء ته ورسیدي که ما دمخاطب یو ه تقاضا ور پوره کړه نو زما کلام مطابق سو بلیغ سو که ما دمخاطب دوې تقضاوي یا درې تقاضاوي ورپوره کړې دې ته مراتب وایی مراتب په مطابقت سره راځي:

(**ولها طرفان**: بلاغت لره دوه طرفه دي اعلى واسفل اعلى چا ته وايي اعلى وهو حـ
الاعجاز ته وايى حد الاعجاز دامعنى چي دبشر دقدرت څخه خارج يعنى بشر د
دمعارضې څخه عاجز او ناتوانه وي .

د **وما يقرب منه** تركيب: بعض وايي وما يقرب منه عطف دئ پر حدالاعجاز باندي دم
ضمير راجع دئ وحد الاعجاز ته دبعضو تركيب نه دئ صحيح ځكه بعضو اعلى تقس
كړې و حد الاعجاز ته وما يقرب منه ته :

او حال دادئ اعلى تقسيم نه قبلوي ځكه اعلى په معنى دانتهاء او نهايه سره دئ انتهاء
نهايه بسيط شى دئ بسيط تقسم نه قبلوي علامه تفتازانى وايي **وما يقرب منه** عط
دئ پر هو باندي دمنه ضمير راجع دئ واعلى ته موږ علامه تفتازانى ته وويل چا د
وويل چي ته دارنگه عطف وكړه علامه تفتازانى وايي خداى راته وويل چي دارن
تركيب وكړه علامه تفتازانى وايي ما ته الهام وشو په مابين كي دنوم اويقظة چي و
يقرب منه عطف كړه پر هو باندي دمنه ضمير راجع كړه واعلى ته نو علامه تفتاز
حدالاعجاز تقسم كړى دئ يو اعلى دئ بل ما يقرب منه دئ ددې دواړو معارضه بشر
سي كولاى عبارت به دارنگه لگوو وهو دغه اعلى وما يقرب من الاعلى دا دواړه
الاعجاز دئ :

(**واسفل وهو ما اذا غير عنه الى مادونه**) طرف اسفل هغه دئ چي دده څخه مغير
وما دون ته (**التحق عند البلغاء باصوات الحيوانات**) دبلغاء په نيز دا ملحق كي
په اوازو دحيواناتو باندي (**وبينهما مراتب كثيرة**) داعلى او اسفل په مابين ك
مراتبي كثيره دي دا مراتبي كثيره په مطابقت سره راځي .

## پنځه ویشتم سبق دهغو وجهو بیان چي کلام ته ښایست ورکوي

(وتبعها وجوهٌ اخر تورث الکلام حسنا)

وروسته کیږي په بلاغت الکلام پوري نور وجوه داسي وجوه چي پیدا کوي په کلام کي **حسنًا** حسن عرضي دوې خبري دي یوه خبره په تتبع کي بله خبره په هاء ضمیرکي ده علامه تفتازانی رحمة الله علیه وایي په تتبع کي اشاره ده ودې ته چي محسناتِ بدیعیات په کلام کي حسن راولي هغه وخت چي په کلام کي بلاغت او فصاحت وي دویمه خبره داده دها ضمیر راجع دئ بلاغت الکلام ته دها ضمیر بلاغت المتکلم ته نه دئ راجع ددې ځخه دا معلومه سوه چي محسناتِ بدیعیات کلام ښایسته کوي محسنات بدیعات متکلم نه ښایسته کوي ولي ځکه که ته په عبارت کي سجع راوړي **وَالشَّمۡسِ وَضُحٰهَا، وَالۡقَمَرِ اِذَا تَلٰهَا، وَالنَّهَارِ اِذَا جَلّٰهَا** نو ستا کلام ته به وویل سی **مُسَجَّع** کلام دئ، **مکفّٰی** کلام دئ، **مُجَنَّس** کلام دئ متکلم **مسَجِع مکفِّی مُرَصِّع مُجنِّس** دااوصاف نه ورکول کیږي:

## تعریف البلاغة فی المتکلم

دبلاغت فی المتکلم تعریف: (**والبلاغت فی المتکلم ملکة یقتدر بها علی تالیف کلام بلیغ**) دا یو ملکه ده داسي ملکه چي متکلم قادرکیږي پر جوړولو دکلام بلیغ قاعده عبدالحکیم سیالکوټي دمطول او دمختصر په حاشیه کي وایي نکره موصوفه چي په کلام کي استعمال سي تقریبا غالبا دعموم فائده کوي عبدالحکیم مثال ورکوي وایي یو سړی چي وبل سړي ته نصیحت کوي **اَکۡرِمۡ رَجُلًا عَالِمًا اَیۡ اَیَّ رَجلٍ عالمٌ** ته اکرام ورکړه دهر رجل عالم که اعلی وي که ادنی وي ځکه لاندي ناکت **والي ایُّ کلام اراد.**

یعنی متکلم به دهر کلام بلیغ پر جوړولو قادره وي که مدحه وي که ذم وي که یو سړی په ښه انداز دیو چا ذم بیانوي مدحه نه سي بیانولای یا خو یو سړی په ښه انداز دیو چا مدحه

بیانوي ذم نسي بیانوای په دا دوارو کي يو بليغ نه دئ بليغ هغه دی چي دهر کلام ارا
وکړي نو په ښه اندازيې مؤلف کولای سي .

(**فعلم ان كل بليغ فصيح ولا عكس**) فاء په عربي کي کله فضيحيه وي کله جزا
وي کله تفريعيه وي کله دتزين دپاره وي فاء تفريعيه دې ته وايي چي مخکي يو خبره تې
سي پر هغه باندي يو نتيجه مرتب کيږي پردا نتيجه فاء داخله کړي مخکي قزوين
دفصاحت او بلاغت تعريفونه وکړه تقسيمونه يې وکړه غتې خبري تيري سوې اوس پر ه
باندي دعلم وروسته يو نتيجه مرتبه سوې اوس هغه نتيجه بیانوي (**فعلم ماتقدم ا
كل بليغ فصيح**، معلومه سوه دفصاحت او بلاغت دتعريف څخه چي مخکي تيره سو
اخبره رامعلومه سوه چي هر بليغ فصيح دئ برابره خبره ده کلام وي که متکلم وي هر کل
بليغ فصيح دی ځکه دبلاغت فى الكلام په تعريف کي دفصاحت قيد لګيدلي دئ م
وويل مطابقته لمقتضى الحال مع فصاحته هر متکلم بليغ فصيح دئ ځکه متکلم د
کلام بليغ پر جوړولو قادره دئ نو کلام بليغ به غير دفصاحته نه سي راتلي (**ولا عكس**
عکس پر دوه قسمه دئ يو عکس لغوي دئ بل عکس منطقي دئ په عکس لغوي ک
دموجبې کليي عکس موجبه کليه راځي په عکس منطقي کي دموجبي کليي عکس موج
جزئيه راځي دلته مراد دعکس څخه عکس لغوي دئ (**ولا عكس**: اي ليس كل فص
بليغا، ځکه کلام به فصيح وي مطابق به دمقتضى الحال سره نه وي **بعضُ الفصيح بَل**
بعض فصيح بليغ دئ ځکه کلام به فصيح وي او مطابق به دمقتضى الحال هم وي (**وا
البلاغت مرجعها الى الاحتراز عن الخطاء فى تادية المعنى المراد**) دويمه خ
دارامعلومه سوه که احتراز دخطاء څخه په تاديت دمعنى مراد کي وو بس دغه دبلاغ
مرجع ده يعنى که تا دمعنى ثانويه په ادا کيدو کي دغلطيانو څخه ځان وساتلای بس د
دبلاغت مرجع ده:

طالبانو سم راته وګوري علل غير مستقله څلور دي لاندي ناکت وايي (**اي ما يجب ان يحصل حتى يمكن حصولها**). دا عبارت دمطول او مختصر المعانی څخه راخيستل سوي دي دا عبارت په مطول او مختصر المعانی حل کول سخت دي مشکل دی علل غير مستقله څلور دي ١-: علت فاعلی ٢- علت مادي ٣- علت صوري ۴-: علت غايی دئ مثال دتهولو کټ دئ :

نجار علت فاعلي دئ دکټ لرګي رسي علت مادي دئ دکټ هيئت علت صوري دئ دکټ ناسته علت غايی دئ علت غايی په تصور او په نيت کي مقدم وي په وجود کي مؤخر وي يو وار به کټ جوړيږي بيا به ناسته راځي ليکن تا چي اول وار کټ جوړوي ستا نيت داوو چي بيا به ناسته او پروته پر کيږي ناسته په نيت کي مقدمه ده ليکن ناسته په وجود کي مؤخره ده :

دمرجع کلمه چي هر ځای په عربي کي استعمال سي ددې څخه مراد علت غايی دئ :

**پوښتنه:** ستا دعبارت څخه دا معلومه سوه چي يو وار به کلام بليغ، حصول دبلاغت به وي وروسته به احتراز وي دخطا څخه په تا ديت دمعنی مراده کي دا خبره بالکل غلطه ده ځکه کلام چي بليغ سي بيا احتراز نه وي که ومنم نو ددي دا معنی چي بلاغت تر احتراز مخته هم حاصليږي وروسته هم حاصليږي او حال دادئ چي احتراز دخطا څخه نه وي بلاغت نه راځي ؟

**جواب:** دمرجع کلمه چي څرنګه پر علت غايی ويل کيږي همدارنګه دمرجع کلمه پر علت مادي ويل کيږي عرب وايی مرجع الجود الغنی دسخا مرجع غنیٰ ده يو وار به ستا سره روپی يې بيا به ته سخا کوي روپی علت مادي دي دسخا دپاره نو موږ جواب داسي ورکو دلته مرجع دعلت غايی په معنی نه ده دلته مرجع دعلت مادي به معنی ده ځکه علامه تفتازانی دمرجع تفسير داسي کوي اي ما يجب ان يحصل حتی يمکن حصولها دا ضروري ده چي يو وار به احتراز وي حتی يمکن حصولها بيا به حصول دبلاغت ممکن کيږی (**والی**

**تميز الفصيح من غيره)** دريم تميز به د فصيح وي دغيره څخه موږ قزوينی ته وويل د تفريع دځه دپاره کوي دی وايي زما اصل مقصد اوس چي کوم عبارت را روان دئ هغه ز مقصد دئ هغه مقصد دادئ بلاغت په کلام کي محتاجه دئ وفصاحت ته اصلی مقص دمصنف ددې تعريف څخه احتياج ثابتول دي وفنون ثلثه ته دفصاحة الكلام دپاره او شرطونه دي ۱-ضعف تاليف به نه وی ۲-: تنافر دکلماتو به نه وي ۳-: تعقيد لفظی نه وَي ۴-: تعقيد معنوي به نه وي ۵-: تنافر دحروف به نه وي ۶-: غرابت به نه و ۷-: مخالفة القياس به نه وي ۱-: غرابة په لغت سره پيژندل کيږي ۲-: مخالف القياس په صرف سره پيژندل کيږي ۳-: ضعف تاليف ۴-: تعقيد لفظی په نحو س پيژندل کيږي ۵-: تنافر الحروف ۶-: تنافر الكلمات په ذوق سليم سره پيژندل کيږ تعقيد معنوي په هغه علومو سره نه پيژندل کيږي تعقيد معنوی په علم بيان سره پيژن

کيږي گوره په فصاحت کي دعلم بيان دخل سته **(والثانی منه ما يبين فی علم متن اللغ**

) دويم چي تميز الفصيح من غيره دئ بعض ددې څخه هغه دي چي بيا نيږي په علم لغ سره کالغرابة:

**فی علم متن اللغة پوښتنه:** علم متن اللغة ولی وويل سو خالی به دي علم لغة ويل وای؟

**جواب:** دلغة اطلاق پر بيان نحو، صرف، لغت کيدی چي علم متن اللغة مي ووايو اوس يې اطلاق، يوازی پر لغت کيږی :

**پوښتنه:** خلخالي وايي ته ماته دلغاتو په کتابونو کي دا راوښيه چي لغات دي وايي دا لفظ غريب دئ دا لفظ غريب نه دئ ؟

**جواب:** علامه تفتازانی وايي چي ته دلغاتو کتابونه بار بار وايي نو په تا کي يو ملكه پيداسي دهغې ملکې په زور سره تا ته غريب او غير غريب معلوميږی **( او التصريف)**

بعض بیانیږي په علم التصریف سره کمخالفة القیاس ( **اوالنحو** ) بعض بیانیږي په علم النحو سره کضعف التالیف والتعقید اللفظی .

( **او یدرک بالحس** ) دبعضو درک کیږي په ذوق سلیم سره کتنافر الحروف وتنافر الکلمات ( **وهو ما عدالتعقید المعنوي** ) دغه چي بیان سو په علو مو مذکوره وو کي یا یې ادراک بالحس کیدی دا دتعقید معنوي څخه علاوه ( **ومایحترز به عن الاول علم المعانی** ) په علم معانی سره احتراز راځي دخطا څخه په تادیت دمعنی مراده کي ( **وما یحترز به عن التعقید المعنوي علم البیان** ) په علم بیان سره احتراز راځي دتعقید معنوي څخه ( **وما یعرف به وجوه التحسین علم البدیع** ) معرفت دوجوه التحسین په علم بدیع سره راځي .

## شپږویشتم سبق دتسمیه په وجه کي څلور قولونه دي

(**وکثیر یسمی الجمیع علم البیان**)

په وجه دتسمیه کي څلور قولونه دي · اول صحیح قول دادئ چي هر یوه ته جلا جلا نوم ورکول سي احتراز دخطا څخه په تادیت دمعنی مرادي کي دې ته علم معانی وایي احتراز دتعقید معنوي څخه دې ته علم بیان وایي که په ده سره وجوه دتحسین معلومیدې دې ته علم بدیع وایي، دویم قول ، زیات خلګ ټولو ته علم بیان وایي بیان دې ته وایي **هو المنطق الفصیح المعرب عما فی الضمیر**، وینا کول داسي وینا الفصیح چي فصیحه وي داسي فصیح المعرب چي اظهار کونکي وي دهغه اشیاء چي دده په زړه کي وي فن اول فن ثانی فن ثالث دا ټوله په علم بیان کي دخل لري ( **وبعضهم یسمی الاول علم المعانی** ) **والاخرین علم البیان** ) دریم قول، بعض خلګ اول ته علم معانی وایي ځکه احتراز

دخطا څخه په تاديت دمعنی مراده کي په دې کی علم معانی ډير دخل لري، بيان او بديع ته علم بيان وايي دلته يی تغليب دعلم بيان کړي پر علم بديع باندي (**وبعضهم الثالثة علم البديع**) څلورم قول، ځينی خلک درو سره وو ته علم بديع وايي ځکه بديع نادر ته وايي نو فن اول فن ثانی فن ثالث دا ټوله نادر دي .

## اوه ويشتم سبق الفن الاول علم المعاني وتعريفه

<u>(الفن الاول علم المعاني):</u>

**پوښتنه:** علم معانی په علم بيان باندي ولی مقدم سو ؟

**جواب:** علم معانی داسي دي لکه مفرد علم بيان داسي دي لکه مرکب.

**فائده:** يو شطر الشئ دئ بل شرط الشئ دئ شطر الشئ داخل فی الشئ لکه رکوع، قيامه، سجده، داخل دي په لمانځه کي شرط الشئ خارج عن الشئ لکه اودس دلمانځه دپاره شرط دئ اودس دلمانځه څخه خارج دئ دعلم بيان تعريف **وهو علم يعرف به ايراد المعنی الواحد بطرق مختلفة بعد رعاية المطابقة لمقتضی الحال** علم بيان دې ته وايي چي په ده سره پيژندل کيږي ايراد دمعنی واحدي په مختلفو طريقو سره وروسته درعايت دمطابقت چي کلام به مطابق وي دمقتضی الحال سره مثال زيد جوادٌ زيد ډير سخی دئ دلته ثبوت دجواد وزيد ته دئ بل تعبير زيد کثير الرماد، بل تعبير زيد هزيل الفصيل ، بل تعبير زيد جبانُ الکلبِ زيد ډير سخي دئ دايوه معنی په څلور ډوله پيش سوه يوه معنی په څو ډولو پيشول دې ته علم بيان وايي **زيد جوّادٌ** دا دلالت مطابقي دی، ددانورو دلالت التزامي دی **زيد کثير الرماد** دزيد دکور مخ ته ډيري ايري دئ ولي ځکه دي ډير لرګي سوځوي ولي ځکه ډير ديګونه پخوي ولي ځکه ده ته ډير خلک راځي ولي ځکه دی ډير سخي دئ ګوره دزيد کثير الرماد اخيري نتيجه سخا سوه **زيد هزيل**

**الفصيل** دزيد جونگيان ډير دنگر دي ولی شيدی کمي ورکوي ولي ځکه دی شيدي وړي ولي ځکه دی شيدی خلگو ته ورکوي ولي ځکه خلک ده ته ډير راځي ولي ځکه دی ډير سخي دئ **زيد جبان الكلب** دزيد سپي بې غيرته دئ ولي ځکه دی دخلگو سره رفت تامت ډير کوي ولي ځکه خلک ده ته ډير راځي ولي ځکه دی ډير سخي دئ زيد جوّاد دامعنی مطابقی ده زيد كثير الرماد زيد هزيل الفصيل زيد جبان الكلب دا ټوله دزيد جواد سره لازم دئ علم معانی دعلم بيان دپاره شرط دئ نو علم بيان دئ سو لکه مرکب ځکه دعلم بيان په مفهوم کي دوه شيان دي يو مطابقت دکلام دمقتضی الحال سره بل ايراد دمعنی واحدي بطرقٍ مختلفة دعلم معانی مفهوم يو شی دی چي هغه مجرد المطابقة دئ له دې وجه علم معانی داسي سو لکه مفرد علم بيان داسي سو لکه مرکب مفرد په طبعه کي مقدمه وي نو موږ په وضعه کي مقدم کړی ددې دپاره چي دوضعي مطابقت راسي له طبعي سره .

*(وهو علم يعرف به احوال اللفظ العربي التی بها يطابق اللفظ مقتضی الحال )*

داعلم معانی پوهه ده داسي پوهه چي پېژندل کيږي په ده سره احوال دلفظ عربی هغه احوال چی خاص په ده سره کلام مطابق گرځي دمقتضی الحال سره **علم** په درو معنی گانو راځي ١-: ملکه ٢-: ادراک ٣-: مسائل :علامه تفتازانی وايي دلته علم په معنی دملکې يا دمسائلو دئ لکن تفتازانی وايي راجح او خوندور دادئ چي علم په معنی دملکې سي که علم په معنی دملکې سي نو دا معنی علم معانی يو ملکه ده: **يعرف:** دمعرفت لفظ دجزئياتو ددرک دپاره راځي علم معانی ( **هو علم يعرف به** : دا علم معانی يو ملکه ده داسي ملکه چي ته به جزی جزی ادراکات کولای سي اوس راسه يو کلی ادراکات دي بل جزي ادراکات دي کلي ادارکات ددې فن قاعده ده دا قاعده چي په کوم ځای په کوم متن کي لگيدلی وي دايې جزی ادراکات دي مثال اِنَّ الدِّيْنَ لَوَاقِعٌ دا يو جزی محل دئ دی وايی دا کلی قاعدي به تا دومره اړه ولي وي دومره مداوله به تا کړي

وی چي په تا کي دننه يو باطني قوت راسخ قوت پيدا سوی وي چي ددې په زور به ته دجزي جزي ادراک کولای سي يعني هغه کلي قاعدی به ته په جزئياتو کي لګولای سي :

**هو علم يعرف به احوال اللفظ العربي التي بها يطابق اللفظ مقتضی الحال،** که علم په معنی دملکې سي نو ترجمه به دا رنګه کوې علم معاني يو ملکه ده داسي ملکه چي ددې ملکې په ذريعه به ادراک دجزئياتو کولای سي داحوالو لفظ عربي هغه احوال چي خاص په ده سره لفظ مطابق کيږی دمقتضی الحال سره که علم په معنی دنفس مسائل سي نو ترجمه به دارنګه کوي داعلم معاني نوم دهغه قواعدو دئ چي ددغه قواعدو په ذريعه موږ ادراک دجزئياتو کوو داحوالو دلفظ عربي هغه احوال چي په ده سره لفظ مطابق کيږی دمقتضی الحال سره :

(**احوال اللفظ العربي** : دلفظ عربي ډير احوال دي په بديع کي چي موږ ته کوم شيان ذکر کيږي دا دلفظ عربي احوال دي په صرفو کي چي کوم شيان ذکرکيږي دا دلفظ عربي احوال دي په نحو کي چی کوم شيان ذکر کيږي دا دلفظ عربي احوال دي مثال سَبِيْلٌ سبيل اسم دئ مبني دی مؤنث سماعي دئ نکره دئ واحد دی اسم متمکن دئ داسم متمکن اول قسم دئ مفرد منصرف صحيح دئ دا ټوله دسبيل اعراض دي يعني دا ټوله سبيل ته ور عارضيږي دا ټول اعراض هغه احوال دي چي په دې سره لفظ نه مطابق کيږي دمقتضی الحال سره دا احوال په نحو سره پيژندل کيږي قالَ قال په اصل کي قَوَلَ وو واو په الف بدل سو دقال باع په قانون سره دغه اعلال چي قال ته ور عارض سو ددې څخه په معاني کي بحث نه کيږي ددې څخه بحث په صرفو کي کيږي هغه احوال چي په هغه سره لفظ مطابق ګرځي دمقتضی الحال سره ددې څخه په معاني کي بحث کيږي نکته ته ماته دهغه احوالو مثال راکړه چي په هغه سره لفظ مطابق ګرځي دمقتضی الحال سره دهغه احوالو مثال تقديم دئ تاخير دئ تعريف دئ تنکير دئ کلمه نکره کيدل معرفه کېدل ددې څخه نحو بحث کوی دا مقام تقديم غواړي دامقام تنکير غواړي ددې څخه معاني بحث کوي دا دلفظ عربي احوال دئ په دې سره لفظ مطابق ګرځي دمقتضی الحال سره دخبري خلاصه څه شي ده وايي دخبری خلاصه داده دتقديم دتاخير دتعريف دتنکير ددا رنګه

احوالو ته تصور وکړه بس تا ته عالم بالمعانی وایي موږ وایو دي ته عالم بالمعانی نه وایي درواغ ولی وایي علامه تفتازانی دحیثیت قید ورسره ږدي احوال دلفظ عربی زده کول په داسي حیثیت چي کلام به مطابق کوي دمقتضی الحال سره اوس ته به عالم بالمعانی جوړيږي یعنی ستا به تصدیق پر دي شی راغلی وي په نفس تصور سره سړی عالم بالمعانی نه سي کیدای منم چي علم په تصدیقاتو او تصوراتو دواړو کي مستعمليږی لیکن دلته دعلم څخه تصدیقات مراد دي تصورات نه دي مراد :

**پوښتنه:** په **زیدٌ قائمٌ** کي اسناد دئ اسناد لفظ نه دئ او حال دادئ چي احوال داسنادی خبری جلا باب دئ ته داسنادي خبری داحوالو څخه څنګه ږغیږي اسناد خو لفظ نه دئ اسناد یو معنوی شی دئ علامه تفتازانی جواب ورکړي تفتازانی وایی اسناد ددوو لفظو په مابین کي وي نو اسناد دمسند الیه او مسند صفت دئ له دي وجه مسند الیه او مسند دواړه لفظ دي علامه تفتازانی وایي مقتضی الحال کلي شی دئ جزی نه دئ که چیري مقتضی الحال جزي شی سي نو مطابِق او مطابَق به یو شی سي حالانکی مطابقت یو نسبة او اسناد دئ اسناد تغایر دطرفینو غواړي که ته دمقتضی الحال څخه جزی شی واخلی نو مطابِق او مطابَق به دواړه یو شی سي مثال یو سړی منکر دئ حال دده انکار دئ تقاضا دده تاکید دی تاکید یو جزی شی دئ او تا ده ته جزی شی را وړي نو تاکید دتاکید مطابق سو علامه تفتازانی وایی مقتضی الحال به خامخا کلام مؤکد او کلی شی وی .

## اته ویشتم سبق په اتو بابونو کي دحصر بیان

<u>( وینحصر فی ثمانیة ابواب احوال الاسناد الخبری واحوال المسند الیه واحوال المسند واحوال متعلقات الفعل والقصر والانشاء والفصل والوصل والایجاز والاطناب والمساواة):</u>

علم معانی منحصر دئ په ٨ ابوابو کي علامه تفتازانی په مطول او مختصر کي دینحصر وروسته لفظ دالمقصود را باسي بیا المقصود دینحصر دضمیر څخه بدل جوړوي دینحصر ضمیر علم معانی ته راجع دئ لفظ دالمقصود یو اعتراض دفعه کوي:

**پوښتنه**: تعریف دفصاحت کوڵ تعریف دبلاغت کول وجه دحصر بیانول احتیاج وعلمینو ته ثابتول دا دعلم معانی په بحثو کي یو بحث دئ لیکن دا بحث په ٨ ابوابو کي نه سته موږ خو وایو علم معانی منحصر دی په اتو ٨ بابونو کي نو پر موږ به دا اعتراض وسي چي دا بحث په علم معانی کي داخل دئ که نه دئ داخل اوس که تا وویل چي داخل دئ نو داخو په اتو ٨ بابونو کي نه سته که تا وویل چي دا بحث خارج دئ نو بیا دراوړلو څه ضرورت دئ؟

**جواب**: تفتازانی وایي مقصود دعلم معانی منحصردئ په ٨ بابونو کي علامه تفتازانی وایي انحصار پر دوه قسمه دئ یو انحصار دکل دئ په اجزاءُ کي بل انحصار دکلي دئ په جزئیاتو کي :

**فائده**: فرق دکلي او دکل، یو فرق یې دادئ کلي پر خپلو جزئیاتو حمل کیږي مثال لکه انسان انسان کلي دئ زید عمر بکر خالد دا ټوله جزئیات دي انسان پر زید عمر بکر خالد پر دي ټولو حمل کیږي کل پر خپلو اجزاء نه حمل کیږی مثال زَیْدٌ زید کل دئ لاس دزید یو جزء دئ زید پر لاس نه حمل کیږي بل فرق یې دادئ دجزئیاتو دخپل کلي په جوړېدو کی دخل نه سته دا اجزاء دخپل کل په جوړېدو کي دخل سته بل فرق یې دادئ په انتفاء دجزئیاتو انتفاء دکلي نه راځي په انتفاء دا اجزاء انتفاء دکل راځي دلته انحصار دکل دئ واجزاء ته که انحصار دکلي دئ وجزئیاتو ته دلته انحصار دکل دئ واجزاء ته انحصار دکلي نه دئ وجزئیاتو ته ولي که چیري انحصار دکلی وجزئیاتو ته سي بیا به علم معانی پر هر باب صادق سي اسناد خبری ته به علم معانی وویل سي او حال دادئ علم معانی یوازی اسناد خبری نه دئ علم معانی مکمل ٨ بابونه دي ٨ بابونه دعلم معانی اجزاء دي ( **احوال الاسناد الخبري واحوال المسند الیه الخ** :

**فائده:** هر ځای چي عدد ذکر سي وروسته معدودات راسي يا اجمال ذکر سي وروسته تفصيل راسي بيا دری اعراب ويل کيږي ۱-: مجرور ۲-: مرفوع ۳-: منصوب لکه دلته (**ثمانية ابواب** اجمال دئ وروسته تفصيل دئ ثمانية ابواب عدد دئ وروسته معدودات دي لکن داحوال مخکي به کلمه دباب راباسي اوس راسه که مجرور وويل سي مثال باب احوال الاسناد الخبری دا به په ترکيب کی دثمانيةِ ابوابٍ څخه بدل سي که مرفوع وويل سي مثال بابُ احوال الاسناد الخبری دا به په ترکيب کي خبر دمبتدا محذوفی سي **اَیْ اَوَّلُهَا بابُ احوال الاسناد الخبری** که منصوب وويل سي دا به په ترکيب کي مفعول به سي دفعل مقدر **اَیْ اعْنِی باب احوال الاسناد الخبري** (**والقصر والانشاء الخ** :

**پوښتنه:** دقصر سره تا لفظ داحوال ذکر نه کړ؟

**جواب:** ما لفظ داحوال ذکر نه کړ ځکه اضافت دشی خپل نفس ته راځي ولي قصر خپله حال دی بل ته عارض وي قصر خپله بل ته عارض کيږي **وکذالک الانشاء والفصل والوصل والايجاز والاطناب والمساواة**

## تقسم الكلام

(**لان الكلام اما خبر او انشاء الخ**) مصنف وجه دحصر بيانوي:

**پوښتنه:** **لان الكلام** دليل دئ مدعی نه سته او حال دادی دليل بلا مدعی نه راځي؟

**جواب:** علامه تفتازانی دلته مقدر عبارت ورسره راباسي هغه مقدر عبارت دادئ وانما انحصر فيها لان الكلام الخ انما انحصر فيها مدعی ده لان الكلام دليل دئ يا سوال په دې ډول کيږي چي لان الكلام جار مجرور دئ او حال دادئ چي جار مجرور متعلق غواړي

دلته خو متعلق نه سته تفتازانی جواب وکړ وانما انحصر فيها **لان الکلام، اما خبر او انشاء الخ** دا قضيه منفصله حقيقة ده خلو ناروا جمعه ناروا داسي نه سي کېدای چي کلام دي وي نه دي خبر وي نه دي انشاء وي داسي هم نه سي کيدای چی کلام دي وي هم دي خبر وي هم دي انشاء وي که ته وايي چي بسم الله الخ هم انشائيه ده هم خبريه ده جواب موږ وايو دلته حيثيت بدل دئ ځکه دالفظا خبريه ده معنی انشاء ده علامه تفتازانی وايي لانه لا محالة يشتمل علی نسبة تامة بين الطرفين قائمة بنفس المتکلم کلام به خامخا مشتمل وي پر نسبة داسي نسبة چي تام به وي بين الطرفين داسي ننسبة چي قائم به وي په نفس دمتکلم کي قضيه پر دري قسمه ده ۱-: قضيه کلاميه ۲-: قضيه ذهنيه ۳-: قضيه خارجيه :

پوښتنه: په قضيه ذهنيه کي منم چي نسبةقائم دئ په نفس دمتکلم کي ليکن په قضيه کلاميه او په قضيه خارجيه کي نه منم چي نسبة دي قائم سي په نفس دمتکلم کي؟

جواب: په قضيه ذهنيه کي نسبة قائم دي په نفس دمتکلم کي من حيث الوجود، په قضيه کلاميه او په قضيه خارجيه کي نسبة قائم دئ په نفس دمتکلم کي من حيث الادراک ځکه قضيه کلاميه او قضيه خارجيه بې له ادراکه نه راځي هغه نسبة چی زموږ مراد دئ دهغه تعريف دادئ هو تعلق احد الشيئين بالاخر بحيث يصح السکوت عليه يوه کلمه وبلي کلمي ته منسوب کېدل په داسي ډول چي سکوت به وربانديٍ صحيح وي که ديوې کلمې نسبة وبلي کلمې ته وي ليکن دا نسبة بحيث لا يصح السکوت عليه وي دا نسبة زموږ مراد نه دئ مثال لکه غلام زيد علامه تفتازانی وايي دنسبة داسي تفسير کول ايقاع المحکوم به علی المحکوم عليه دنسبة دا تفسيرکول په دې مقام کي غلط دئ ځکه دانه شامليږي وهغه نسبة ته چي هغه په کلام انشائيه کي دئ چی نه شامليږي نو تقسيم دکلام نه صحيح کيږي وخبر او انشاء ته سم ورته مُتَوجه سي ما تاته وويل زيد ولاړ دئ ستا په زړه کي يو کيفيت پيدا سو هغه کيفيت ته باوري او اذعانی کيفيت وايي يعنی ستا باور پر دې خبره راغلي چي زيد واقع ولاړي دئ ستا اذعان پر دې راغلی چي زيد ولاړ دئ ودغه اذعان ته ايقاع وايي دا ايقاعی نسبة په تصديقاتو کی راځي په تصوراتو کي نه راځي

اوس چي ته کلام تقسیموي خبر او انشاء ته انشاء په تصوراتو کی ده انشاء په تصدیاتو کي نه ده ( ان کان لنسبته خارج تطابقه او لا تطابقه فخبر) مراد دخارج څخه قضیه خارجیه ده دخارج په قید سره انشاء ووته ځکه انشاء قضیه خارجیه نه لري محکي عنه نه لري که قضیه کلامیه او قضیه خارجیه دواړه ثبوتین یا دواړه سلبین وو بیا اخبار دئ صدق دئ که قضیه کلامیه سلب وه قضیه خارجیه ثبوت وه یا قضیه کلامیه ثبوت وه قضیه خارجیه سلب وه بیا کذب دئ ( والا فانشاء ) الا دوه قسمه ده ۱-: استثناییه ۲-: تعلیقیه دلته الا تعلیقیه ده رامخفف ده دان لم یکن لنسبته خارج تطابقه او لاتطابقه دا ټوله په ترکیب کي شرط فانشاء جزاء ده:

قاعده هر وخت که جمله اسمیه مفرده وه خامخا به مبتداء محذوفه وي تقدیر دعبارت دادئ **فهو انشاء**: الله سبحانه فرمایي ﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ﴾ ای فهو لنفسه ﴿وَمَنْ أَسَاءَ فَعَلَيْهَا﴾ اي فَهُوَ عَلَيْهَا

## نه ویشتم سبق که دنسبة دپاره خارج وو، یا ورسره برابر وي او یا...

(ان کان لنسبة خارج تطابقه اولا تطابقه فخبر والا فانشاء)

**خارج**: علامه تفتازانی خارج مقید کړی دئ په فی احد الازمنة الثلثة سره دخارج څخه مراد محکی عنه دئ خبر چي تا ته وړاندي سو داخبر به په خوا یا اوس یا بیا به محکي عنه پیدا کوي په حین داخبار کي دمحکي عنه وجود ضروري نه دئ دمحکي عنه وجود ضروري دئ په فی احد الازمنة الثلثة کي که اخبار په ماضی کي وو بیا دمحکي عنه وجود په ماضی کي ضروري دئ که اخبار په حال کي وو بیا دمحکي عنه وجود په حال کي ضروري دئ که اخبار په استقبال کي وو بیا دمحکي عنه وجود په استقبال کي ضروري دئ تفتازانی خارج ولي مقید کړي که چیري خارج مقید نه وای بیا به سالبه استقبالیه ټولي صادقي سي موجبه استقبالیه به ټولي کاذبي سي مثال تا وویل لا یقوم زید زید نه دریږي اوس که فی الحال زید قائم نه وو دلته سالبه استقبالیه صادقه ده تا وویل سیقوم زید ژر

دي چي زيد به ودريږی ليكن فی الحال زيد قائم نه وو دلته موجبه استقباليه كاذبه ده علامه تفتازانی په مختصر كی وايی وتحقيق ذالک دخبرا و انشاء فرق كه چيري دنسبة مُوجِد ستا لفظ وو دا انشاء ده مثال يو سړي خپلي ښځي ته وويل **آنْتِ طالق** دلته دنسبة موجد لفظ دئ كه چيري دنسبة موجد واقع وه بيا اخبار دئ مثال يو سړی خپلي ښځي ته طلاق ورکړی وي اوس ما ته ووايي ما خپلي ښځي ته وويل **انت طالق** دلته دنسبة موجد واقع ده وجه دحصر شروع وه ( **والخبر لا بد له من مسند اليه هو الباب الاول ومسند هو الباب الثانی واسناد هو الباب الثالث والمسند قد يكون له متعلقات اذاكان فعلا او فی معناه هذا باب رابع :**

**قاعده:** شبه فعل ۸ شيان دي ۱-: اسم فاعل ۲-: اسم مفعول ۳-: صفت مشبه ۴-: مبالغه ۵-: مصدر ۶-: اسم تفضيل ۷-: اسم ظرف ۸-: اسم منسوب (**وكل من الاسناد والتعليق اما بقصر او بغير قصر هو الباب الخامس وكل جملة قرنت باخری اما معطوفة عليها او غير معطوفة** ) هذا باب سادس (**والكلام البليغ اما زائد علی اصل المراد لفائدة**) علامه تفتازانی وايي هر كله چي دكلام سره دبليغ قيد ولګيدي نو دلفائدة قيد ته ضروت نه سته ولي ځكه كلام چي بليغ سی مطابق سي دمقتضی دحال سره نو خامخا په ده كي يوه فائده وي (**او غير زائد**) هذا باب سابع ۸ باب انشاء ده علامه تفتازانی په مطول كي يوه خبره كوي علامه تفتازانی تنقيد كوي پر مصنف باندي تفتازانی وايی تا چي كومي خبري وكړي او كوم دليل دي دوجه الحصر دپاره ووايو لا طائل تحته ددې په بيانيدو كي هيڅ فائده نه سته ځكه دا بدهي دئ معلوم دئ هرچا ته معلوميږي چي دا مسند اليه دئ دا مسند دئ قصر فصل وصل ايجاز اطناب مساوات دا ټوله دجملې احوال دي دجملتينو احوال دي تا ته په كار داوه چي تا موږ ته په دې ځای كی دا تقرير كړی وای چی ما دمسند اليه دپاره جلا باب ولي راوړي دمسند دپاره مي جلا باب ولي راوړی داسناد خبری دپاره مي جلا باب ولي راوړی داحوال

متعلقاتو دپاره مي جلا باب ولی را وړي تا به داوینا موږ ته کړې وای یعنی ددې ابوابو دانفراد وجه به تا موږ ته معلومه کړې وای تفتازانی وایي علم معانی چي دکوم شی څخه بحث کوي دا به جمله وي یا به مفرد وي که جمله وه دا اسناد دئ اسناد جلا باب غواړي نوموږ ددې دپاره جلا باب راوړی که مفرد وو بیا به مفرد خالی نه وي یا به عمده وي یا به فضله وي عمده یا مسند الیه وي یا مسند وي ددې دپاره مي جلا باب راوړي دمسند دپاره مي جلا باب راوړي په فعل کي به یا بندوالی وي یا به نه وي که بندوالی وو ددې دپاره می جلا باب راوړي هغه باب قصر دئ مثال ما **ضَرَبْتُ إِلَّا زَيْدًا** که بحث په جمله کي وو بیا به ورته ګورو یا به یوه جمله وي یا به ډیری جملې وي که یوه جمله وه هغه اسناد خبري دئ ددې دپاره جلا باب په کار دئ که ډیر جملې وي بیا به خالی نه وی یا به معطوف علیه وي یا به معطوف علیه نه وی که معطوف علیه وي داوصل دئ که معطوف علیه نه وي دافصل دئ دوصل او فصل دپاره مي جلا باب راوړي یو څه داسي احوال دي چي نه تر مفرد پوري خاص دي نه تر جملې پوري خاص دي بلکي دا احوال په دواړو کي راځي ددې دپاره مي جلا باب راوړي هغه باب الاطناب والمساوات والایجاز دئ په دې احوالوکي خبر او انشاء مشترک دي یو څه بحثونه تر انشاء پوري خاص دي نو انشاء ۸ بابه وګرځیده :

## تنبیه علی تفسیر الصدق والکذب

**تنبیه:** دتنبیه ترکیب، تنبیه خبر ده دمبتدا محذوفې **آی هذا تنبیه**، تنبیه دې ته وایي چي ددوو بحثو په مابین کي راسي دیوه بحث دبل بحث سره علاقه داجمال اودتفصیل وي یعنی دتنبیه مابعد دماقبل دپاره تفصیل وي مخکي اجمالا دا خبره تیره سوه خبر به مطابق وي یا به نه وي که مطابق وو نو صدق ورته وایي که مطابق نه وو کذب ورته وایي لیکن بعینه دصدق او کذب ټکي نه دی تیر سوي دتنبیه وروسته به باقاعده تفصیل راته وکړي.

## ديرشم سبق رشتينى خبر هغه ده چي له واقع سره برابره وي او.....

(صدق الخبر مطابقته للواقع وكذبه عدمها وقيل مطابقته لاعتقاد المخبر ولو خطأ وعدمها)

خبر كله صادقيږي كله كاذبيږي دمختصر المعانی په مشكلو ځايونو كي يو مشكل ځاى دادئ خبر كله صادق ګرځي كله كاذب ګرځي په دې كي درې قولونه دي ١-: قول جمهور علماء وايي صدق الخبر دې ته وايي مطابقته للواقع چي كلام مطابق سي دواقع او نفس الامر سره كذب الخبر دېته وايي كذبه عدمها، چي كلام مطابق نه سي له واقع او نفس الامر سره :

**قيل** نظام معتزلی وايي دصدق الخبر او كذب الخبر داراو مدار پر اعتقاد دمتكلم دئ نظام وايي صدق الخبر دې ته وايي چي نسبة كلامي دمخبر د اعتقاد سره موافقه ولري كه څه هم په واقع كي خطا وي مثال كه دسړي دا عقيده وي چي اسمان زما تر پښو لاندي دئ بيا نسبة كلاميه ووايي السماء تحتنا دلته دا سړی صادق دئ ځكه نسبة كلاميه دمخبر داعتقاد سره موافقة لري كه څه هم نسبة كلاميه دواقع سره سمون نه خوري كذب الخبر دې ته وايي چي نسبة كلاميه دمخبر داعتقاد سره مخالفة وي كه څه هم په واقع كي صدق وي مثال كه دسړي عقيده داوي چي اسمان تر موږ كښته دئ بيا نسبة كلاميه ووايي والسماء فوقنا دلته دا سړی كاذب دې ځكه نسبة كلاميه دمخبر داعتقاد سره موافقة نه لري كه دسړي داعقيده وي چي ځمكه تر موږ لوړه ده بيا نسبة كلاميه ووايي والارض فوقنا دلته داسړی صادق دئ ځكه نسبة كلاميه دمخبر داعتقاد سره موافقه لري كه څه هم دانسبة كلاميه دواقع مخالف دئ بدليل ﴿إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ﴾ ورُدَّ بانّ المعنى لكاذبون في الشهادة او في تسميتها اوا لمشهود به في زعمهم) جمهوره علماء او نظام معتزلی په دې شي كي متفق دي چي واسطه په كلام خبري كي نه سته واسطه دامعنى چي كلام راسي نه صادق وي نه كاذب وي جمهور او نظام پردې متفق دي چي په دنيا كي داسي كلام نه سته

چي نه دي صادق وي او نه دي کاذب وي خامخا به يا صادق وي يا به کاذب وي اوس پر دي ځای اعتراض کيږی علامه تفتازانی په مطول او مختصر کي ددې جواب ورکوي ته وايي دنظام دامذهب دئ که کلام داعتقاد سره سمون وخوري نو صادق دئ که کلام داعتقاد سره سمون نه وخوری نو کاذب دئ مخکي تر دې چی موږ پوښتنه کوو يو فائده واوره :

**فائده:** که يو سړی دليری يو شی ووينی او سل په سل کي يې يقين وي چی دا انسان دئ دې ته يقين وايي که ديو سړی په سل کي ۸۰ فيصده گمان وی چي دا انسان دئ دې ته ظن راجح وايي که ديو سړی په سل کي ۲۰ فيصده دا يقين وو چي دا انسان دئ دې ته وَهم وايي که ديو سړی په سل فيصده کي ۵۰ فيصده دا يقين وو چي دا انسا دئ ۵۰ فيصده يې دا يقين وو چی خر دئ دې ته شک وايي :

**پوښتنه:** که يو سړی ظن وکړي چی دا خر دئ په دې ظن کي ته څه وايي دا خو نه صدق دئ نه کذب دئ ولي ځکه دده اعتقاد نه سته ځکه اعتقاد خو هغه وخت راځي چي دده يقين وی دلته اعتقاد نه سته له دې وجه دا نه صدق دئ نه کذب دئ دا واسطه ده؟

جواب علامه تفتازانی جواب په مطول او مختصر کي ورکوي چي داعتقاد څخه يقين نه دئ مراد داعتقاد څخه حکم مراد دئ حکم عام دئ که ظن راجح وي که جزم وي يعنی حکم کله دظن په شکل وي کله ديقين په شکل وي له دې وجه دا په صدق کي داخل دئ نو واسطه نه سوه ثابته پر مذهب دنظام :

**پوښتنه** که يو سړي شک وکړي مثال کله به وايي دا انسان دئ کله به وايي دا خر دئ له دې وجه شاک نه صادق دئ نه کاذب، ځکه نه يقين سته نه ظن راجح سته نو واسطه ثابته سوه پر مذهب دنظام ؟

**جواب:** علامه تفتازانی ددې دوه جوابه ورکوي يو جواب په اللهم سره ورکوي اشاره ده وضعف ته، تفتازانی وايي شاک په کذب کي داخل دئ ځکه کذب دې ته وايي چي موافقه داعتقاد سره ونه لري يا دسره اعتقاد نه وي نو واسطه نه راغله پر مذهب دنظام ليکن جاحظ وايي کذب هغه وخت راځي چی اعتقاد وي موافقه نه وي نو بيرته واسط

راغله دویم جواب شاک چي خبره کوي دا تصور دئ که تصدیق دئ دی وایي دا تصور دئ نو تصور خو په اخبار کي نه راځي دا داوله سره مفرد دئ که خبر وای بیا به صدق او کذب پکښي راتلای لیکن محشی وایی ښه جواب دادئ دشاک خبره په نسبة ومتکلم ته تصور دئ په نسبة ومخاطب ته خبر دئ :

متکلم چي مخاطب ته وایي هذا حمار دا خر دئ اوس دا خبره به نسبة ومتکلم مشکک ته تصور دئ په نسبة دمخاطب خبر دئ که ددې خبري نسبة ومخاطب ته وکړئ نو بیا واسطه په یو ډول ثابتیږي لیکن مشهوره دا ده چي نظام دواسطي قائل نه دئ مخکي نظام وویل دصدق او کذب دار او مدار پر اعتقاد دئ وتمسک النظام بدلیل قوله تعالی ﴿إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ قَالُوا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ اللَّهِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَكَاذِبُونَ﴾ ترجمه کله چي راسي تا ته (اې محمده) منافقان نو وایي دوی موږ شاهدي ورکوو واقع ته خامخا رسول دالله یې، او الله ته معلومه ده چي بیشکه ته خامخا رسول دده (الله) یې، اوالله شاهدي ورکوي بیشکه منافقان خامخا درواغجن دي نظام وایي إِنَّكَ لَرَسُولُ اللَّهِ کلام خبري دئ مطابق دئ دواقع سره لیکن الله منافقینو ته کاذبین ویلي دي ځکه دا نسبة کلامیه ددوي داعتقاد سره موافقه نه لري موږ نظام ته دري جوابه ورکو :

۱-: جواب: موږ وایو منافقین کاذبین دي په نَشهدُ کي ځکه ګواهي دزړه له کومي وي دزړه داخلاصه وي دمنافقینو ګواهي دزړه له کومي نه وه دزړه داخلاصه نه وه ۲-: جواب: دوي دانک لرسول الله مجلس ته دګواهي نوم ورکړی دئ دوي په دې نوم ورکولو کي کاذبین دي ۳-: جواب: په مشهود به کي دئ هغه دادئ انک لرسول الله داکلام دواقع سره مطابق دئ لیکن دوی په خپل ګمان سره دواقع مطابق نه باله دوي په نه بللو کي کاذبین دي :

وردّ بان المعنی لکاذبون فی الشهادة دا اول جواب وو، ورُدَّ بان المعنی لکاذبون فی تسمیتها دا دویم جواب وو وردَّ بانّ المعنی لکاذبون فی المشهود به فی زعمهم دا دریم جواب وو.

## یو دیرشم سبق جمهوراو نظام خبر حصر بولي په صدق او کذب کي خو جاحظ...

(الجاحظ مطابقته مع الاعتقاد وعدمها معه وغيرهما ليس بصدق ولا كذب بدليل ﴿ أَفْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَم بِهِ جِنَّةٌ ﴾ لان المراد بالثاني غير الكذب لانه قسيمه وغير الصدق لانهم لم يعتقدوه):

الجاحظ: جاحظ په ترکيب کی مبتداء ده خبر يې محذوف دئ تقدير دعبارت داسي دئ الجاحظُ قالَ جمهور او نظام خبر حصر بولي په صدق او کذب کي خبر منحصر کول په صدق او کذب کي جاحظ ددې څخه منکر دئ، جاحظ واسطه ثابتوي، جاحظ وايي صدق الخبر دې ته وايي چي کلام به مطابق وی دواقع سره مع الاعتقاد يعنی ستا اعتقاد به دا وي چي دا کلام مطابق دئ دواقع سره جاحظ وايي کذب الخبر دې ته وايي چي کلام مطابق نه وي دواقع سره مع الاعتقاد يعنی ستا اعتقاد به دا وي چي دا کلام مطابق نه دئ دواقع سره مثال السماء فوقنا دا نسبة کلاميه دواقع مطابق دئ اوس که دده اعتقاد داوو چي دا نسبة کلاميه دواقع مطابق دئ نو داسړی صادق دئ مثال السماء تحتنا دا نسبة کلاميه دواقع مخالف دئ اوس که دده اعتقاد دا وو چي دا نسبة کلاميه دواقع مخالف دئ نو داسړی کاذب دئ الجاحظ قالَ جاحظ وايي صدق الخبر دې ته وايي مطابقته مع الاعتقاد کلام به دواقع مطابق وي سره داعتقاد يعنی دده اعتقاد به دا وي چي داکلام دواقع مطابق دئ جاحظ وايي کذب الخبر دېته وايي (وعدمها معه کلام به دواقع مطابق نه وي سره داعتقا د يعنی دده اعتقاد به داوي چي دا کلام دواقع مطابق نه دئ (وغيرهما ليس بصدق ولا كذب: ددا دوارو قسمينو څخه به غير نه صدق دئ نه کذب

دئ دجاحظ په نيز دوه صورتونه دصدق او دكذب دي څلور صورتونه واسطي دي نو ټول شپږ صورتونه دي اول صورت دصدق الخبر **مطابقته للواقع مع الاعتقاد بانه مطابق للواقع** : كلام به دواقع مطابق وي سره داعتقاد يعنى دده اعتقاد به داوي چي دا كلام مطابق دئ دواقع سره دويم صورت دكذب الخبر: **عدم مطابقته للواقع مع الاعتقاد انه غير مطابق للواقع:** كلام به دواقع مطابق نه وي سره داعتقاد يعنى دده اعتقاد به داوي چي دا كلام دواقع مطابق نه دئ دواسطي اول **صورت المطابقة مع اعتقاد عدم المطابقة** كلام به دواقع مطابق وي ليكن دده اعتقاد به دا وي چي دا كلام دواقع مطابق نه دئ دواسطي دويم صورت **المطابقة بدون الاعتقاد اصلا** كلام به دواقع مطابق وي اعتقاد به دسره نه وي لكه دشاك صورت دواسطي دريم صورت **عدم المطابقة مع اعتقاد المطابقة** كلام به دواقع مطابق نه وي ليكن دده اعتقاد به داوي چي دا كلام دواقع مطابق دئ دواسطى څلورم صورت **عدم المطابقة بدون الاعتبار اصلا :**

كلام به دواقع مطابق نه وي اعتقاد به بالكل نه وي جاحظ دليل وايي په دې قول دالله ﷻ **﴿اَفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَمْ بِهٖ جِنَّةٌ﴾** تمام الاية **﴿وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلٰى رَجُلٍ يُّنَبِّئُكُمْ اِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ اِنَّكُمْ لَفِيْ خَلْقٍ جَدِيْدٍ اَفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَمْ بِهٖ جِنَّةٌ﴾**

ترجمه وقال او وايى: الذين، هغه كسان، كفروا، چي كافران سوي دي: هل ندلكم، ايا دلالت وكړ تاسي ته، على: پر، رجل: يو سړي ينبئكم: چي خبر دركوي تاسي ته، اذا: كله چي، مزّقتم : ذرې ذرې كړل سي تاسي، كل په كامل ممزّق ذره ذره كېدلو سره، انكم: واقعي چي تاسي، لفي، خامخا، خلق، په پيدا ايښت، جديد : نوى كېښي ياست، افترى:په

اصل کي اَافتری دې اوله همزه استفهامیه ده دویمه همزه وصلیه ده فحذفت الهمزة الوصلیة استغناء عنها بهمزة الاستفهام :

**فائده** : اَمْ اِمَّا اَوْ دا کلمات دقضیې منفصلې علامات دي ﴿اَفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَمْ بِهٖ جِنَّةٌ﴾ دا قضیه مانعة الخلو ده نبي علیه السلام چي داخبره وکړه چي موږ او تاسو به راپورته کیږو یعنی دمرګه وروسته ژوند سته کفارو به ویل عجیبه نه ده چي زموږ هډوکي ذره ذره سي او بیا به موږ را پورته کیږو کفارو ویل دغه سړی چي داخبري کوي نبي علیه السلام یادوي ﴿اَفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا﴾ آیا له‌خپله ځانه تړي دی (محمد) پر الله باندي درواغ اَمْ بِهٖ جِنَّةٌ یا وروپوري لیونتوب دئ کفارو ویل نبي علیه السلام چي موږ ته داخبره کوي چي موږ به راپورته کیږو داسړي درواغ وایي یا داسړي اخبار کوي دلیونتوب په حال کي که‌ته وایي اَفْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا انشاء ده اَمْ بِهٖ جِنَّةٌ انشاء ده په انشاء کي صدق او کذب نه راځي جواب موږ دلته ماصدق علیه اخلو دافتری علی الله کذبا ماصدقه علیه اخبار کذبي دئ دام به جنة ما صدق علیه اخبار جنونی دئ دوي داسي دلیل وایي دام مابعد دام دماقبل دپاره قسیم وي یعنی الله اخبار دنبي علیه السلام دوو ته تقسیم کړی یو اخبار کذبي بل اخبار جنونی دا دواړه قسمونه دي دمطلق اخبار نو دا دواړه قسمین دئ قانون دادئ قسم الشئ ضد له. لهذااخبار جنونی کذب نه دئ ځکه اخبار جنونی دکذب قسم دئ قسم الشي ضدٌ له اخبار جنونی صدق نه دئ ځکه کفارو اعتقاد نه درلودی صدق لره دنبي علیه السلام له دې وجه اخبار جنونی نه صدق دئ نه کذب دئ دا واسطه ده جاحظ په دې آیت سره یوازی واسطه ثابتوي پر خپل مذهب باندي دلیل نه وایي موږ جواب ورکو اخبار جنونی داخبار سره بالکل جمعه کیږي ام به جنة درواغ افتری علی الله کذبا هم درواغ ګوره ام به جنة په درواغو کي شامل سو که‌ته وایي اخبار جنونی دکذب قسیم دئ موږ وایو یو خاص کذب دئ بل مطالق کذب دئ ام به جنة دمطلق کذب قسیم نه دئ ام به جنة دخاص کذب قسیم دئ نو ام به جنّة دمطلق کذب سره جمعه کیږي :

اصل کي دوې کذب تقسیموي کفار وايي نبي علیه السلام په خبره کي دروغجن دئ خو کذب دده دوه قسمه دئ یو افتری علی الله کذبا دئ بل ام به جنة دئ کذب دوه قسمه دئ یو کذب عن عمد بل کذب لاعن عمد کذب لا عن عمد نه جمعه کیږي دکذب عن عمد سره لیکن دمطلق کذب سره جمعه کیږي له دې وجه دا واسطه نه ده بلکي دا په کذب کي داخل دئ :

( **ورد بأن المعنی ام لم یفتر فعبر عنه بالجنة لان المجنون لا افتری له** ) **ورد بأن المعنی** رد سوه په دارنګه باندي چي معنی دام به جنة **ام لم یفتر** ده **فعبر عنه** نو دعدم الافتراء څخه تعبیر وسو **بالجنة** په جنة سره **لان المجنون لا افتری له** ځکه مجنون لره افتراء نه وي :

**فائده:** په یو کلمه کي چي څومره قیودات وي نو تخصیص پکښي زیات وي مثال الکلمة لفظ په لفظ کي لفظ مهمل او لفظ مستعمل دواړه شامل دی څه وخت چي دلفظ سره دوضع قید ولګیدی نو تخصیص پکښي راغلی لفظ مهمل خارج سو **لمعنی مفردٍ** په دې قید سره کلام خارج سو .

## دوه دیرشم سبق احوال الاسناد الخبری

( *احوال الاسناد الخبري* )

مثال زید قائم دزید او قائم په مابین کي اسناد سوی دئ ودغه اسناد ته چي څومره امور عارضیږي نو ما باب په بیان ددې احوالو کي راوړي داسناد خبري تعریف وهو ضم کلمة او ما یجری مجرها الی اخری بحیث یفید المخاطب ان مفهوم احدهما ثابت لمفهوم الاخری او منفی عنه: انضمام دکلمې دئ او ما یجری مجرها لکه مرکب ناقص یعنی انضمام دکلمې یا دمرکب ناقص دئ وبلی کلمې ته په دې ډول چي مخاطب ته دا فائده ورکړي چي مفهوم دیوه وبل ته ثابت دئ یا منفی دئ :

**پوښتنه:** بحث دخبر ولي مقدم سو پر بحث دانشاء باندي ؟

**جواب:** ددې دپاره موږ دوه جوابونه ورکوو ۱-: خبر مې مقدم کړ تر انشاء ځکه دخبر مباحث خواص معانی زیات دئ تر انشاء ۲-: خبر مې مقدم کړ تر انشاء ځکه دخبر شان عظیم دئ ځکه دانشاء تعلق داحکامو شرعیه وو سره دئ دخبر تعلق دعقائدو شرعیه وو سره دئ عقائد شرعیه ډیر معتبر دي تر احکامو شرعیه وو ځکه که دسړي عقیده خرابه وي که قبله سوری کړې بیا هم فائده نه ورته کوی نو عقائد ټول اخبار دي مثال الجنة حق والنار حق ،محمد رسول الله :

**إِنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ** **پوښتنه:** اسناد تر مسند الیه او مسند ولی مقدم سو او حال دادئ چي ثبوت داسناد به غیر دثبوت دطرفینو نه راځي نو په کار ده چي داسي ویل سوی وای احوال المسند الیه واحوال المسند واحوال الاسناد الخبری ؟

**جواب:** یو ذات الطرفین دئ بل وصف الطرفین دئ خلاصه دجواب داده په اعتبار دذات الطرفین تحقق داسناد به غیره دتحقق دطرفینو نه راځي په اعتبار دوصف الطرفین تحقق دطرفینو به غیره دتحقق داسناد نه راځي چي تر څو پوري اسناد نه وي تر هغو پوري ته زید قائم ته مسند الیه او مسند نه سي ویلای موږ چي دطرفینو څخه بحث کوو په اعتبار دوصف نه په اعتبار دذات سره :

*(لاشک ان قصد المخبر بخبره افادة المخاطب اما الحکم اوکنه عالما به ویسمی الاول فائدة الخبر والثانی لازمها )*

**دلاشک** څخه بیا تر ینبغي پوري دا تمهید دئ لبیان احوال الاسناد دپاره دبیا نولو داحولو داسناد دمخبر داخبار دوه مقصده دي یو مقصد که خبر نه یې خبر سه دویم مقصد که خبر یې په دې خبر سه چي زه هم خبر یم اول ته فائدة الخبر وایي دویم ته لازم دفائدة الخبر وایی اوس راسي عبارت ولکوو **لاشک** هیڅ شک نه سته **ان قصد المخبر بخبره**

دمخبر په خپل خبر سره قصد ( **افادة المخاطب**: مخاطب ته فائده رسول دئ (**اما الحكم** یا دحکم چي په دې حکم خبر سه( **او كونه علم** یا مخاطب ته دا فاده رسول دي چي په دې خبر سه چي زه هم په دې حکم خبر یم ،طالبانو دسوقي کتل یا حاشیي کتل ډیري خبري کول معانی په دې نه زده کیږي معانی په ښه تعبیر کولو سره زده کیږي از روي تجربه:

اوله خبره پر المخبر باندي کوو هر سړی چي خبر ورکوي ډا پر دوه قسمه دئ يو متكلم بالجملة الخبرية بل من يكون بقصد الاخبار هغه څوک چي تکلم کوي په جمله خبريه باندي دې ته مخبر وايي هغه څوک چي نفس قصد يې داخبار کړي وي دې ته هم مخبر وايي دعلامه قزويني په عبارت کي دمخبر څخه من يكون بقصد الاخبار مراد دئ دمخبر څخه من تکلم بالجملة الخبرية نه دئ مراد که دمخبر څخه من تكلم بالجملة الخبرية مراد سي بيا اعتراز وار ديږي هغه اعتراز دادئ چي تكلم بالجملة الخبرية به وي نه په فائدة الخبر وي نه به لازم دفائدة الخبر وي او حال دادئ دمخبر داخباز دوه مقصده وي يو مقصد فائدة الخبر وي بل مقصد لازم دفائدة الخبر وي ذکريا عليه السلام خدای پاک ته وايي ﴿قَالَ رَبِّ إِنِّي وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّي وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ شَيْبًا﴾ قال وويل ذكريا رَبِّ اي زما ربه إِنِّي واقعي زه چي يم وهن سست ضعيف سوي دي العظم ټول هډوكي مِنِّي له ما څخه **واشتعل** شغلي وهي **الرأس** سر (زما) **شيباً** دجهته دسپينوالي دلته فائدة الخبر نه سته ځکه ذکريا عليه السلام خدای پاک ته داسي نه وايي که خبر نه يې خبر سه ځکه الله پاک خبر دئ دلته لازم دفائدة الخبر نه سته ځکه ذکريا عليه السلام خدای پاک ته داسي نه وايي که خبر يې په دې خبر سه چي زه هم خبر يم ځکه الله پاک په ده باندي خبر دئ په هر صورت کي بل مثال دعمران ښځه خدای پاک ته وايي ﴿قَالَتْ رَبِّ إِنِّي وَضَعْتُهَا أُنْثَىٰ﴾

**قالت** وويل ښځي دعمران **رب** چي اي زما ربه **اني** واقعي زه چي يم **وضعتها** ومي زيږوله هغه (نذر) **انثى** حال دا چي ښځه ( نجلۍ) ده دلته فائدة الخبر نه سته ځکه امرأة عمران الله پاک ته داسي نه وايي که خبر نه يې خبر سه ځکه الله پاک خبر دی لازم د فائدة الخبر نه سته ځکه امرأة عمران خدای پاک ته داسي نه وايي که خبر يې په دې خبر سه چي زه هم

خبريم ځکه الله په دې خبر دئ په هر صورت کې په اول آيت کې حضرت زکريا عليه السلام خدای پاک ته اظهار دضعف لو تخشع کول غواړي په دويم ايت کې امرأة عمران خد ای پاک ته اظهار دتحزن او دتحسر کول غواړي :

ګوره امرأة عمران او حضرت ذکريا خدای پاک ته اخبار نه ورکوی من يکون بقصد الاخبار نه دی دا دواړه متکلم بالجملة الخبرية دئ مقصد يې اظهار دتحزن او دتحسر او دضعف او دتخشع دئ دويمه خبره پر افادة المخاطب کوو دلته افادة مصدر دئ مضاف دئ ومفعول ته دا فادة فاعل حذف دئ هغه فاعل محذوفه ضمير دی راجع دی ومخبر ته :

المخاطب: اول مفعول دئ دافادة دپاره اما الحکم مفعول ثانی دئ دافادة دپاره تقدير دعبارت دا دئ افادتُهُ المخاطب اما الحکم، مصدر سره دفاعله سره دمفعولينو دا به خبر سي دانّ قصد المخبر دپاره : دريمه خبره داده مناطقه دحکم يورنګه تعبير کوي اهل معانی والا دحکم بل رنګه تعبير کوي مناطقه دحکم تعبير داسي کوي ايقاع النسبة وانتزاع النسبة: اهل معانی والا دحکم تعبير داسي کوي وقوع النسبة او لا وقوعها علامه تفتازانی وايي والمراد بالحکم هنا وقوع النسبة مثلا لا ايقاعها:

څلورمه خبره په فائدة الخبر او لازمها کي کوو، دفائدة الخبر څخه لازم دفائدة الخبر نه جلا کيږی يعنی دفائدة الخبر سره دا ضروري ده چي لازم دفائدة الخبر وي مثال تا ما ته وويل که خبر نه يې خبر سه اوس که زه خبر نه وم خبر به سم ليکن ددې سره داضروري ده چي ته به خامخا خبر يې :

دلازم دفائدة الخبر سره دا ضروري نه ده چي افادة الخبر به وی مثال تا ما ته وويل حفظت القرانَ تا قران ياد کړي دئ اوس زه په خپل ځان خبريم چي ما قران ياد کړي دئ ليکن تا ماته يوازی دا وښودل چي زه هم خبريم چی تا قران ياد کړي دئ ګوره دلته افادة الخبر نه سته ځکه زه مخته خبريم چي ما قران ياد کړي :

**پوښتنه:** که يو سړي قران ياد کړی وو تا ورته وويل حفظت القران دلته افادة الخبر نه ستهٔ ځکه دی په خپل ځان خبر دئ چي ما قران ياد کړئ دئ لازم دفائدة الخبر څه معنی چي ملزوم نه وی لازم به څرنګه راسي ؟

**جواب:** بالفعل که دده څخه فائدة الخبر مستفاد نه دئ ليکن شان به دده داوي چي دده څخه به فائدة الخبر را مستفاد کيږی په نور جملو کي :

**پوښتنه:** زه متکلم يم زه په خپل کلام کي شکمن يم متردد يم ما مخاطب ته وويل حفظت التورات دلته فائدة الخبر نه سته ځکه مخاطب په خپل ځان خبر دئ چي ما تورات ياد کړي دئ لازم دفائدة الخبر هم نه ستهٔ ځکه متکلم کونه عالما به نه دئ يعنی دمتکلم پر کلام باندي تصديق نه سته متکلم په خپل کلام کي مشکوک دئ يا متکلم په خپل کلام کي مظنون دئ يا متکلم په خپل کلام کي موهوم دئ ؟

**جواب:** دمتکلم په ذهن کي به صور ذهنيه وي نو متکلم دا صور ذهنيه مخاطب ته کله دشک په صورت وړاندي کوي کله ديقين په صورت وړاندي کوي ، کله دوهم په صورت وړاندي کوي، **(وقد ينزل العالم بهما منزلة الجاهل لعدم جريه على موجب العلم)** دمخبر په خپل اخبار سره دوه مقصده وي ١-: فائدة الخبر ٢-: لازم دفائدة الخبر :

**پوښتنه:** اوس که ستا مخاطب عالم وو په فائدة الخبر او په لازم دفائدة الخبر له دې وجه اوس که متکلم دی عالم مخاطب ته اخبار وکړي چي الصلوٰة واجبة لمونځ فرض دئ دلته فائدة الخبر نه سته ځکه دی مخکي په خبر دئ لازم دفائد ة االخبر نه سته ځکه مخاطب متکلم ته وايی چي ته په دې عالم يې چي صلوة واجب دئ؟

**جواب:** علامه قزوينی ددې پوښتنی مقدره جواب ورکړي دئ قزوينی وايی **وقد ينزل العالم بهما منزلة الجاهل** کله کله مخاطب داسي مخاطب چي عالم وي په فائدة الخبر

او په لازم دفائدة الخبر دانازل سي په منزله دجاهل دليل (**لعدم جريه على موجب العلم**) ځکه دده جريان نه سته دعلم پر تقاضا باندي او حال دادئ چي عالم ته مناسب دادي چي دی دعلم پر تقاضا ولاړ سي هر هغه عالم چي جريان نه کوي دعلم پر تقاضاباندي دغه عالم او جاهل سواءٌ برابر دي ځکه دعلم تقاضا عمل دئ دوی دواړه دعلم پر تقاضا جريان نه کوي علامه تفتازانی په مطول او مختصر کي وايي الله پاک په خپل کلام کی عالم نازل کړي په منزله دجاهل مثال قوله تعالى وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرَاهُ مَالَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ وَلَبِئْسَ مَاشَرَوْا بِهِ أَنْفُسَهُمْ لَوْكَانُوا يَعْلَمُونَ ﴾

**ترجمه** :خامخا په تحقيق سره، علموا :پوهېدل دوي، لمن: هغه کس، اشتراهُ: چي اختيار کړي دا جادو کول، مآله: نه سته ده لره، في الاخرة: په آخرت کي ، من خلاق: څه برخه، ولبئس: او خامخا ډير خراب دئ ،ما: هغه څه، شروا: چي دوي خرڅ کړل، انفسهم: خپل ځانونه، لو: کاشکي، کانوا: وايي دوی، يعلمون: پوهيدلای، محل داستشهاد په دې آيت کي داقول دالله لوكانو يعلمون الله پاک دلته ددوي څخه علم نفی کړي ځکه لو امتناع دثانی کوي دوجي دامتناع داول:

**پوښتنه**: الله پاک دوی ته دآيت په اوله برخه کي علم ثابت کړی دئ ای وَلَقَدْ عَلِمُوا الله پاک بير ته په اخيري برخه کي ددوي څخه علم نفې کړې يعنى هغه علم چي دلو وروسته دئ هغه منفی دئ له دې وجه اول دايت او اخير دا يت منافی دي ؟

جواب: يهودو چي څه وخت دعلم پر تقاضا عمل نه کوی نو دغه علم نازل سو پر منزله دعدم علم پس دوی وگرځيده په منزله دجاهلينو لو كانو يعلمون دلته دلو جواب مقدر دئ تقدير دعبارت دادي لو كانو يعملون لا متنعوا منه که چير دوی پوهيدلای اشترا بهدوی نه وای کړی او س اشتراء کوي ځکه دوی عالمان نه دي علامه تفتازانی په مطول او

مختصر کي وايی الله پاک وجودي شي نازل کړي په منزله دعدمي باندي مثال قوله تعالی **ومارميت اذرميت ولکن الله رمی**

ترجمه: ومارميت تا ويشتل نه دي کړي اذ په هغه وخت کي رميت چي تا ويشتل کړي وو، په غزوه بدر کي نبی عليه السلام يو مټ خاوره پر کفارو وپاشله دټولو کفارو په سترګو کي ولويدلي نو کفارو شکست وخوړی، الله پاک په وما رميت کي نفی کوي په اذ رميتَ کي اثبات کوي وروسته الله وايي دغه ويشتل ما وکړه ګوره ويشتل وجودي شي دئ ليکن الله دا وجودي په منزله دعدمي کړي (**فينبغي ان يقتصر من الترکيب علی قدر الحاجة**) فاء په ينبغي کي دتفريع دپاره ده فاء تفريعيه دې ته وايي چي دفاء ما بعد تفريع وي پر ماقبل باندي اي اذا کان قصد المخبر بخبره افادة المخاطب فينبغي الخ:

څه وخت چي متکلم په خپل خبر سره مخاطب ته فائده ورکول غواړي يا دفائدة الخبر يا دلازم دفائدة الخبر نو متکلم به په خپل خبره کي دمخاطب دحال پوره پوره رعايت کوي **فينبغي** ښايی **ان يقتصر** اکتفاء به کوي **من الترکيب** په کلام مرکب کي **علی قدر الحاجة** څومره چي دمخاطب ضرورت وي

## فان کان خالی الذهن من الحکم والتردد فيه

(**فان کان خالی الذهن من الحکم والتردد فيه استغنی عن مؤکدات الحکم**) که چيري مخاطب خالی الذهن وو يعنی که مخاطب ديو حکم منکر نه وو اودا مخاطب په دي حکم کي متردد هم نه دئ نو متکلم به داسي مخاطب ته ساده کلام را وړي کلام مؤکد به نه راوړي **فان کان خالی الذهن من الحکم والتردد فيه** که چيري مخاطب خالی الذهن و **من الحکم والتردد فيه** دحکم او تردد فيه څخه:

پوښتنه: علامه تفتازانی په مطول کي وايي بعض علماء وايي تر دد دحکم سره لازم دئ يعنی کله چي دمخاطب ذهن دحکم څخه خالی وو نو دتردد فی الحکم څخه به هم خالی وي نو بعض علماء وايي **لا حاجة الی قوله والتردد فيه؟**

جواب: موږ دلته دحکم څخه اذعان او تصديق اخلو له دې وجه داذعان او ديقين په نفی سره دتردد نفی نه راځي (**والکان مترددا فيه طالب له حسن تقويته بمؤکد**) که چيري مخاطب په يو حکم کي متردد وو او مخاطب ددې حکم طلب کونکي وو نو ښه خبره داده چي متکلم ودې مخاطب ته کلام مؤکد راوړي (**وان کان منکرا وجب توکيده بحسب الانکار**) که چيري مخاطب منکر وو ديو حکم نو دې مخاطب ته کلام مؤکد راوړل واجب دي په حسب دانکار، **والکان منکر اوجب توکيده بحسب الانکار** علامه تفتازانی دلته دوه مضافه را يستلي دي تفتازانی دا رنګه وايي وجب زيادة توکيده بحسب ازدياد الانکار ترجمه يې داده چي څومره څومره انکار وي دومره دومره به تاکيد وي وجوب کلي متواطي دئ کلي متواطي زيادت او نقصان نه قبلوي :

پوښتنه: ستا دعبارت څخه دارامعلوميږي دبحسب الانکار تعلق دوجوب سره دئ نو دا معنی چي څومره انکار وي نو دومره به وجوب زياتيږي نو علامه تفتازانی جواب وکړ چي زياتوب دتاکيد راځي په اندازه دانکار سره (**کما قال الله تعالی حکاية عن رسل عيسی عليه السلام اذ کذبوا فی المرة الاولی ﴿اِنَّآ اِلَيْکُمْ مُّرْسَلُوْنَ﴾**) الله پاک دعيسی عليه السلام درسولانو حکايت کوی عيسی عليه السلام رسولان واستول الی اهل انطاکية ته په اول وار دوی درسولانو تکذيب وکړ نو کلام يې مؤکد راوړی په دوو تاکيدو سره يو اِنَّ دئ بل جمله اسميه ده :

په اوروي ۲-: کله په هوا وي ۳-: کله په دبره وي ۴-: کله په اوبو وي له دې وجه نوح علیه السلام دعذاب په انواعو کي متردد وو الله پاک وايي ﴿إِنَّهُمْ مُغْرَقُونَ﴾ دوی به په اوبو غرق کيږي دلته دنوح علیه السلام تردد ختم سو **فيجعل غير السائل كالسائل** غير سائل لکه سائل ګرځي، **اذا قدم اليه**، کله چي وړاندي سي وغير السائل ته **ما يلوح له** هغه کلام چي اشاره کوي ودې غير سائل ته **بالخبر** په جنس خبر سره **فيستشرف له** انتظار کوي ګورئ غير سائل وجنس خبر ته **استشراف الطالب المتردد** لکه کتل دطالب داسي طالب چي متردد وي نحو ولا تخاطبني في الذين انهم مغرقون :

ترجمه :اومه کوه خبري له ماسره په اړه دهغو کسانو کښي چي ظلم يې کړي دئ واقعي دوي غرق کيدونکي دي :

## وغير المنكر كالمنكر

( **وغير المنكر كالمنكر اذا لاح عليه شئ من امارات الانكار نحو شعر جاء شقيق عارضا رمحه، ان بني عمك فيهم رماح**) دخفى الحال دويمه ماده غير المنكر كالمنكر ده زه متكلم يم دوست زما مخاطب دئ مخاطب زما دخبري انكار نه کوي خو پر مخاطب باندي دانکار علامې ښکاره کيږي نو زه تاکيد راوړم دې ته غير المنكر كالمنكر وايي :

**وغير المنكر**: غيرمنكر ګرځي لکه منکر **اذالاح عليه** کله چي ښکاره سي پر غير منکر باندي **شئ من امارات الانكار** يو شی دانکار دعلاماتو څخه مثال يو سړی پر آس سپور دئ جنګ ته روان دئ مخته دښمنان په کمين کي ورته ناست دئ په دغه دښمنانو کي دده داکا زامن هم ناست دي اوس ده ته په کار ده چي توره سيده ونيسي يا توره اوږده ونيسي ليکن ده توره پر څنګنو ايښي په بردرواله يې ايښې ده اوس دا سړی له دې څخه انکار نه

کوي چي دا کمزوری دي یا جنګ نه کوی لیکن دده ورتګ په دې طریقه باندي دا دانکار علامه ده له دې وجه دې ته به تاکید را ورل کیږي :

**جاء شقیق** : راغلی شقیق، **عارضاً رمحه**، په داسي حال کي چي ده توره ایښي وه په بردرواله باندي، **ان بني عمک فیهم رماح**: نو ده ته وویل سو بېشکه ستا داکا زامن په دوی کي نیزه ویشتونکي دي علامه تفتازانی وایي مرزوقي: ویلي دي دې سړي ته چي **انّ بني عمک فیهم** وویل سو دا تهکم او استهزاء ده چي ته داسي بې غمه روان یې لکه په دوی کي چي سړی نه وی او که ته په دې خبر سي چي په دوی کي سړی سته بیا به ته ددوي وخوا ته ونه ګورئ.

## څلور دیرشم سبق منکر داسي اچول لکه نه منکر

( **والمنکر کغیر المنکر اذا کان معه ما ان تأمله ارتدع نحو لا ریب فیه**) منکر ګرځي لکه غیر منکر هغه وخت چي دمنکر سره خارجي دلائل او شواهد وي داسي دلائل او شواهد که چیري دا منکر دا دلائل او شواهد په کار واچوي دده انکار به ختم سي نو دا منکر دئ سو لکه غیر منکر له دې وجه متکلم ته ضرورت نه سته چي تاکید راوړي مثال ﴿**قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ**﴾ الله فرمایي اې پیغمبره ته ورته ووایه الله یو دئ ګوره په قل هو الله احد کي یو تاکید نه سته لیکن منکرین یې ډیر دي الله ددوی انکار وګرزوي په منزله دعدم انکار ځکه الله پاک یو تاکید نه راوړي مشرکین دالله دوحدانیت څخه منکر دي الله پاک دوی ته عقل ورکړی دئ که دوی په خپل عقل سره دلائل معلومه شواهد معلومه په کار واچوي نو ددوی انکار به ختم سي له دې وجه متکلم وایي ما ته ضرورت نه سته چي زه تاکید راوړم :

**فائده**: په ممکناتو کي هر ممکن معلول وي دیو علت دپاره مخلوق یو علت لري که مخلوق علت ونه لري مخلوق په وجود کي نه راځي ځکه دمخلوق وجود او عدم علی السویه دي وجود ته ترجیح ورکول پر عدم باندی دا یو علت او خالق غواړي علت او خالق

نه دئ مګر پوازې الله مسلّمه قاعده ده هر معلول دخپل علت دپاره عکس وي یعنی په معلول کي علت ښکاره کېږی ځکه شاعر وایي هر شی ته چي لاس ور وړي هغه وایی خدای سته هر شی ته چي ګورئ هغه وایي خدای سته مثال مبایل یو مخلوق دئ الله خالق دئ مبایل معلول دئ الله علت دئ په دې معلول کي علت ښکاره کېږی څه معنی دا معنی مبایل په خپل ځان کي یو دئ نو ښکاره خبره ده چي علت هم یو دئ .

## پنځه دېرشم سبق المنکر کغیر المنکر

(*والمنکر کغیر المنکر اذا کان معه ما ان تامله ارتدع نحو لا ریب فیه*)

منکر ګرځي لکه غیر منکر هغه وخت چي دمنکر سره دلائل معلومه او شواهد محسوسه وي اوس که دا منکر دلائل او شواهد په کار واچوي نو دده انکار به ختم سي متکلم وایي ما ته دتاکید دراوړلو ضروت نه سته ځکه دده سره دلائل او شواهد سته که دي دا په کار واچوي نو دده انکار به ختم سي علامه تفتازانی وایی کلمه د**ما** عبارت ده دلائل او شواهد څخه بعض وایي کلمه د**ما** عبارت ده دعقل څخه علامه تفتازانی وایي بنا پر دې تقدیر ظاهري عبارت نه صحیح کېږي ځکه فساد دمعنی راځي فساد دمعنی دارنګه راځي منکر غیر منکر ګرزي هغه وخت چي دمنکر سره ما هغه عقل وي که چیري تامل په عقل کي وسي له دې وجه تأمل په عقل سره وي تامل په عقل کي نه وي که بیا هم ما عبارت دعقل څخه سي بیا داسي عبارت په کار وو **اِنْ تَأَمَّلَ بِهٖ**: نحو لاریب فیه په دې کتاب کي هیڅ شک نه سته :

**پوښتنه:** دلته نفس حکم نه دئ صحیح هغه حکم نفي دریب بالکلیه دئ ځکه دقران مرتابین منکرین ډیر دي تاکید راوړل او نه راوړل دا خو دوروسته کار دئ ؟

جواب: علامه تفتازانی ددې اعتراض جواب ورکوي تفتازانی وایي دا آیت پر ظاهر حمل نه دئ دلته تأویل کوو یعنی قران محل دریب نه دئ مظن دریب نه دئ کفار و انکار

وکړ ویل قران محل دریب دئ الله پاک ددوی ریب په منزله دعدم ریب کړئ علامه تفتازانی وایي احسن دادئ چي لاریب فیه دبلي قاعدې مثال سي منکر کغیر المنکر دا به دهغه قاعدې نفر سي هغه قاعده داده تنزیل الوجود بمنزلة العدم ریب سته داوجودي دی الله پاک داریب په منزله دعدم کړنو تنزیل دوجود په منزله دعدم سوه انکار وجودي دئ الله پاک دا انکار په منزله دعدم کړ، علامه تفتازنی وایي دا احسنه وجه ده ځکه که دا احسنه وجه نه سي نو مشکل دادئ چي دعبدالرحمن قزوینی دعبارت څخه دا رامعلومیږي چي مخکي ټول صورتونه وجودي دي لاریب فیه وجودي نه دئ هغه عبارت دادی وهکذا اعتبارات النفی شپږ صورتونه په مثبت کي وو شپږ صورتونه په نفی کي دي په مطول او مختصر المعانی کي دا یو مشکل ځای دئ علامه تفتازانی په مطول کی یو څو قواعد بیانوي تفتازانی وایي هر ځای اِنّ دتاکید دپاره نه وی کله کله اِنّ ددې دپاره وي چي متکلم مخاطب ته وایي زما بل رنګه خیال وو مګر اوس قصه دی پیښه سوه او دا ته وینی او دا ته اورې دعمران ښځه خدای ته وایي ﴿رَبِّ إِنِّي وَضَعْتُهَا أُنثَىٰ﴾ ترجمه اي زما ربه واقع زه چي یم ومي زیږاوو هغه (نذر) حال دا چي ښځه ده، دعمران ښځه متکلمه ده الله پاک مخاطب دئ متکلم مخاطب ته وایي زما خیال خو دا وو چي زما به زوی پیدا سي مګر اوس قصه داسي سوه چي زما انجلۍ پیدا سوه او دا ته وینې ګوره دلته اِنّ دتاکید دپاره نه ده ځکه امراة عمران متکلمه ده الله مخاطب دئ الله انجلۍ وینی الله نه انکار کوي نه تردد کوي بل مثال ﴿قَالَ رَبِّ إِنَّ قَوْمِي كَذَّبُونِ﴾ ترجمه وویل نوح اې زما ربه واقع چي زما قوم زه دروغجن وبللم نوح علیه السلام متکلم دئ الله مخاطب دی متکلم مخاطب ته وایي زما خو دې خیال وو چي زما قوم به زما خبره ومنی مګر اوس قصه دئ سوه چي زما قوم زما خبره یې نه ومنل او زما قوم زه دروغجن وبللم دلته اِنّ دتاکید دپاره نه د ځکه مخاطب چي الله دئ دا دمتکلم دخبري انکار نه کوي زمونږ استاذ ویل چي په کوم ځای کي اظهار دتحزن او دتحسر کېدی تقریبا غالبا دادئ قاعدې سره تعلق نیسي کله کله اِنّ ددې دپاره استعمال سي چي متکلم دا غواړي چي دا خبره دمخاطب په ذهن کي ښه قرار ونیسي ما ته ګوره یو خبره مهتم بالشان وي ته دا غوړي چي دا دمخاطب په دماغ کی ښه قرار ونیسي نو ته به اول وار ضمیر شان راوړې ضمیر شان څه کار کوي ضمیر شان سړی

ځان ته متوجه کوي اې ما ته ګوره خبره خو دی ده دا دضمير شان ترجمه ده دويم وار به ان
راوړي نو خبر به په ذهن کي ښه قرا ونيسي مثال قوله تعالى ﴿إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ﴾

## شپږدیرشم سبق دشپږو قاعدو پیژندل

دنن په سبق کي شپږ قواعد دي ګوره تاکيد ټول عمر په انکار تاويږي دغه انکار کله په
متکلم کي وي دغه انکار کله په مخاطب کي وي اوله قاعده متکلم مخاطب ته خبره کوي
مخاطب دمتکلم دخبري انکار نه کوي مخاطب متکلم ته دشک په نګا ګوري وايي دا ته
چي کومه خبره کوې دابه ستا زړه ته نه لويږي نو متکلم راولا ړسي تاکيدات راوړي ددې
دپاره چي دمخاطب نظر واوړي ددې خبري څخه چي متکلم دخپلي خبري منکر دئ مثال
﴿قَالُوا تَاللَّهِ لَقَدْ آثَرَكَ اللَّهُ عَلَيْنَا وَإِنْ كُنَّا لَخَاطِئِينَ﴾ ترجمه وويل (ورونو) قسم دئ په الله
خامخا په تحقيق غوره کړې يې ته الله پر موږ او بېشکه چي وو موږ خامخا له خطا کوونکو
دلته متکلمين ديوسف عليه السلام ورونه دي يوسف مخاطب دئ يوسف عيله السلام
ددې خبري انکار نه کوي چي زه الله پاک پر تاسو غوره کړي يم او نه په دې خبره کي متردد
دئ بيا متکلم تأکېدات څنګه راوړي له دې وجه يوسف عليه السلام متکلم ته دشک په
نګاه ګورې وايي ياره کومه خبره چي تاسو کوئ چي يوسف عليه السلام الله پاک پر موږ
غوره کړي دئ دا به ستاسو زړه ته نه لويږي نو متکلم تاکدات راوړي ددې دپاره چي
کومه خبره زه کوم دا زما زړه ته لويږي دپلار کوچنى زوى بيلول په دوکه او په پراد باندي
بيا ځا ته غورځول دا غټه خطا ده يوسف عليه السلام دوى خطا کاره بلل ددې خبري
څخه يې انکار نه کوي او په دې خبري کي متردد نه وو بيا تاکيدات څنګه راوړي مثال
﴿وَإِنْ كُنَّا لَخَاطِئِينَ﴾ دلته إِنْ مخفف عن المثقل دی له دې وجه إِنَّ چي څرنګه دتاکيد
دپاره راځي همدا رنګه إِن مخفف عن المثقل هم دتاکيد دپاره راځي، نو دلته دوه تاکيده
دي يو إِنْ دئ بل لام دئ په لخطئين کي يوسف عليه السلام ددوي په خطاء والی کي
انکار نه کوي متردد نه دئ دوى خو ځان خطا کاره بولي خو يوسف عليه السلام دشک په
نګاه ورته ګورى وايي ستاسو به زړه ته نه لويږي نو متکلم تاکيد راوړي ددې دپاره چي

زه ځان خطا کار بولم دویمه قاعده مثال قوله تعالی ﴿وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا إِلَىٰ شَيَاطِينِهِمْ قَالُوا إِنَّا مَعَكُمْ﴾ ترجمه هر کله چي ملاقات وکړي (منافقان) دغو کسانو سره چي ایمان یې راوړي دئ نو وایي چي ایمان مو راوړي دئ او هر کله چي یواځي سي له شیطانانو (مشرانو) خپلو سره نو وایي دوی چي بېشکه موږ ستاسي سره یو دا کلام دمقتضی الحال مطابق نه دئ نو بلیغ نه دئ نو دقران حصه نه ده ولی معجز نه دئ ولی منافق چي مؤمن ته ورغلی انکار تردد یې درلودی لیکن ساده کلام یې راوړي دئ، منافق چي یهودو ته ورغلی یهودو انکار نه کوي تردد یې نه کوي لیکن ده تاکید ورته راوړي منافقین چي مؤمنانو ته ورغله مؤمنان منکرین دي ددوی دخبري نو دوی ته تاکید په کار وو داسي عبارت په کار وو ﴿قَالُوا وَاللَّهِ إِنَّا آمَنَّا﴾ منافقین چي خپلو مشرانو ته ورغله دغه مشران ددوي دخبري منکرین نه وو نو په کار ساده کلام وو داسي عبارت په کار وو ﴿قَالُوا نَحْنُ مَعَكُمْ﴾ خو الله ﷻ چي دانکار ځای نه دئ هلته تاکید راوړي چي دانکار ځای دئ هلته تاکید نه راوړي دا ولی څه وجه ده علامه تفتازانی یو عجیبه قاعده لیکي وایي کله کله دمتکلم مخاطب منکروی خو ددې انکار باوجود دی په خپل کلام کي تاکید نه راوړي ددې وجه چي ده ته په ژامه کي خوند نه ورکوي زړه یې نه ورغواړي هسي ځان خلاصوي بیا وایي که زه تاکید ورته راوړم زما مخاطب یې نه منی نو متکلم راولاړ سي ساده کلام ورته راوړي متکلمین چي منافقین دئ مخاطبین چي مؤمنان دي منافقینو ته په ژامه کي دا خوند نه ورکوي چي تاکید راوړي او که تاکید راوړي مؤمنان یې نه منی نو ځکه یې ساده کلام راوړي نو وي ویل ﴿قَالُوا آمَنَّا﴾ په ﴿قَالُوا إِنَّا مَعَكُمْ﴾ کي چي تاکید دئ دا دوی ته په ژامه کي خوند ورکوي او ددوي تاکید قبلیږي:

دریمه قاعده مثال قوله تعالی ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُ﴾ متکلم الله دئ مخاطب نبي علیه السلام دئ مخاطب نه منکر دئ نه متردد دئ او مخاطب متکلم ته دشک په نګاه هم نه ګوري بیا دتاکید څه ضرورت دئ علامه تفتازانی وایي کله کله متکلم مخاطب ته خبره کوي دمخاطب پوره یقین وي نه انکار وي نه تردد وي لیکن متکلم ددې سره سره تاکید راوړي ددې دپاره چي دسیاق اوسباق څخه شائیبه راپورته کیږي متکلم دا شائبه په

ختموي الله مخ ته وويل منافقين به راسي وبه وايي ته دخداى رسول يې الله پاک وايي **﴿وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ﴾** منافقين درواغ وايي دلته داشائبه را پورته کيږي چي دوي به په دې کي درواغ وايي چي ته دخداى رسول يې الله پاک تاکيد راوړي وېم ويل **﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّكَ لَرَسُوْلُهٗ﴾**

**څلورمه قاعده:** **﴿وَاللّٰهُ يَعْلَمُ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ﴾** دلته متکلم الله دئ مخاطب نبي اعليه السلام دئ مخاطب نه منکر دئ نه تردد کوي نه شائبه سته يوه قاعده نه پکښې جاري کيږي بيا تاکيد دڅه دپاره راوړي علامه تفتازاني وايي کله کله تاکيد دتعريف دپاره وي الله خبره نبي عليه السلام ته کوي ليکن الله دا خبره په نورو اوري په مخاط کي انکار نه سته په نورو کي انکار سته نو ځکه الله پاک تاکيد راوړي دوې قاعدې په تې سبق کی تيري سوې.

**فائده:** تاکيد په دغه کلماتو حاصليږي ١اِنَّ ٢اَنَّ ٣حروف تنبيه ۴قسم ۵نون ثقيله نو خفيفه ۶حروف زائده ۷قد ٨امّا شرطيه ٩اِنّما ١٠جمله اسميه ١١ضمير الفصل :

## اجراء التاكيدات

| المثال | كلمات التاكيدات | الضرب |
|---|---|---|

**اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَآءُ (البقره ١٣) (حرف تنبيه ، انَّ ،دعامه، اسميه) انکاري**

ترجمه: خبردار واقع دوی خاص دوی ناپوهان دي.

**تشريح:** ددی کلام مخاطبين منافقين دي او منافقين دانه مني چي موږ ناپو بې عقل يو: الله فرمايی خبر دا راوسئ بيشکه د وی خاص دوی دي ناپوهان:

**أَلَآ إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ ( البقرة ١٢) ( حرف تنبيه، ان، صيغة الفصل، اسميه)** انكاري ترجمه: الله فرمايي اى خبر دار اوسئ واقع دوى خاص دوى دي فساد كوونكي،

**تشريح:** ددى كلام مخاطبين منافقين دي منافقين وايى موږ اصلاح كوونكى يو موږ فسادګر نه يو منافقين دا نه منى چى موږ فساد كوونكي يو: الله فرمايي اى خبر دار اوسئ واقع دوى خاص دوى دي فساد كوونكى

**وَقَالُوا بِعِزَّةِ فِرْعَوْنَ إِنَّا لَنَحْنُ الْغَالِبُونَ ( الشعراء ٤٤) ( قسم، اسميه، ان، لام، صيغة الفصل) انكارى**

**ترجمه:** وويل جادوګرانو موږ قسم كوو په عزت دفرعون واقع موږ خامخا خاص موږ غالبان يو ( برياليان) متكلمين جادوګران دي مخاطبين فراعنه يا بنى اسرائيل دي، مخاطبين دا نه منى منكرين دي ددى څخه چي دا مقابله دي جادوګران وګټي لهذا دوى منكرين دي نو جادوګرانو تاكيدات راوړه نو وي ويل ضرور به ضرور به ضرور به ضرور به ضرور دا مقابله ګټو:

**إِنَّهُ لَكَبِيرُكُمُ الَّذِي عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ( الشعراء ٤٩) ( إِنَّ، لام، اسميه، انكاري** ترجمه: بيشكه دغه موسى خامخا مشر دئ ستاسى هغه ( مشر) چي ښوولى يئ دئ تاسى ته جادو متكلم فرعون دئ مخاطبين جادوګران دي مخاطبين دا خبره نه منى منكرين دي نو ځكه فرعون تاكيدات راوړه:

**إِنَّا لَهُ لَحٰفِظُونَ (يوسف ١٢) (إِن، لام، اسميه) انكاري**

**ترجمه:** بيشكه موږ ده لره خامخا ساتونكي يو :

**تشریح** متکلمین دیوسف علیه السلام وروڼه دئ مخاطب یعقوب علیه السلام دئ مخاطب دا نه‌منی چي تاسو دی ده لره ساتونکی سئ نو متکلمینو تاکیدات راوړ :

**وَاِنَّا لَهُ لَنٰصِحُوْنَ** (یوسف ۱۱) (اِنَّ، لام، اسمیه) **الکاري**

ترجمه: حال دا چي بیشکه موږ ده ته خامخا نصیحت کوونکی یو خیر خوا یو:

**تشریح:** مخاطب یعقوب علیه السلام دئ مخاطب دا خیر خواهي نه‌ورسره منی ځکه دوی تاکیدات ورته راوړه :

**قَالَ اِنِّیْ لَیَحْزُنُنِیْٓ اَنْ تَذْهَبُوْا بِهٖ** (یوسف ۱۳) (اِنَّ، لام، اسمیه،) **الکاري**

**ترجمه:** وویل (یعقوب) بیشکه زه چي‌یم خامخا غمجنوي می دا چی تاسئ دی (یوسف) بوځی:

**تشریح:** متکلم یعقوب دئ، مخاطبین دیوسف وروڼه دي دوی وویل په تاڅه کیږي چي دی زموږ سره راسره وي په تا هیڅ نه‌کیږي دوی انکار کوئ ددې څخه چی په تا یوڅه کیږی یعقوب تاکیدات ورته راوړه :

**فائده:** جمله اسمیه تاکید فائده کوی که تا پکښي ملحوظ کړئ که تا تاکید نه کړئ ملحوظ بیا تاکید نه فائده کوئ

**قَالُوْا لَئِنْ اَکَلَهُ الذِّئْبُ وَنَحْنُ عُصْبَةٌ اِنَّآ اِذًا لَّخٰسِرُوْنَ** (یوسف ۱۴) (قسم، ان، لام) **الکاري**

**ترجمه:** وویل (وروڼو دیوسف) قسم دئ که چیري وخورئ یوسف لیوه حال دا چي موږ قوتناکه ډله‌یو نو بیشکه موږ په دغه وخت کښی خامخا له‌زیان کارانو څخه‌یو:

**تشریح** یعقوب دوی ته دشک په نګاه ګوری منکره دئ ځکه دوی قسم ورته خوري:

**وَلَئِن لَّمْ يَفْعَلْ مَا آمُرُهُ لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُونًا مِّنَ الصَّاغِرِينَ (یوسف ۳۲) (قسم، لا) الکاری**

ترجمه: اوقسم دئ خامخاکه ونه کړي هغه څه چي امر کوم زه ده ته نو خامخا به بندی کړي سی او خامخا به سی دی له ذلیلانو:

**تشریح** یوسف علیه السلام پر دغه کار نه راتلئ ددغه کار څخه یوسف انکار کوئ نو ځکه ذلیخا تاکیدات ورته راوړه:

**قَالَ إِنِّي أَنَا أَخُوكَ (یوسف ۶۸) (قصر، انَّ، صیغة الفصل، اسمیه، الکاري**

**ترجمه:** وویل (یوسف) زه چی یم خاص دا زه یم ورور ستا (یوسف)

**تشریح:** متکلم یوسف دئ، مخاطب بنیامین دئ، دمخاطب زړه ته نه لویدل چی یوسف دی ژوندئ وی یوسف دی باچا وی بنیامین په حالت دانکار کي وو نو ځکه یوسف تاکیدات ورته راوړه:

**إِنَّكُمْ لَسَارِقُونَ (یوسف ۷۰) (إن، لام، اسمیه) الکاري**

ترجمه: بیشکه تاسئ خامخا غله یاست:

**تشریح:** مخاطبین دقافلي خلک دي هغه دا نه مني چی موږ دي غله یو نو ځکه یې تاکیدات ورته راوړه:

**قَالُوا تَاللَّهِ لَقَدْ عَلِمْتُم مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ فِي الْأَرْضِ (یوسف ۷۳) (قسم، لام، قد) الکاری**

**ترجمه:** وویل دوی قسم دئ په الله خامخا په تحقیق تاسئ خبریاست چی موږ ن
یو راغلی دپاره ددی چی فساد وکړو په ځمکه کښی

**تشریح:** هغو ورته وویل غله یاست دوی ورته وویل موږ غله نه یو هغه دا نه ورسر
منی نو ده تاکیدات ورته راوړه:

وَاِنَّا لَصَادِقُوْنَ (یوسف ۸۲) (اِن، لام) الکاري

ترجمه: بیشکه موږ خامخا موږ رښتیا ویونکی یو :

**تشریح** : مخاطب یعقوب علیه السلام دئ مخاطب دا خبر نه ورسره منی منکر دی
ځکه دوی تاکیدات ورته راوړي:

قَالَ اَبُوْهُمْ اِنِّیْ لَاَجِدُ رِیْحَ یُوْسُفَ (یوسف ۹۴): (ان، لام، اسمیه،) الکاري

ترجمه: وویل پلار ددوی (یعقوب) بیشکه زه چي یم خامخا پیداکوم بوی دیوسف
**تشریح:** دوی منکرین دی دا نه ورسره منی ځکه یعقوب تاکیدات راوړي :

قَالُوْا تَاللّٰهِ اِنَّکَ لَفِیْ ضَلٰلِکَ الْقَدِیْمِ (یوسف ۹۵) (قسم، ان، لام) الکاري

ترجمه وویل دوی قسم دئ په الله بیشکه ته چي یې خامخا په هغه خطا او س
ګردانی خپل کښي یی پخوانی:

**تشریح:** دوی ورته وایی یعقوب ته پخوانی خبری کوی یوسف چیری دئ هغا
لیوانو وخوړئ یعقوب دانه منی منکر دئ ځکه دوی تاکیدات راوړي :

**فائده:** که دامر او دنهی وروسته اِنَّ راغلی او دتعلیل معنی یی ورکړله بس دا
غیر سائل کالسائل دئ

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ (الحجرات ۱۲) (ان، اسميه) غيرالسائل كالسائل

ترجمه: ای مؤمنانو تاسی ځان وساتئ ډير له بدګمانيو بيشکه ځيني ګمانونه ګناه ده:
**تشريح:** متکلم الله دئ موږ مؤمنان مخاطبين يو، موږ منکرين نه يو موږ دالله خبره منو موږ دالله په خبره کی تردد نه کو نو بيا تاکيد څنګه راغلی نو موږ وايو دلته دغير سائل کالسائل ماده چليدلې الله وايي له ډيرو ګمانو ځان وساتی نو جنس خبر ته اشاره وسوه چي ګمانونه ښه شی نه دی نو الله تاکيد راوړئ الله وايی بيشکه ځيني ګمانونه ګناه ده :

وَلَا تَايْئَسُوا مِنْ رَوْحِ اللهِ إِنَّهُ لَا يَايْئَسُ مِنْ رَوْحِ اللهِ إِلَّا الْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ ( يوسف ۸۷) (اِن، اسميه) غير السائل كالسائل:

**ترجمه:** اومه نا اميده کيږي له رحمته دالله بيشکه شان دادئ چي نه نااميده کيږي له رحمته دالله څخه مګر قوم کافران:

**تشريح :** يوه قاعده خو دلته دضميرشان ده بله قاعده دلته جاری کيږي د غير سائل کالسائل ده خو د قاعدې مطابق : هر کله چي دا جمله وويل **لا تَايْئَسُوا من رَّوحِ الله** نو جنس خبر ته اشاره وسوه چي را روان خبر خوندور نه دئ الله فرمايی **إِنَّهُ لَا يَايْئَسُ مِنْ رَوْحِ اللهِ إِلَّا الْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ** بيشکه شان دا دئ چی نه نا اميده کيږي له رحمته دالله څخه مګر قوم کافران.

<u>وَمَا أُبَرِّئُ نَفْسِيْ اِنَّ النَّفْسَ لَاَمَّارَةٌ بِالسُّوْءِ (يوسف ۵۳) ( ان، لام) غير السائل كالسائل</u>

ترجمه او زه نه پاکوم نفس خپل بیشکه نفس خامخا امر کوونکی دئ په بدی سره:

تشریح : دلته غیر سائل کالسائل ماده جاري ده دقاعدې مطابق ، هر کله چې وَمَا اُبَرِّئُ نَفْسِي وویل سو نو اشاره وسوه وجنس خبرته چې یاره نفس بد شی دئ سری په سمو نه امرکوی ولی اِنَّ النَّفْسَ لَاَمَّارَةٌ بِالسُّوْءِ واقع نفس خامخا امرکوونکی دئ په بدی سره :

*وَصَلِّ عَلَيْهِمْ اِنَّ صَلٰوتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ( التوبة ١٠٣) ( ان، اسميه ) غير السائل كالسائل*

ترجمه: او دعا کوه ( دنیکی) دوی ته بیشکه دعا ستا تسکین دئ دوی ته:

تشریح: دلته دغیر سائل کالسائل ماده جاری ده دقاعدې مطابق:

وَصَلِّ عَلَيْهِمْ دلته وجنس خبر ته اشاره وسوه چې یاره دعا دنبی علیه السلام سبب دنجات ده: اِنَّ صَلٰوتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ ولی یقینا دعا ستا سکون دئ دوی ته.

يٰۤاِبْرٰهِيْمُ اَعْرِضْ عَنْ هٰذَا اِنَّهٗ قَدْ جَآءَ اَمْرُ رَبِّكَ وَاِنَّهُمْ اٰتِيْهِمْ عَذَابٌ غَيْرُ مَرْدُوْدٍ (هود ٧٦)

ثُمَّ اِنَّكُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ لَمَيِّتُوْنَ ( المؤمنون ١٥) ( ان، لام) غير المنكر كالمنكر

ترجمه: بیا بیشکه تاسی په ورځ دقیامت کښی ژوندی راپورته کړل سئ :

تشریح : دلته مخاطبين نازل سوه په منزله دهغه چا چې هغه انکار کوی دمرګ څخه ولی دوی دوب دي په غفلت کي نو ځکه یی تاکیدات ورته راوره

فائده: هر ځای چي ضمیر شان مستعمل سي سره دانَ نو دمتکلم مقصد به داوي چي داخبره دمخاطب په دماغ کي ښه قرار ونیسي ددې تر څنګ به دمتکلم مقصد دمخاطب دټوجه غوښتل هم وي :

## اجراء الضمير الشان والقصة

اِنَّهُ لَا يَايْئَسُ مِنْ رَّوْحِ اللهِ اِلَّا الْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ (يوسف ۸۷)

ترجمه: واقع: خبره خو دی ده چي نه ناامیده کیږي له رحمته دالله څخه مګر قوم کافران ( منکران له الله ) :

اِنَّهُ مَنْ يَّأْتِ رَبَّهٗ مُجْرِمًا فَاِنَّ لَهٗ جَهَنَّمَ : (طه ۷۴)

فَاِنَّهَا لَا تَعْمَى الْاَبْصَارُ : (الحج ۴۶)

اِنَّهٗ مَنْ يَّتَّقِ وَيَصْبِرْ (يوسف ۹۰)

اِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الْكٰفِرُوْنَ ( المؤمنون ۱۱۷)

اِتَّقِ دَعْوَةَ المظلوم فَاِنَّهٗ ليس بينه وبين الله حجابٌ ( الحديث)

وَجَعَلْنَا الْاَنْهَارَ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهِمْ ( الانعام ۲)

## اوه دیرشم سبق اسناد حقیقي

*(ثم الاسناد منه حقيقة عقلية)*

دثم بعد جمله مستأنفه ده جمله مستأنفه دوه قسمه ده یوه جمله مستأنفه عندالبیان بله جمله مستأنفه عندالنحو جلمه مستأنفه عندالبیان جواب دسوال مقدر وی جمله مستأنفه

عند النحو جواب دسوال مقدر نه وي ځان ته مستقله جمله وي دلته جمله مستأنفه عندالنحو ده ثم په عربی کي دتعقیب مع الفصل لپار راځي مثال جاءنی زید ثم عمر، ما ته زید راغلی یو ګړی بعد عمر راغلی ثم کله کله دتعقیب ذکري دپاره هم راځي تعقیب ذکري دې ته وايي چي مخکي مي دیو شي ذکر درته وکړ دهغه بعد بیا دا ذکر کوم دلته ثم دتعقیب ذکری دپاره دی اسناد پر دوه قسمه دئ ۱-: حقیقت عقلیه ۲-: مجاز عقلي(

**الاسناد :**

**پوښتنه:** یو شی چي په اسم ظاهر ذکر سي دویم وار په ضمیر ذکر کیږي داسي عبارت په کار وو **ثم هو منه حقیقة عقلیة** او حال دادئ چي تا دلته اسم ظاهر ذکر کړي دئ ؟

**جواب:** که چیري موږ ضمیر ذکر کړې وای داسي عبارت مي ویلی وای ثم هو نو متوهم به دا وهم کړي واي چی دا ضمیر راجع دئ اسناد خبری ته دلته موږ عام اسناد ذکر کړئ دئ که اخباریة وي که انشائیة وي :

**پوښتنه :** تا به صنعت استخدام کړی واي صنعت استخدام دې ته وایي چي یو کلمه ذکر سي یوه معنی واخله چي ضمیر ورته راجع سي بله معنی واخله مخکي اسناد ذکر سو هلته به تا اسناد خبری اخیستي وای دهو ضمیر څخه به تا عام اسناد اخیستي وای ؟

**جواب:** عبدالحکیم سیالکوټي دمختصر په حاشیه کي وایي صنعت استخدام خلاف الاصل دئ صنعت استخدام هغه وخت کیږي چي ټولي لاري وتړل سي :

**پوښتنه:** قانون دادی معرفه چي ثانیا را معاد سي نو ثانی عین اولی وي مثال ﴿قوله تعالی فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴾ دلته ددواړو عسر څخه عسر دنیا مراد دئ نکره چي ثانیا رامعاد سي ثانی غیر وي داولی څخه ﴿فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ﴾ ددنیا دسختي سره یسرا ددنیا اسانی تړلي ده﴿ إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسرا ﴾ ددنیا دسختي سرا

داخیرت اسانی تړلي ده معرفه چي ثانیا رامعاده سی نو ثانی عین اولی وي له دې وجه دلته به الاسناد عین اسناد خبری وي ؟

جواب: عبدالحکیم سیالکوټي وایي دا قاعده هغه وخت چلیږي چي پر دویمه معرفه قرینه ولاړه نه وي نو بیا ثانی عین اولی ده که قرینه ولاړه وه بیا ثانی عین اولی نه وي علامه تفتازانی دالاسناد بعد دمطلقا قید لګولی دپاره دافادې دحصول دتعمیمات ثلثه هغه درې تعمیمات دادئ مجاز چي څنګه په خبر کي راځي په انشاء کي هم راځي مجاز چي څنګه په وقوع کي راځي په ایقاع کي هم راځي مجاز چي څنګه په اسناد کي راځي په مافی معنی الاسناد کي هم راځي مجاز چي په انشاء کي وي مثال قوله تعالی ﴿يَاهَامَانُ ابْنِ لِي﴾ دلته دا ﴿ابْنِ﴾ اسناد وانت ته سوی دئ دلته مجاز دئ فرعون هامان ته وایي ته ماته یوه بنګله جوړه کړه بنګله خو هامان نه جوړه وي بنګله دده عمله او خادمان جوړوي وقوع دې ته وایي چي دفعل نسبة وفاعل ته وي ایقاع دې ته وایی چي دفعل نسبة ومفعول ته وی مثال الاول جَرَى النَّهَرُ، ویاله جاري سوه دلته مجاز دئ ولی واله نه جاري کیږي بلکي په واله کي اوبه جاري کیږي دلته دفعل نسبة داوبو پر ځای ونهر ته وسو مثال الثانی أَجْرَيْتُ النَّهَرَ ما جاري کړه واله دلته مجاز دئ ولی ویاله خو ما نه ده جاري کړې بلکي ما په ویاله کي اوبه جاري کړې ما فی معنی الاسناد مرکب اضافی دی مثال ﴿وَمَكْرُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ﴾ شپه تتبیر کوي ورځ تتبیر کوي دلته مجاز دئ ولی شپه او ورځ تتبیر نه کوي بلکي کوم خلق چي په شپه اورځ کی دي هغه تتبیر کوي حقیقت او مجاز دوه قسمه دي ۱- لغويين ۲- عقليين که حقیقت او مجاز په نفس لفظ کي وو دې ته حقیقت لغوي او مجاز لغوي وایي که حقیقت او مجاز په اسناد کي وو دې ته حقیقت عقلیه او مجاز عقلیه وایی ولي ددې اسناد درک عقل کوی حقیقت لغوي او مجاز لغوي موضوع دعلم بیان ده ولی علم بیان دنفس لفظ څخه بحث کوي حقیقة عقلیه مجاز عقلیه موضوع دعلم معانی ده ولي علم معانی دلفظ داحوالو څخه بحث کوي :

منه: سکاکی وایي اسنادقصر دئ په حقیقت عقلیه او مجاز عقلیه کي دقزوینی په نز
اسناد قصر نه دئ په حقیقت عقلیه او مجاز عقلیه کي بلکي بعض اسناد بهٔ حقیقت عقل
وي بعض به مجاز عقلیه وي بعض اسناد به نه حقیقت عقلیه وي نه به مجاز عقلیه و
بلکي واسطه به وي دا هغه وخت چي محمول جامد وي مثال الانسان حیوان دحیوان نس
وانسان ته نه حقیقت عقلیه دئ نه مجاز عقلیه دی ولی جامد مُتحمِل دضمیر نه دئ، د
ځای چي حقیقت عقلیه او مجاز عقلیه وي هلته به محمول متحمل دضمیر وي مثال ونهار
صائم دا مجاز عقلي دئ ځکه دصائم اسناد دفاعل پر ځای وزمان ته دئ.

## اته دیرشم سبق دحقیقت عقلي تعریف

دحقیقت عقلی تعریف (**وهي اسناد الفعل او معناه الی ما هو له عند المتکلم ف**
**الظاهر**) دفعل اسناد کیدل یا دشبه فعل اسناد کیدل وهغه شي ته چي فعل او شبه فع
دهغه شي دپاره جوړ دی خلاصه دخبري داده که فعل جوړ وو دفاعل دپاره نو دفعل اسنا
به وفاعل ته وي که فعل جوړ وو دمفعول دپاره او دفعل اسناد ومفعول ته وسو بس دغ
حقیقة عقلیه دئ مثال **قوله تعالی** ﴿کَمَآ اَخْرَجَ اَبَوَیْکُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ﴾ حضرت آدم علی
السلام او بي بي حوا رضي الله عنها ددوي دواړو اخراج دجنته دادالله پاک کار د
شیطان ددوي داخراج دپاره یوازي سبب دئ داخراج نسبة په اصل کي والله ته دئ لیکن
اوس داخراج نسبة پر ځای دالله وشیطان ته وسو دامجاز عقلي دی زه زید یم ما وهل کړ
دي تا دفعل یا دشبه فعل اسناد وزید ته وکړ دا حقیقت عقلي دئ مثال ضَرَبَ زَیْدٌ ا
اومعناه) شبه فعل ۸ شیان دي ۱-: اسم فاعل ۲-: اسم مفعول ۳-: مصدر ۴-: صف
مشبه ۵-: مبالغه ۶-: اسم تفضیل ۷- اسم ظرف ۸-: اسم منسوب معنی دري قسم
ده ۱- معنی مطابقي ۲-: معنی تضمنی ۳- معنی التزامي:

فعل له درو شیانو څخه جوړ دئ ۱-: حدث ۲-: زمان ۳. نسبة دادري سره دفعل معنی
مطابقي ده حدث دفعل معنی تضمنی ده د معنی تضمنی په اسم فاعل کي سته په اس
مفعول کي سته په مصدر کي سته الی اخره دلته دمعنی څخه معنی تضمنی مراد ده نو

ترجمه داده دفعل اسناد کیدل یا دمعنی تضمنی دفعل اسناد کیدل وهغه شی ته چي فعل یا معنی تضمنی دفعل دهغه شي دپاره جوړ دئ :

**ماهو له**، قاعده: که یوه کلمه پربلي کلمي باندي عطف وه په واسطه دواو سره وروسته ضمیر دمفرد ورته راجع وو نو معطوف او معطوف علیه به په تأویل دمذکور اوړي دپاره دډې چي مطابقت دراجع او مرجع راسي که معطوف او معطوف علیه په تأویل دمذکور وانه وړي نو مطابقت دراجع او مرجع نه راځي ولي یوه کلمه چي پر بلي کلمې عطف سي په واسطه دواو سره هلته معطوف او معطوف علیه دواړه مراد وي که یوه کلمه پر بله کلمه باندي عطف سي په واسطه داَو سره وروسته ضمیر دمفرد ورته راجع کول صحیح دئ ولي او راځي داحد الامرین دپاره له دې وجه احد الامرین هم یو راجع هم یو نو مطابقت راغلی دراجع او مرجع خلاصه دخبري داده ضمیر دمفرد ورته راجع کول صحیح دئ ولي یوه کلمه چي پر بله کلمه باندي عطف سي په واسطه داو سره هلته معطوف او معطوف علیه دواړه مراد نه وي یو مراد وي دلته دهو ضمیر راجع دی واحد المذکورین ته :

**لهُ**:دله ضمیر لفظ ما ته راجع دئ علامه تفتازانی په مطول او مختصر کي پر مخ دعندالمتکلم فی الظاهر ترکیب را ته کوي لهُ: جار او مجرور :

**قاعده** : جار او مجرو متعلق غواړي متعلق څلور شیان راځي ١-: فعل ٢-: شبه فعل ٣-: مؤل بشبه الفعل ۴-: معنی الفعل دلته متعلّق فعل دئ دلَه متعلق اِستقرّ دئ لیکن استقر حذف سوی دئ له داستقر نائب او قائمقامه دئ :

**قاعده**: دظرف یا دجار مجرور متعلّق چي څنګه فعل وي دغه رنګه دظرف یا دجا مجرور متعلق نائب دفعل هم وي دلته عندالمتکلم فی الظاهر دواړه تعلق نیسي تر لهُ پوري لهُ متعلّق دئ:

**تركيب اجمالا:** هي مبتدا، اسناد: مضاف، الفعل: مضاف اليه، معطوف عليه، او: حرف عطف، معناه: معطوف، الى: حرف جر، ما: موصوله، هو: مبتدا، لهٗ: متعلق عندالمتكلم فى الظاهر: دواړه تعلق نيسي ترلهٗ پوري لهٗ سره ددواړو متعلِقينو دابه خبر سي دمبتدا، مبتدا سره له خبره دا به صله سي دموصول موصول سره دصلې دا به مجرور دجار سي جار سره له مجروره دا به تعلق تر اسناد پوري ونيسي اسناد سره دمضاف اليه سره دمتعلق دا به خبر سي دپاره دمبتداء دحقيقت عقلي تعريف تر دغه ځايه پوري دئ وهي اسناد الفعل او معناه الى ما هو له:

**پوښتنه:** مصنف عندالمتكلم فى الظاهر دادواړه قيدونه دڅه دپاره ذكر كړل علامه تفتازانى ددې دوو قيدو پر لګيدو شروع شو وايي په حقيقت كي دحقيقت عقلي څلور اقسامه دي بعض اقسام ددې قيدو په وجه دحقيقة عقليه په تعريف كى داخل دي يعنى دا دواړه قيدونه ددې دپاره دي چى دحقيقت عقليه تعريف جامع او مانع سي دحقيقة عقليه څلور اقسامه دي:

**اول:** دواقع مطابق داعتقاد مطابق مثال لكه دا قول دمؤمن أَنْبَتَ اللّٰهُ الْبَقْلَ الله پاك وابنه راشنه كړي دي:

هر شى الله جَلّ جَلَالُهٗ شين كوي موسم يوازى سبب دئ الله وايي ﴿ءَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُ أَمْ نَحْنُ الزَّارِعُونَ﴾ ترجمه آياتاسي زرغونوي هغه (كرل سوي) كه موږ يو زرغونكي:

دانبت اسناد والله جَلّ جَلَالُهٗ ته دواقع هم مطابق دمؤمن داعتقاد هم مطابق:

**دويم:** داعتقاد مطابق فقط لكه قول دجاهل أَنْبَتَ الربيعُ البقلَ پسرلي وآبنه راشنه كړل دا دجاهل متكلم داعتقاد مطابق دواقع مطابق نه دئ كه ته پوښتنه وكړې چي دلته اسناد وماهولهٗ ته نه دئ ځكه دانبات ماهوله الله دئ دلته اسناد غير ماهو له ته دى چي هغه غير ماهو له ربيع دى له دې وجه دا حقيقت عقلي نه دئ موږ چي دعند المتكلم قيد ولګوئ

ددې دپاره چي داصورت پکښي را داخل سي له دې وجه دا حقيقت عقلي دئ ځکه دجاهل متکلم داعقيده ده چي دانبات ماهوله پسرلي دئ:

دريم: دواقع مطابق فقط مثال لکه قول دمعتزلي **خَلَقَ اللهُ الافعال كلَّها**: تهول افعال الله پاک پيدا کړي دي ولي دمعتزلي عقيده داده دافعالو اختياريه خالق بنده خپله دئ، دمؤمن عقيده داده که افعال اختياريه دي که افعال اضطراريه دي ددواړو خالق الله دئ دا صورت دفی الظاهر په قيد سره را داخل سو :

څلورم: نه دواقع مطابق نه داعتقاد مطابق لکه متکلم ظاهرا مخاطب ته ووايي چي دا دواقع هم مطابق دئ داعتقاد هم مطابق دئ مثال جاء زيد وانت تعلم انه لم يجئ دلته يوازی متکلم خبر دئ چي زيد نه دئ راغلی مخاطب نه دئ خبر که مخاطب خبر سي په دې باندي چي زيد نه دئ راغلی دا بيا دحقيقت عقلي قسم نه دی دا څلورم صورت دفی الظاهر په قيد سره را داخل سو علامه تفتازانی په مطول او مختصر کي دفی الظاهر ترجمه داسي کوي لاينصب قرينة دالة على انه غير ما هوله فی اعتقاده قرينه به ولاړه نه وي داسي قرينه چي دال وي پر دې چي دلته اسناد غير ماهوله ته دئ مثال يو متقي عالم زاهد عالم وويل انبت الربيع البقل نو دامجاز عقلي دی ولي دلته ظاهرا قرينه ولاړه ده چي اسناد وغير ما هوله ته دئ ځکه متقي عالم داسي قول نه کوي که دهري فاجر جاهل دا قول وکړ چي انبت الربيع البقل نو دا حقيقت عقلي دئ ځکه ددهري، فاجر، جاهل، اعتقاد داوي چي وابنه پسرلي راشنه کوي :

نسبة الى ماهوله ته عام دئ که دده څخه صادر وي مثال ضَرَبَ زيد که دده څخه صادر نه وي مثال مات زيد مخلوق دالله وي که لغيره وي .

## نه ديرشم سبق اسناد مجازي

(ومنه مجاز عقلی)

دمجازي عقلي ځلور نومونه دي ۱-: مجاز عقلي ۲-: مجاز حکمي، ۳-: مجاز فی الاثبات ۴-: اسنادا مجازيا، دتسميې وجه دهريوه مثال ﴿جَنَّٰتٍ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ﴾ ترجمه بهيږی به لاندي تر جنت ويالې اسناد دتجري وانهار ته مجاز دئ ځکه دتجري اسناد په اصل کي واوبوته دئ ولي ويالة نه بهيږي اوبه په وياله کي بهيږي دلته الله پاک دتجری اسناد وغير ماهوله ته کړي دئ نو دا مجازعقلي دی ولی ددي مجاز درک په عقل سره کيږی په لغت سره نه کيږی ولي ځکه ذکر تجری دئ مرادهم تجری ذکر انهار مراد هم انهار مجازًا حکميًا: يعنی حکم والا مجاز طالبانو تجری فعل دئ الانهارُ فاعل دئ دفعل او فاعل په مابين کي حکم سوی دئ په دغه حکم کي مجاز دئ نو دا دحکم والا مجاز دئ دکلمې والا مجاز نه دئ:

پوښتنه: مجاز چي څرنګه په حکم کي راځي همدارنګه په ايقاع کي هم راځي په اضافت کي هم راځي نو بيا ولی مجاز حکمي ورته وايي؟

جواب: مجاز حکمي ځکه ورته وايي چي مجاز په حکم کي په اعتبار داکثرية دئ يعنی په سل (۱۰۰) فيصده کي نه نوي (۹۹) فصيده مجاز په حکم کي وي يو فيصد مجاز په ايقاع او اضافت کي وی:

۲ جواب: مراد دحکم څخه نسبة دئ نسبة عام دئ هغه که په حکم کي وي که په اضافت کي وي که په ايقاع کي وي مجاز حکمي يعنی دنسبة والا مجاز:

مجاز فی الاثبات پوښتنه: مجاز چي څرنګه په اثبات کي کيږي همدرانګه مجاز په نفی کي هم کيږی مثال ﴿فَمَا رَبِحَت تِّجَٰرَتُهُمۡ﴾ ترجمه پس ګټه يې ونه کړه سود اګري ددوي دلته اسناد دربحت وتجارت ته مجاز دئ ځکه نفس تجارت خو ګټه نه کوي دربحت اسناد په اصل کي وخلکو ته دئ يعنی دربحت ما هو له خلک دئ تجارت نه دې تجارت دربحت غير ما هو له دئ دلته دربحت اسناد غير ماهو له ته دئ له دې وجه دا مجاز دئ په نفی کې ليکن تا مجاز مقيد کړ داثبات په قيد سره؟

۱-: جواب: مجاز مورِ مقید کړي په اثبات په اعتبار داشرفية سره یا خو مجاز فی الاثبات اصل دئ مجاز فی النفی فرعه ده تر څو پوري چي مجاز په اصل کي نه وی راغلی په فرعه کي نه راځي له دې وجه مجاز چي په اصل کي راسي په نفی کي هم راځي:

۲-: جواب: مراد داثبات څخه انتساب او اتصاف دئ، انتساب او اتصاف په اثبات او نفی دواړو کي راځي اسنادا مجازیا :

مجاز والا اسناد : (**وهو اسنادہ الی ملابس له غیر ماهو له بتأول**) :

**دمجاز عقلي تعريف** : فعل جوړ دئ دفاعل دپاره تا دفعل نسبة دفاعل پر ځای وغیر ته وکړ داسي غیر چي هغه ددهٔ سره مناسب وي بس دې ته مجاز عقلی وایي له دې وجه مجاز عقلي دې ته وايي چي دفعل اسناد غیر ما هول ته وی داسي غیر ماهو له چي هغه مناسب وي دماهو له سره :

ملابس: ملابس باب دمفاعلې :

**قاعده:** په باب دمفاعلې کي نسبة دطرفینو وي مثال یو شي فاعل او مفعول دواړه کیدای سي مثال ضَاربَ زید وعمرٌو دلته زید ضارب هم دئ مضروب هم دئ عمرو هم داسي دئ دلته ملابِسٍ هم ویل کیږي ملابَسٍ هم ویل کیږي ما هول لهُ او غیر ماهو له ملابست لري ماهو له ملابِس غیر ماهو له ملابَس :

ماهو له ملابَس غیر ماهو له ملابِس یعنی هریو ملابَس او ملابِس دئ ( **فاسنادہ الی ملابَس**) دلته تاته اختیار دئ که ملابَس وایي که ملابِس وایي ( فاسناده الی ملابس له غیر ماهو له بتاول : ترجمه دعبارت دفعل یا دشبه فعل اسناد کیدل وملابس ته داسي ملابس او ملابس لهُ چي دفعل یا دشبه فعل دپاره وی داسي ملابس چی غیر وی (**ما**) دهغه ملابس (**هوله**) چي هغه ملابس دفعل دپاره جوړ وي (**بتأول**) دا اسناد به هم وي په سبب دقرینی سره داسي قرینه چي قرینه به تاته وایي چي دلته اسناد دفعل دماهو له

څخه اړه ول سوي دی وغیر ماهولهٔ ته قرینه دوه قسمه ده لفظیه عقلیه لفظیه دې ته وایي
چي سباق او سیاق پر دې دال وي چی دلته نسبة وغیر ماهو لهٔ ته دئ عقلیه دې ته وایي
چي دمتکلم کیفیت او حال پر دې دال وي چي دلته نسبة وغیر ماهولهٔ ته دئ :

مصنف دبتأول قید ذکر کړ ددې دپاره چی دحقیقت عقلي دویم قسم چي قول دجاهل دئ
مثال انبت الربیع البقل دا دمجاز عقلی په تعریف کي داخل نه سي که دبتأویل قید نه وای
نو دجاهل قول به مجاز عقلي وای ځکه جاهل قرینه نه دروی ولي دده عقیده دارنګه وي
دبتأویل په قید سره دا صورت خارج سو :

قاعده :غیرُ په نه نوي(۹۹) فیصده کي صفت وي کله کله په ترکیب کي حال وي مثال
غیر المغضوب غیرَ هم جائز غیرِ هم جائز دلته غیر بدل دئ دعلیهم دضمیر څخه صفت نه
دئ ځکه ضمیر نه موصوف جوړیږي نه صفت جوړیږي:

مجاز عقلي څلور قسمه دئ اسناد دفعل وغیر ماهو له ته دا به داعتقاد او دواقع دداړ
مطابق وي دا یو قسم

**دویم قسم:** داعتقاد مطابق فقط

**دریم قسم:** دواقع مطابق فقط:

**څلورم قسم:** نه داعتقاد مطابق نه دواقع مطابق:

**(ولهُ ملابسات شتّیٰ یلابس الفاعل والمفعول به والمصدر والزمان والمکان والسبب)** دفعل دپاره مختلف ملابسات دي شتي جمع دشتیت ده لکه مریض چي جمعه
دمرضي ده دفعل سره شپږ شیان مناسبت لري ۱-: فاعلُ دفعل سره مناسب دئ ولي دفعل
قیامه په ده پوري ده ۲-: مفعول دفعل سره مناسب دئ ولی دفعل وقوع په ده پوری دا
۳-: مصدر دفعل سره مناسب دئ ځکه دده دمفهوم جز دئ ۴-: زمان دفعل سره مناسب

دئ ځکه زمان دده دمفهوم جز دئ ۵-: مکان دفعل سره مناسب دئ ځکه دفعل دوقوع تصور بې له مکانه نه کيږي ۶-: سبب دفعل سره مناسب دئ ولي سبب جالب دفعل دئ يعنی فعل جلبوي وه وقوع ته ( **فاسناده الی الفاعل او المفعول به اذاکان مبنيا له حقيقة کما مرّ والی غيرهما للملابسة مجاز** ) دفعل اسناد وفاعل ته په مبنی للفاعل کی دفعل اسناد ومفعول ته په مبنی للمفعول کي دا حقيقة عقليه دئ **والی غيرهما للملابسة مجاز** فعل جوړ دئ دفاعل دپاره تا دفعل اسناد ومفعول ته وکړ دا مفعول غير ما هو له دئ ددې سره ۵ شيان مناسبت لري ۱-: فاعل ۲ مصدر ۳ زمان ۴ مکان ۵ سبب يا تادفعل اسناد دمفعول پر ځای وفاعل ته وکړي ددې سره هم ۵ شيان مناسبت لری ۱- مفعول الي اخره :

اول مثال دمجاز عقلي چي دفعل يا دشبه فعل اسناد دفاعل پر ځای ومفعول ته سوي وي کقولهم ﴿عِيشَةٌ رَاضِيَةٌ﴾ ترجمه دا سړي به په ژوند کي وي داسي ژوند چي راضی به وي دا ژوند دراضيةٌ لاندي دوه شيان دي ۱-: عيش ۲.: صاحب العيش صاحب العيش فاعل دئ عيش مفعول دئ دلته دراضية اسناد په اصل کي وصاحب العيش ته دئ ځکه صاحب العيش راضي وي عيش راضي نه وي عيش مرضی وي دلته مجاز دی دراضية اسناد دفاعل پر ځای چي صاحب العيش دئ ومفعول ته دئ چي عيش دئ .

## څلويښتم سبق دمجازي عقلي دويم مثال

دمجازي عقلي دويم مثال چي دفعل يا دشبه فعل اسناد دمفعول پر ځای وفاعل ته سوی . وي (وَسَيْلٌ مُفْعَمٌ) سيل هغه اوبو ته وايي چي په مانده کي يا په شيله کي بهيږي **وسيلٌ** سيل داسي سيل **مفعَمٌ** چي ډک کړل سوی دئ دغه سيل **دمفعم** اسناد په اصل کي مفعول ته دئ هغه مفعول اناء يا مانده يا وادي دئ دلته دمفعم اسناد دمفعول پر ځای وفاعل ته دئ هغه فاعل سَيل دئ مراد دفاعل څخه فاعل نحوي نه دئ بلکي مراد فاعل

معنوي فاعل حقيقي دئ ، له دې وجه سيل مُفْهِم دئ معنى دکونکى دئ بل چا لره سَيلُ مُفعَمٌ نه دئ:

دريم مثال دمجاز عقلي چي دفعل يا دشبه فعل اسناد دفاعل پر ځاى ومصدر ته وي ( وشعر شاعر) دشاعر اسناد په اصل کي فاعل ته دئ هغه فاعل صاحب الشعر دئ اوس دشاعر اسناد وشعر ته دئ شعر مصدر دئ يعنى دشاعر اسناد ومصدر ته دئ :

قاعده: عرب چي په يو شي کي شدت مبالغه وغواړي نو مصدر ذکر کړي دمصدر څخه صيغه مشتق کړي دغه مشتق صفت جوړ کي دمصدر څخه مثال ظِلٌّ ظِلِيلٌ: معنى سايه ظِلٌّ ظَلِيلٌ : معنى ډيره ګڼه سايه بل مثال داهية دهياء: داهية: معنى تارکه داهية دهياء: معنى تکه توره تارکه بل مثال شِعرٌ معنى شعر شِعرٌ شاعر معنى زورور شعر علامه تفتازانى په مطول او مختصر کي وايي بهتره خبره به داوي چي دامثال ورکړي جَدَّ جِدُّهُ زيد خواري وکښه جِدُّهُ خواري دده دجدّ اسناد په اصل کي وصاحب الجد ته دئ دلته دجدّ اسناد وجدّ ته سو جد مصدر دئ دا مثال اولى دئ ولي په شعر شاعر کي شعر مصدر دئ په معنى دمفعول دئ له دې وجه دا مثال من قبيل عيشة راضية دئ يعنى نوي مثال نه دئ :

پوښتنه: دجدَّ جَدُّهُ مثال چي اولى دئ بيا يې ذکر ولي نه کړ؟

جواب: دامثال چي شعر شاعر دئ داهم صحيح دئ ولى شعر چي دا احتمال لري چي په معنى دمصدر دي سي شعر ددئ احتمال هم لري چي پر خپل مصدريت دئ باقي پاته سي
څلورم مثال دمجاز عقلي چي دفعل يا دشبه فعل اسناد دفاعل پر ځاى وزمان ته سوي وي

( ونهاره صائم ) ورځ دده روژه داره ده دصائم اسناد په اصل کي وصاحب النهار ته دئ اوس دصائم اسناد ونهار ته دئ نهار زمان دئ پنځم مثال دمجاز عقلي چي دفعل يا دشبه

فعل اسناد دفاعل پر ځاى ومکان ته سوى وي ( ونهر جارٍ) وياله جاري ده دجارٍ إسناد په

اصل کي وماء النهر ته دئ اوس يې اسناد ونهر ته دئ نهر مکان دئ شپږم مثال دمجاز عقلي (وبنی الامیر المدینة) امیر ښار جوړ کړ دبنی اسناد په اصل کي وعمله او خادمانو ته دئ اوس يې اسناد وسبب ته دئ ځکه امیر سبب دئ دښار دجوړولو سبب دوه قسمه دئ ۱-: سبب امیر ۲-: سبب مطلق دفعل اسناد که هر سبب ته وسو مجاز دئ

## اجراء المجاز العقلی فی الخبر

| مجاز عقلی | ماهو له | غیر ماهو له |
|---|---|---|
| تجری من تحتهم | ماء الانهار | نهر |

**تشریح:** دلته دتجری اسناد وانهار ته مجاز عقلی دئ ځکه ویاله نه بهیږي بلکي هغه اوبه چي په ویاله کي دي هغه بهیږي لهذا دلته دتجری اسناد دماء الانهار پر ځای وانهار ته وسو انهار مکان دئ: حَتّٰى تَضَعَ الْحَرْبُ اَوْزَارَهَا ( محمد ۴)

| مجاز عقلی | ماهوله | غیر ماهوله |
|---|---|---|
| تضع الحرب | اصحاب الحرب | الحرب |

تشریح: دلته دتضع اسناد وحرب ته مجاز عقلی دئ ځکه جنګ وسلې نه ایږدي بلکي اصحاب الحرب وسلې ایږدي :

يُذَبِّحُ اَبْنَآءَهُمْ ( القصص ۴)

| مجاز عقلی | ماهو له | غیر ماهوله |
|---|---|---|
| یذبح | عمله | فرعون |

**تشریح** دلته اسناد دتذبیح وفرعون ته مجاز عقلی دئ ځکه ذبحه دفرعون دلښکر کار دئ فرعون یوازي سبب امیر دئ :

يَنْزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا ( الاعراف ۲۷)

| مجاز عقلی | ماهوله | غیر ماهوله |
|---|---|---|
| ینزع عنهما لباسهما | الله دئ | شیطان دئ |

**تشريح** دجامو ايستل دآدم او بي بې حوا څخه دا په حقيقت کي دالله کار دئ شيطان دجامو دايستلو سبب السبب دئ ځکه دجامو دايستلو اصل سبب دغنم دانه ده :

فِىْ ضَلٰلٍ بَعِيْدٍ ( ابراهيم ٣١)

| مجاز عقلی | ماهوله | غير ماهوله |
|---|---|---|
| فی ضلل بعيد | ضال | ضلل |

**تشريح:** دلته دبعد اسناد وضلل ته مجاز عقلی دئ ځکه بعد په حقيقت کي دضال دپاره دئ :

يُؤْتِىٓ اُكُلَهَا ( ابراهيم ٢٢)

| مجاز عقلی | ماهوله | غير ماهوله |
|---|---|---|
| يُؤْتِىٓ اُكُلَهَا | الله | خرما |

**تشريح:** ورکوي ( داونه) خوراک خپل ددې فاعل حقيقي الله دئ ځکه خرما خوراک نسي ورکوای :

رَبِّ اِنَّهُنَّ اَضْلَلْنَ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ ( ابراهيم ٣٥)

| مجاز عقلی | ماهوله | غير ماهوله |
|---|---|---|
| انهن اضللن | الله | اصنام |

**تشريح:** په اضللن کي ضمير راجع دئ وه اصنام ته دلته اسناد داضلال واصنام ته مجاز عقلی دئ ځکه اصنام جمادات دي غير ذی عقل دي مضل په حقيقت کي الله دئ :

وَاَنْۢبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍۭ بَهِيْجٍ ( الحج ٥)

| مجاز عقلی | ماهوله | غير ماهوله |
|---|---|---|
| انبات | الله | ارض |

**تشريح:** دلته دانبات اسناد وارض ته مجاز عقلي دئ ځکه مُنْبِتْ په حقيقت کي الله دئ

فَظَلَّتْ اَعْنَاقُهُمْ لَهَا خٰضِعِيْنَ ( الشعراء ۴ )

| مجاز عقلی | ماهوله | غیر ماهوله |
|---|---|---|
| خضعین | اصحاب الاعناق | اعناق |

تشریح: اسناد دخضوع واعناق ته مجاز عقلی دئ ځکه خضوع خاصه دعقلاء ده :

وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ( النمل ۸۵ )

| مجاز عقلی | ماهوله | غیر ماهوله |
|---|---|---|
| مبصرا | هغه څوک چي په ورځ کي دئ | زمان |

**تشریح:** دابصار اسناد وزمان ته مجاز عقلي دي ځکه زمانه غیر ذی عقل ده :

فَهُوَ يَتَكَلَّمُ ( الروم ۳۴ )

| مجاز عقلی | ماهوله | غیر ماهوله |
|---|---|---|
| یتکلم | دلالت | نطق |

وَالَّيْلِ اِذَا سَجٰى ( الضحٰی ۲ )

| مجاز عقلی | ماهوله | غیر ماهوله |
|---|---|---|
| سجی | اهل اللیل | لیل |

**تشریح:** سجی که مشتقی سي سجو څخه دسجو سکون ته وایي مطلقا لهذا دا مثال دمجاز عقلی دئ ځکه دسکون اسناد سوی دئ ولیل ته او حال دادئ چي سکون داهل لیل دپاره وي :

حَرَمًا اٰمِنًا ( القصص ۵۷ )

| مجاز عقلی | ماهوله | غیر ماهوله |
|---|---|---|
| امنا | اهل الحرم | حرم |

وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ ( القصص ۵۸ )

| مجاز عقلی | ماهوله | غیر ماهوله ا |
|---|---|---|
| اهلکنامن قریة | اهل القریة | قریه |

فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ ( ابراهيم ١٨)

ترجمه: په هغه ورځ داسي ورځ چي سخت او ښورونکي وي

| مجاز عقلی | ماهوله | غير ماهوله |
| --- | --- | --- |
| عاصف | باد دورځي | يوم |

**تشريح:** دعصف اسناد ويوم ته مجاز عقلی دئ ځکه ورځ سخت او ښورونکي نه وي بلکي باد دورځي سخت او ښورونکي وي دا مثال داسي دئ لکه نهاره صائم :

حِجَابًا مَسْتُوْرًا (بنی اسرائيل ٤٥)

دا مثال دمبنی للمفعول دئ اوس بې اسناد وفاعل ته سوي دئ ځکه حجاب ساتر( پټونکی وي ) حجاب مستور ( پټه کړل سوی نه وي) نهار الزاهد صائم ورځ دزاهد روژه داره ده دلته مجاز عقلي دئ ځکه دصائم اصل ماهوله صاحب النهار دئ يعني هغه څوک چي روژه نسي په ورځ کي اوس بې اسناد ونهار دئ :

وَلَيْلُهُ قَائِمٌ :

| مجاز عقلی | ماهوله | غير ماهوله |
| --- | --- | --- |
| قائم | صاحب الليل | ليل |

جَدَّ جَدُّهُ

| مجاز عقلی | ماهوله | غير ماهوله |
| --- | --- | --- |
| جدّ جدّه | صاحب الجد | جدّ |

كَذَّ كَذُّهُ

نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ

( **وقولنا بتأويل يخرج نحو مامرّ من قول الجاهل** ) علامه سکاکی په مفتا: العلوم کي دمجاز عقلي دقيودو فوائد بيانوي سکاکی دبتأول په قيد سره اقوال کاذبه خارج کړي دي مثال جاء زيد وانت تعلم انه لم يجئ دا قول دمتکلم داعتقاد سره موافق

لري دواقع سره موافقه نه لري اوس په كار داده چي دا مجاز عقلي سي ځكه دلته اسناد وغير ماهو له ته دئ ليكن دا حقيقت عقلي دئ مجاز عقلي نه دئ ځكه قرينه نه سته عبدالرحمن قزوينی دبتأول په قيد سره تعريض كوي پر سكاكی باندي قزوينی وايي دبتاول په قيد سره قول دجاهل خارج سو مثال انبت الربيع البقل دلته كه څه هم اسناد دفعل وغير ماهو له ته دئ بيا هم حقيقة عقليه دی مجاز عقلي نه دئ ځكه قرينه نه سته ځكه دجاهل عقيده داده چي وابنه پسرلي راشنه كوي:

**پوښتنه:** هر كله چي دسكاكی قول غلط سو نو دقزوينی قول هم غلط دئ ځكه دواړه دبتاول په قيد سره يو يو صورت خارجوی څه فرق يې دئ:

**جواب** علامه تفتاوانی وايي پر مصنف اعتراز نه كيږي ځكه دمصنف مقصود بيان دقيوداتو نه دئ دا قيد چي مصنف ويلي دا دپاره دتعريض پر سكاكی باندي **ولهذا لم يحمل نحو قوله شعر اشاب الصغيرَ وافنى الكبير، كرُّ الغداة ومرُّ العشى، على المجاز مالم يُعلم او يُظن ان قائله لم يعتقد ظاهره كما استدل على ان اسناد ميز فى قول ابي النجم شعر ميز عنه قنزعاً عن قنزع، جذب الليالي ابطئ او اسرعي، مجاز بقوله عقيبه ع افناه قيل الله للشمس اطلعي):**

**ولهذا:** دا تفريع ده دبتأول پر قيد باندي يعنی په مجاز عقلي كي شرط دادئ چي قرينه به خامخا وي كه چيري قرينه نه لفظی وه نه عقلي وه بيا دا مجاز عقلي نه دئ كه يو سړی ښايسته عالم وو متقي عالم وو اوس كه دا عالم ووايي شفى الطبيبُ المرضَ دا مجاز عقلي دئ قرينه سته ځكه دمتقي عالم حال كيفيت پر دئ دال دئ چي دلته نسبت دفعل وغير ماهو له ته دئ قول دجاهل مثال انبت الربيعُ البقلَ شفى الطبيبُ المريضَ دا حقيقت عقلي دی مجاز عقلي نه دئ ځكه قرينه نه سته ځكه دجاهل عقيده داغه ده ( **ولهذا** داغه خووجه ده ؛

**لم يحمل**: نه حمل کيږي را روان شعر پر مجاز باندي چي تر څو پوري يقين نه وي ګمان ن
وي چي قائل ددې قول اعتقاد نه لري دظاهري اسناد په دې شعر کي، قائل ددې قول
دفعل اسناد وزمانی ته کړي دئ اوس زه علم او ظن دقائل پر اعتقاد نه لرم احتمال لري
چي قائل ددې قول دي معتقد دظاهر وي نو سو من قبيل قول الجاهل انبت الربيع البقل ل
دې وجه دا حقيقت عقلي دئ دشعر ترجمه او ترکيب ترجمه دورځي راتلل دشپې تيريدل
دې دواړو کوچنيان ځوانان کړل يا دې دواړو ځوانان فنی کړل:

**ترکيب** (اشاب: فعل، الصغير: مفعول (وافنی فعل الکبير مفعول کرُّ الغداة ومر
العشي معطوف عليه سره دمعطوفه دا به فاعل سي يا داشاب دپاره يا دافنی دپاره (کما
استدل علامه تفتازانی په مطول او مختصر کي دکما استدل وروسته عبارت راباسي
طالبانو يو زبردسته قاعده واورئ مخکي يو مفهوم تير سو وروسته دکما لفظ راغلی دا
کما دا کار کوي چي دمابعد عبارت تشبيه ورکول غواړی دماقبل عبارت سره نو کاف به
تشبيهي سي په معنی دمثل مابه مصدريه سي خپل مدخول به په تاويل دمصدر واړه وي
دا به مجرور دجار سي جار سره له مجروره دا به تعلق تر فعل مقدره پوري ونيسي نو کما
استدل متعلق دئ تر فعل مقدره پوري ای لم يستدل مثل الاستدلال دليل نه دئ نيول
سوی لکه استدلال چي نيول سوی دئ پر دې چي اسناد دفعل په راروان شعر کي وفاعل ته
مجاز دئ ځکه وروسته شعرورباندي قرينه دئ هغه شعر، **افناه قيل الله الی آخره** (کما
**استدل علی ان اسناد ميز فی قول ابن النجم شعر مَيَّزَ عنه قنزعاً عن قنزع، جذب**
**الليالی ابطئ اواسرعي** په دې شعر کي **مَيَّزَ** فعل **جذب الليالي** فاعل ترجمه دشعر **مَيَّزَ**
وختل عنه دده دسر **قنزعا** يوه غونچه ويښتان **عن قنزع** وروسته تر بلي غونچې **جذب**
**الليالی** دشپو تيريدو په داسي حال کي مقولا فی حقها ابطئ او اسرعی چي ويل سوي دي
په حق دشپو کي **ابطئ** ته په ځنډ ځنډ ځه **واسرعي** ته ژر ژر ځه ابطئ واسرعی دادواړ

حال دي دليالی څخه ليکن دواړه به په تاويل دمقول اړه وي ځکه دادواړه انشاء دي (
**مجاز بقوله عقيبه افناه قيل الله للشمس اطلعي :**

ترجمه: امردالله فنیٰ کړ ابي النجم دغه امر دالله وشمس ته وو يعنی اطلعي ته راخيژه :

## يو څلويښتم سبق مجازي عقلي څلور قسمه دئ

**(واقسامه اربعة لان طرفيه اما حقيقتان نحو انبت الربيع البقل او مجازان نحو احي الارض شبابُ الزمان او مختلفتان نحو انبت البقل شبابُ الزمان او احي االارض الربيع)**

(**واقسامه:** اقسام دمجازِ عقلي (**اربعة** څلور دئ (**لان طرفيه** ځکه طرفين مسند اليه او مسند دئ دا به خالی نه وي يا به حقيقتان وي دايو قسم دئ يا به مجازان وي دا دويم قسم دئ يا به مختلفتان وي يعنی طرف الاول حقيقت طرف الثانی مجاز دا دريم قسم دئ طرف الاول مجاز طرف الثانی حقيقت دا څلورم قسم دئ علامه تفتازانی وايي دحقيقت عقلية همدغه څلور اقسامه دي له دې وجه دحقيقة عقلية ټول اته ۸ اقسامه دئ ګوره اسناد دفعل الي ماهو له ته داعتقاد مطابق دواقع مطابق دا اول قسم ۲- قسم داعتقاد مطابق فقط ۳-: قسم دواقع مطابق فقط ۴-: قسم نه داعتقاد مطابق نه دواقع مطابق ۵-: قسم دواړه حقيقتان ۶-: قسم دواړه مجازان ۷-: قسم طرف ا لاول حقيقت طرف الثانی مجاز ۸-: قسم طرف الاول مجاز طرف الثانی حقيقت :

مسند اليه او مسند چي دواړه حقيقتان وي مثال انبت الربيعُ البقل: انبات او ربيع دواړه حقيقتان دي په ما وضع له کي مسند اليه او مسند چي دواړه مجازان وي مثال احی الارضَ شبابُ الزمان احی مسند دئ شبابُ الزمان مسند اليه دئ دواړه مجازا ن لغويان دي احی په لغت کي ايجاد الحيوة ته وايی ايجاد الحيوة معنی ژوند ورکول والحيوة هي صفة تقتضی الحس والحرکة حيوة دايو صفت دئ داسي صفت چي تقاضی کوي دادراک او

دحركت ارادى يعنى حيواة هغه صفت دئ چي په چا کي وي هغه به ادراک کولای سي
حرکت ارادی به کولای سي ليکن په ځمکه کي حس نه سي راتلي نه حرکت ارادی راتلي
سي نو بيا دا حي الارض څه معنى نو ښکاره خبره ده داحی څخه معنى حقيقي مراد نه
بلکي معنى مجازى مراده ده دا حی معنى مجازى داده **تهييج القوى النامية فيها**
**واحداث نضارتها بانواع النباتات** تيار يدل دقوٰى داسي قوٰى چي نماء کوونکي دي
فيها په ځمکه کي الله پاک په ځمکه کي داسي قوٰى وي پيدا کړي چي هغه قوٰى وي په
ځمکه کي وابنه راشنه کوي ( **شباب الزمان**: شباب ځوانی ته وايي شباب په حقيقت کي
عبارت دئ عن کون الحيوان فی زمان يکون حرارته الغريزية مشبوبة اي قوية مشتعلة
کون دحيوان د په داسي زمانه کي چي حرارت دهغه زمانی داسي حرارت چي په ده کي پيدا
کړه سوی يعنى الله پاک په انسان کي دپنځلسو کلو څخه بيا تر څلويښتو کالو پوري
داسي قواى وي پيدا کړي داسی قوٰى وي ايښي چي هغه په مستي کي وي قوٰى وي
مضبوطي وي دا دشباب معنى حقيقي ده دا معنى مراد نه ده دشباب الزمان معنى
مجازي داده ازدياد قوتها النامية ازدياد دقوت داسي قوت چي نماء کونکي دئ په ځمکه
کي دلته دشباب الزمان څخه دامعنى مجازي مراد ده طرف الاول حقيقت طرف الثاني
مجاز مثال **انبت البقل شابُ الزمان** دلته انبت مسند دئ شاب الزمان مسند اليه دی
مسند حقيقت دئ په ماوضع له کي شباب الزمان مجازي دئ په ازدياد قوة الارض النامية
کي طرف الاول مجاز طرف الثانی حقيقت مثال **احي الارض الربيعُ** :

دلته احی مسند دئ الربيع مسند اليه دئ مسند مستعمل دئ په معنى مجازي کي مسند
اليه مستعمل دئ په معنى حقيقي کي ( **وهو فی القران کثير**) مجاز عقلي په قران کي
ډير راځي دا رَد دئ پر هغه چا چي هغه وايي مجاز په قران کي نه راځي ځکه په مجاز کي
دروا غ دئ :

پوښتنه: ستا دعبارت څخه دا رامعلومیږي چي مجاز عقلي په قران کي ډیر دئ په نسبت سره وحقیقت عقلیه ته؟

جواب علامه تفتازانی دکثیر وروسته دفی نفسه قید ایږدي أی کثیر فی نفسه یعنی مجاز عقلي ډیر دئ فی نفسه نه په نسبت وحققیت عقلیه ته:

پوښتنه: **فی القران** جار مجرور، محمول، **کثیر**، عامل، تقدیم ،دمعمول پر عامل باندي دا دپاره دتخصیص وي ددې عبارت څخه دا رامعلومیږي چي مجاز عقلي یوازی په قران کي ډیر راځي سره له دې چي مجاز عقلي دقران څخه غیر په نور عربیت کي هم راځي ؟

جواب: علامه تفتازانی وایي تقدیم د**فی القران** پر **کثیر** باندي دالمجردالاهتمام دون التخصیص داخالص داهتمام دپاره دئ دتخصیص دپاره نه دئ ښه خوند کوي چي قران مخکي سي تر کثیر دا خوند نه کوي چي کثیر مخکي سي تر قران:

قاعده: تقدیم کله دتخصیص دپاره وي کله داهتمام دپاره وي کله دواقع او نفس الامر دپاره وي لکه الله فرمایي ﴿فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا﴾ ترجمه پس ورښوولي يې دئ (په زړه دده کي) بدی دده او تقوا دده علماء دلته نکته پورته کوي فجور ارذل دئ تقوا افضل دئ الله پاک ارذل ولي مقدم کوي پر افضل باندي ولی داسي نه وایي **فَأَلْهَمَهَا تَقْوَاهَا وَفُجُورَهَا** نو علماء وایي الله پاک چي فجور مخ ته کوي پر تقوا باندي دا اشاره ده وواقع او نفس الامر ته په واقع او نفس الامر کي اول وار په سړي کي ذاتا فجور وي اول وار چي الله انسان پیدا کړی دانسان په فطرت کي حرس وي تکبر وي حب الدنیا وي حسد وي بغض وي بیا به انسان سوکه سوکه دا لیری کوي دالله په ذکر سره دعلماء په ناسته سره او بل دا چي فجور خپله په سړي کی پیدا کیږي لکه اغزي کرنه نه غواړي خپله شنه کیږي ﴿وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا﴾ ترجمه کله چي پر مؤمنانو دالله آیتونه تلاوت سي نو زیات به کړي ایاتونه دمؤمنانو ایمان دلته دزادت اسناد ایاتو ته دي دزادت اسناد

وایاتو ته مجاز دئ ځکه زیادت فعل دالله دئ زیادت فعل دایاتو نه دئ ایاتونه یواز
سبب دزیادت دي له دې وجه دزادت اسناد دماهو له پر ځای وغیر ما هو له ته دئ دا
محشی ډیر زبردسته اعتراض کړي دئ هغه دا چي ﴿اذا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيٰتُهٗ﴾ دا
مثالونه شروع سوه مصنف داسي ولي نه وويل قوله تعالی او نحوه جواب مصنف قو
تعالی او نحوه دايي نه وويله دپاره دحصول ددووشيانو يو مثال بل اقتباس که چير
مصنف ويلي وای قوله تعالی او نحوه مثال حاصليږي اقتباس نه حاصليږي :

الاقتباس: داقتباس معنی لغوي فلوزی راوړل لکه دا زموږ اصطلاح ده چي دوه ځايه و
يو ځای اور بل وي بل ځای اور بل نه وي نو موږ وايو فلوزی راوړه يعني لرګي بل کړه راږ
وړه چي دا کوره بله کړو موسی عليه السلام دخپلي بي بي سره روان دئ ماخستن يې
غره کي اور وليدی نو وه يې ويل ته کښينه لَعَلِّيْ اٰتِيْكُمْ بنايي چي زه فلوزی راوړم اقتبا
په اصطلاح کي دې ته وايي کلام دپروردګار عالم دئ ته را ولاړ سي پخپل عبارت ک
دالله کلام راوړي استعمال يې کړې نو دا داسي سو لکه تا چي فلوزی راوړي مثال ز
سره روپۍ دي ستاسو سره هم روپۍ دي خو زما سره چي کومي روپۍ دي هغه به باقي و
ستا سو سره چي کومي روپۍ دي هغه به نيستي کيږي نو ما وويل مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ
وماعندي باق اوس دا کلام په حقيقت کي دالله دکلام څخه اخيستل سوی دئ يعني دا
دکلام څخه فلوزي راوړل سوی دئ دالله کلام دادئ ﴿مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ بَاقٍ﴾
داسړي اقتباس کول هم غواړي مثال ورکول هم غواړي اقتباس دارنګه کوي وايي
تاته مدعی کښېښودله چي وهو في القران كثير دی او دمؤمن به داشان وي واذا تليت
عليهم ايته زادتهم ايمانا چي څومره پر ده باندي اياتونه تلاوت کيږي نو دده به ايما
پخيږي يقين به يې زياتيږي او دا په قران کي سته نو دا داسي سو لکه هلته چي ده مدع
کښېښودله او دايې دليل ورباندي وويل ﴿يُذَبِّحُ اَبْنَاۗءَهُمْ﴾ فرعون دموسی دقو
زامونان ذبحه کول ديذبح اسناد وفرعون ته مجاز دئ ځکه داکار دعملي دئ دلښکر
ديذبح اسناد دماهوله پر ځای چي لښکر دئ وغير ماهو له ته وسو چي فرعون دئ ﴿يَا

﴿عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا﴾ شیطان دادم علیه السلام او بي بي حوا علیها السلام څخه خپلي جامې وایستلې دلته دفعل اسناد په اصل کي والله ته دئ او س یې اسناد وشیطان ته دئ سبب درې قسمه دئ ۱-: سبب مطلق ۲- سبب الامیر ۳-: سبب السبب :

اول مثال دسبب مطلق دئ دویم مثال دسبب الامیر دی دریم مثال دسبب السبب دی ځکه دجامو دایستولو اصل سبب دغنم دانه ده دغنم ددانی سبب شیطان دئ ﴿يَوْمَ يَجْعَلُ الْوِلْدَانُ شِيبًا﴾ دقیامت داسي ورځ ده چی کوچنیان به وګرزي سپینږري یا ځوانان دا کوچنیان چي سپینږري یا ځوانان ګرزي دا کنایه ده وهغه شدة الیوم ته چي هغه ورځ ډیره طویله ده یا داکنایه ده وزیات غمو او حزن ته په دغه ورځ کي علامه تفتازانی وایي یومًا مفعول به دئ دتتقون دپاره اي کیف تتقون یوم القیامة اِن بقیتُم عَلی الکُفرِ ﴿يَوْمَ يَجْعَلُ الْوِلْدَانُ شِيبًا﴾:

قاعدة: که دیوماسره فاء مقدره وه بیا مفعول فیه دئ که فاء مقدره نه وه بیا مفعول به دئ دلته یوما مفعول به دئ دلته دفعل اسناد وزمان ته دئ زمان دفعل غیر ماهو له دئ دفعل ماهو له الله دئ :

﴿وَأَخْرَجَتِ الْأَرْضُ أَثْقَالَهَا﴾ راوه به غورځوي ځمکه خپل بوجونه داخراج ماهوله الله دئ خو دلته دفعل اسناد غیر ماهوله ته دئ چي هغه ارض ده .

## دوه څلویښتم سبق مجاز عقلي تر خبر پوري خاص نه دئ

**وهو غیر مختص بالخبر بل یجري فی الانشاء نحو یا هَامَانُ ابنِ لی صرحًا )**

مخکي یو وهم کېدی چي مجاز عقلی په اسناد خبری کي ذکر سو مجاز عقلی ته مجاز فی الاثبات وویل سو ددې څخه دا وهم پیدا کیدی چي مجاز عقلی خاص دئ تر اسناد خبری پوری ددې وهم ددفعي دپاره مصنف وویل **وهو غیر مختص بالخبر** مجاز عقلي تر خبر

پوري خاص نه دئ بل يجرى فى الانشاء بلكي مجاز عقلى په انشاء كي هم جار
كيږى نحو يا همان ابن لى صرحا دلته دا ابنُ اسناد وهامان ته مجاز عقلى دئ ځكه بنا
فعل دعمله دئ هامان يوازي سبب امير دئ بل مثال ﴿فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ﴾ اخرا
دآدم او دبي بي حوا دجنته دا په اصل كي فعل دالله دئ ابليس يوازى سبب دئ بل مثا
فَلْيُنْبِت الربيعُ ماشاء: دانبات ماهوله الله دئ دانبات غير ماهو له پسرلى دئ ځكه مو
يواځي سبب دئ دانبات دپاره اصل ددې عبارت دادئ لينبت الله فى الربيع ما شاء:

## اجراء المجاز العقلى فى الانشاء

يَاهَامَانُ ابْنِ لِي صَرْحًا (غافر ٣٦)

| مجاز عقلى | ماهوله | غير ماهوله |
|---|---|---|
| اُبنُ | عمله دي | هامان |

تشريح: دابن اسناد وهامان ته مجاز عقلي دئ ځكه بناء فعل دعمله دئ هامان يواز
سبب امير دئ :

فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقَىٰ (طه ١١٧)

| مجاز عقلى | ماهوله | غير ماهوله |
|---|---|---|
| فلا يخرجنكما من الجنة | الله | شيطان |

تشريح: اخراج دادم او دبى بى حوا دجنته دا په اصل كي فعل دالله دئ شيطا
يوازي سبب دئ :

فَلْيُنْبِتِ الرَّبِيعُ مَاشَاء:

| مجاز عقلى | ماهوله | غير ماهوله |
|---|---|---|
| فلينبت الربيع | الله | پسرلى |

تشريح: دانبات اصل ماهوله الله دئ دانبات غير ماهوله پسرلى دئ ځكه مو
يوازي سبب دئ دانبات دپاره اصل ددې عبارت دادئ لينبت الله فى الربيع ما شاء:

**فَأَوْقِدْ لِي يَا هَامَانُ عَلَى الطِّينِ فَاجْعَلْ لِي صَرْحًا** (القصص ٣٨)

| مجاز عقلی | ماهوله | غیر ماهوله |
| --- | --- | --- |
| فاوقدلی یاهامان | عمله | هامان |

**تشریح:** داوقد اسناد وهامان ته مجاز عقلي دئ ځکه اور بلول دعمله کار دئ هامان یوازي سبب امیر دئ :

| مجاز عقلی | ماهوله | غیر ماهوله |
| --- | --- | --- |
| **فاجعل لی** | **عمله دي** | **هامان** |

**تشریح:** داجعل اسناد وهامان ته مجاز عقلی دئ ځکه بناء فعل دعمله دئ هامان سبب امیر دئ :

(**ولابدله من قرينة لفظية كما مرّ او معنوية كاستحالة قيام المسند بالمذكور عقلا كقولك مُحبَّتك جاءت بي اليك او عادة نحو هزم الامير الجند**) دمجاز عقلي دپاره به خامخا قرينه وي قرينه دوه قسمه ١-: لفظيه ٢-: معنويه قرينه لفظية كمامرلکه دا قرينه لفظية مخکي ذکر سوي ده په قول دابي نجم کي :

قرينه معنويه دوه قسمه ده ١-: **قسم كاستحالة قيام المسند بالمذكور عقلا وعادة** ٢-: **قسم كصدور الكلام عن الموحد** ١-: قسم دقرينه معنويه ،عقل قيامه دمسند پر مسند اليه پوري محاله بولي ناممکنه يې بولي مثال **محبتک جاءت بي اليک:**

ستا محبت زه را وستم تاته دلته دمجيئت اسناد ومحبت ته دئ دمجيئت قيامه عقل محاله بولي ناممکنه يې بولي پر محبت باندي ځکه محبت پښي نه لري محبت داسي شی نه دئ موټر نه دئ يا باسکل نه دئ، **اوعادةً:** يا عادت قيامه دمسند محاله بولي ناممکنه يې بولي پر مسند اليه باندي مثال **هزم الامير الجند:** امير لښکر پر شا وتبماوو عادت

دا محال بولي چي يوه امير دي لښکر پر شا تمبولي وي نو ښکاره خبره ده چي په دواړو مثالو کي مجاز دئ په اول مثال کي دمجيئت اسناد وسبب ته دئ محبت سبب دئ فاعل نه دئ په دويم مثال کي دهزَمَ اسناد وامير ته مجاز دئ ځکه اميريوازی سبب دجند دتمبولو دپاره دی، دهزم ماهوله جيش دئ ( **وصدوره عن الموحِّد فی مثل اشاب الصغير** ) صدوره عطف دئ پر استحالة باندي ای کصدورالکلام عن الموحِّد دا دويم قسم دئ دقرينی معنويي ٢-: قسم دقرينه معنويه دادئ صدور دکلام دموحِّد څخه دا پر دې قرينه وي چي دلته اسناد ،فعل دماهوله څخه اړول سوي دئ وغير ماهوله ته.

## دري څلويښتم سبق پيژندل دحقيقة به يا ظاهروي

( **ومعرفة حقيقته اما ظاهرة کما فی قوله تعالی﴿ فماربحت تجارتُهم﴾ اي فما ربحوا فی تجارَتهم واماخفية کما فی قولک سرتنی رؤيتک اي سرنی الله عند رؤيتک وقوله شعر يزيدک وجهه حسناً، اذاما زدته نظرا، اي يزيدک الله حسناً فی وجهه** ) معرفت دحقيقت عقليه په مجاز عقلي کي يا به ظاهر وي لکه په دې قول دخدای پاک کي﴿ فَمَارَبِحَتْ تِجَارَتُهُمْ ﴾ اي فماربحوا فی تجارتهم دلته مجاز عقلي دئ او حقيقت عقليه په دې مثال کي ظاهر دئ ځکه دفعل اسناد په اصل کي تجارانو ته دئ اوس دفعل اسناد وتجارت ته دئ يعنی دفعل اسناد وغير ما هوله ته دئ يا به معرفة دحقيقة عقليه په مجاز عقلي کي خفی وي يعنی پټ به وي دوجه دزيات اسناد وفاعل مجازي ته او دوجي دترک الاسناد وفاعل حققي ته مګر حقيقت عقليه معلوميږي په دقت او تأمل سره مثال **سرّتنی رويتک** ستا رويت زه خوشحاله کړم دلته په ظاهر دارامعلوميږي چي روئت دسرتنی دپاره ماهوله دئ فاعل دئ خو که سړي په دقيق نظر ورته وګوري او تأمل وکړي نو دسرتنی ماهو له فاعل حقيقی الله دئ ځکه سررو او حزن دادواړه دالله په لاس کي دي رؤيت دمحبوب ماهوله نه دئ غير ماهوله دئ ځکه روئيت

دمحبوب به وي خو خوشحالي به نه وي نو ښکاره خبره ده دسرتنی ماهوله الله دئ اي سرنی الله عندرؤيتک بل مثال يزيدُک وجهه حسنا اذا مازدته نظرًا :

شاعر وايي زما محبوب ته چي څومره ګوري دومره زياتوي مخ دده ،حسنا: حسن يعنی تاته حسن ښکاره کوي دده په مخ کي دلته يزيدک فعل دئ وجههُ فاعل دلته مجاز عقلي دئ ځکه زيادت په حقيقت کي دالله کاردئ وجههُ په حقيقت کی مفعول غير صريحي دئ اي يزيدک الله فی وجهه حسنا مقصد دقزوينی رد دئ پر شيخ عبدالقاهر باندی سکاکی او قزوينی وايي په مجاز عقلي کي وجود دحقيقت عقلي شرط دئ شيخ عبدالقاهر وايي په مجاز عقلي کي وجود دحقيقت عقلي ضروري نه دئ علي جهة القيام والاتصاف لا علی جهة الايجاد پرشيخ عبدالقاهر باندي امام فخرالدين الرازي اعتراض وکړ فخرالدين وايي فعل لره به خامخا فاعل حقيقی وي ځکه صدور دفعل لاعن الفاعل ممتنع دئ :

پوښتنه: پر شيخ عبدالقاهر باندي: دوي وايي په مجاز عقلی کي چي حقيقت عقلي نه وي دامجاز عقلی نه دئ ولي مجاز عقلی لره خامخا حقيقت عقلی وي ماهوله وي؟

جواب: علامه تفتازانی جواب ورکوي علامه تفتازانی وايي دوي دشيخ په خبره نه دي پوه مراد دشيخ موجِد دفعل نه دئ ځکه شيخ په دې قائله دئ چي هر فعل لره يو موجد يو خالق وي موجد دهر فعل الله دئ مراد دشيخ مَن قام به الفعل دئ ،دوی وايی په من به الفعل کي دحقيقت عقلي وجود ضروري دئ شيخ عبدالقاهر وايی په من قام به الفعل کي دحقيقت عقلي وجود ضروری نه دئ :

پوښتنه دوی وايی چي په من قام به الفعل کي حقيقت عقليه نه سته نو دا مجاز عقلي نه دئ ولي مجاز عقي لره خامخا حقيقت عقلي وي ؟

جواب: علامه تفتازانی وايي دوی بيا دشيخ په خبره نه دي پوه شيخ وايي په من قام به الفعل کي چي دفعل اسناد په عرف او اصطلاح کي چا ته وسو بس هغه مراد دئ هغه فاعل دئ ددې فعل په من قام به الفعل کی دحقيقت عقلي وجود په نفس الامر او په واقع کي ضروري نه دئ خو ماهو له ته معتبر او منتزع کوه چي دلته مثلا داما هو له دی ، داماهو له

نه دئ دا غير ماهو له دئ فخرالدين رازي چي داخبره كوي چي په دنيا كي داسي فعل نه
سته چي ده لره دي ماهول نه وي دا خو دموجد خبره ده شيخ وايي دا خو زه هم منم چي په
دنيا كي داسي فعل نه سته چي ده لره دي ماهوله نه وي په اعتبار دموجد ليكن شيخ وايي
زما خبره په من قام به الفعل كي ده په مختصر كي دايو مشكل ځای دئ :

## څلورڅلويښتم سبق سكاكی مجازي عقلي نه مني

( وانكر السكاكی ذاهبا الى ان ما مر ونحوه استعارة بالكناية على ان المراد
بالربيع الفعل الحقيقي بقرينة نسبة الانبات اليه وعلى هذا القياس غيره ) :

سكاكی دمجاز عقلي قائله نه دئ سكاكی وايي دمجاز عقلي چي څومره صورتونه دي
هلته استعاره بالكنايه ده استعاره پر دري قسمه ده ١- مكنيه ٢-: تخييليه ٣-: ترشيحيه
دمكنيه په تعريف كي دسكاكی او دجمهور علماء سره اختلاف دئ سكاكی داستعاره
بالكنايه يو رنګه تعريف كوي جمهور داستعاره بالكنايه بل رنګه تعريف كوي مثال
انشبت المنية اظفارها جمهور داستعاري مكنيي تعريف داسي كوي ذكر مشبه چي مرګ
دئ مراد هم مشبه چي مرګ دئ مشبه به كنايه معلوميږي چي سبع ( مرغه) دئ سكاكی
داستعاري مكنيي تعريف داسي كوي ذكر مشبه چي مرګ دئ اراده دمشبه به چي سبع (
مرغه ) دئ په انشبت المنية كي جمهور وايي ذكر دمنية اراده هم دمنية ليكن سبع( مرغه
) كناية معلوميږي دسكاكی په نيز ذكر دمشبه چي منيه ده اراده دسبع ( مرغه ) چي
مشبه به ده اراده دمشبه به داظفارها څخه معلوميږ يعني تاچي اثبات دلوازمو دمشبه
به مشبه لره وكړي ددغه ځايه مشبه به كناية معلوميږي علامه سكاكی وايي په كومو
ځايو كي چي ته مجاز عقلي جوړوي زما په نيز په دي ټولو صورتونو كی استعاره
بالكنايه ده مثال په انبت الربيع البقل كی الربيع مشبه قادر مختار، قادر مطلق چي الله دئ
دا مشبه به دئ ذكرمشبه چي ربيع دئ اراده دمشبه به چي الله دئ سكاكی وايي زما
دارنګه استعاره كوم په ټولو ځايونو كي ذكر دربيع اراده دالله نو دئ سو لكه تا چي ووېل
انبت الله البقل نو مجاز عقلي نه راغلی، دخبري خلاصه داده سكاكی وايي دفاعل

مجازي چي څومره صورتونه دي هلته دفاعل مجازي څخه فاعل حقيقي مراد دئ مثال
﴿فَمَا رَبِحَتْ تِجَارَتُهُمْ﴾ ذكر تجارت اراده دتجار گويا كي دربحت اسناد تجارانو ته دئ نو
مجازعقلي ختم سو اوس راسي عبارت ولگوو :

( وانكره السكاكی ) سكاكی دمجاز عقلي څخه انكار كړي دئ ( ذاهبا الی ان مامر
ونحوه استعارة بالكناية ) په داسي حال كي چي سكاكی تگ كوونكي دئ ودې ته چي
واقع هغه امثله چي تير سوه يا ددې په مثال سره دغه ټول صورتونه استعاره بالكنايه ده (
علی ان المراد بالربيع الفاعل الحقيقي بقرينة نسبة الانبات اليه: بناء پر دې
چي مراد دربيع څخه فاعل حقيقي دی قرينه پر دې باندي نسبة دانبات دئ وربيع ته يعنی
ذكر فاعل مجازي چي ربيع دئ اراده دفاعل حقيقي چي الله دئ قرينه ورباندي نسبت
دانبات دئ وفاعل مجازی ته چي ربيع دئ ( وعلی هذا القياس غيره ) ددغه مثال څخه
غير نور مثالونه ورباندي قياس كړه ( وفيه نظر ) په قول دسكاكی كي نظر دئ دسكاكی
پر مذهب ډير تاوانونه پيښيږي علامه قزويني په دې راروان عبارت كي هغه تاوانونه
رامخ ته كوي كه موږ هر ځای ذكر دفاعل مجازي كړو اراده دفاعل حقيقي كړو استعاره
پكښي جوړه كړو ستا پر مذهب باندي سكاكی تاوانونه پښيږي او دغه تاوانونه باطل دي
او هر مستلزم باطل لره باطل وی سكاكی ستا كار دغه لره مستلزم دئ او باطل دئ نو ستا
كار سكاكی باطل، دئ اول تاوان دسكاكی پر مذهب باندي دادئ چي ظرفيت دشي خپل
نفس ته راځي مثال ﴿فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَاضِيَةٍ﴾ ترجمه پس هغه سړي به وي په ښه ژوندون كي
چي راضي به وي ( په جنت كي ) په دې مثال كي ظرفيت دشی خپل نفس ته هغه وخت
راځي چي دضمير او دمرجع څخه صاحب العيشة واخيستل سي ظرفيت دشي خپل نفس ته
دارنگه راځي دعيشة څخه صاحب العيشة مراد ده ضمير دراضية راجع دی وعيشةٍ ته عيشة
په معنی صاحب العيشة دئ راضية گوره ذكرفاعل مجازي چي عيشة ده اراده دفاعل
حقيقی چي صاحب العيشة دئ اوس عبارت دارنگه جوړسو فهو فی صاحب عيشة راض

صاحبها نو ظرفيت دشي راغلي خپل نفس ته علامه تفتازانی وايی قزوینی ته ګوره سکاکی صنعت استخدام ونه کړي صنعت استخدام دې ته وايي چي دمرجع څخه یو معنی واخله دراجع څخه بله معنی واخله صنعت استخدام دارنګه کوي دعیشة څخه معنی حقیقي اخلي چي هغه تعیش دئ هغه ضمیر چي په راضیة کي دئ دهغه څخه صاحب العیشه اخلي نو عبارت دا رنګه جوړ سو فهو فی عیشة راض صاحبها، ګوره دلته ظرفیت دشي خپل نفس ته نه راغلی او کنایه هم راغله سکاکی، کنایه دارنګه کړی عیشة پر خپل حقیقت پریږدي په راضیةٍ کي کنایه کوي ذکر فاعل مجازی چي عیش دئ اراده دفاعل حقیقی چي صاحب العیش دئ له دې وجه که سکاکی صنعت استخدام وکړ نو خپل قول به هم ثابت کړي ځان به هم خلاص کړي داعتراض څخه، نو قزوینی به سکاکی ته وایي چي ته صنعت استخدام مه کوه بیا ته کنایه جوړه کړه یا خو قزوینی دی سکاکی ته داسي مثال ورکړی چي هلته سکاکی صنعت استخدام نه سي کولای هغه مثال دادئ

﴿فما ربحت تجارتهم﴾ ذکر فاعل مجازي چي تجارت دئ اراده دفاعل حقیقي چي تجار دئ تجارت ظرف دئ نو په اصل کي عبارت دارنګه دئ فما ربحوا فی انفسهم تجارانو په خپلو ځانو کي ګټه ونه کړه نو اضافت دشي خپل نفس ته راغلي دلته صنعت استخدام نه سي کولای (**لانه یستلزم ان یکون المراد بالعیشة فی قوله تعالی فی عیشة راضیة صاحبها**) ځکه دا مستلزم دئ ودې ته چي مراد دبالعیشه څخه په دې قول دخداي پاک کي صاحب العیشة دئ:

(**وان لا یصح الاضافة فی نهاره صائم لبطلان اضافة الشئ الی نفسه** دویم اعتراض پر سکاکی باندي که سکاکی دمجاز عقلي قائل نه سي نو اضافت دشي به خپل نفس ته راسي په دې مثال نهاره صائم ذکر دنهار اراده دصاحب النهار ضمیر په صائم کی راجع دی وصاحب النهار ته اوس که سکاکی اراده دفاعل حقیقی وکړی چي صاحب النهار دئ ضمیر هم صاحب النهار ته راجع دئ له دې وجه اضافت دشي راغلی خپل نفس ته او اضافت دشي خپل نفس ته باطل دئ علامه تفتازانی قزوینی ته وایي ګوره سکاکی صنعت استخدا م ونه کړی صنعت استخدام داسي کوي دنهار څخه زمان اخلي هغه ضمیر

چي په صائم کي دی دهغه څخه صاحب النهار اخلی نو اضافت دشي خپل نفس ته نه راغلی بنه خبره داده چي قزوینی سکاکی ته دا مثال ورکړی فما ربحت تجارتهم ځکه دلته اضافت دشی خپل نفس ته راځي صنعت استخدام نه سي کولای ځکه صنعت استخدام په ضمیر کي کیږي او ضمیر فما ربحت کي نه سته :

(**وان لا يكون الامر بالبناء لها مان**) : دریم قانون دادئ چي کوم چا ته اواز وي خطاب به هم ده ته وي اواز یوه ته کول خطاب بل ته کول لیونتوب دئ په یا هامانُ کي ذکر دهامان دئ اراده دعمله ده اواز هامان ته دئ خطاب وعمله ته دئ له دې وجه دا کلام نه دئ صحیح چي اواز یوه ته وي خطاب بل ته وي :

(**وان لايكن الامر بالبناء لهامان:** امر بالبناء به نه سي وهامان ته بلکي وعمله ته به سي (**وان يتوقف نحو انبت الربيعُ البقلَ على السمع**) :

څلورم الله ته په فارسي کي خدای وایي په پښتو کي پروردګار څښتن ورته وایي دادهغو خلکو پر مذهب چي اسماء الله توقیفی نه بولي توقیفی دا معنی چي موقوفه وي پر سماع باندي یعنی الله ته به غوږ نیسي چي الله څرنګه درته وایي هغه رنګه به ورته وایي بعض علماء وایي اسماء الله غیر توقیفی دي یعنی ستا خو بنه ده چي څرنګه نوم دالله سره مناسب وی په هغه نوم الله ته وایه انبت الربیع البقل، سکاکی خو وایی ذکر دربیع اراده دالله دلته دربیع اطلاق پر الله وسو دغه عبارت دهغو خلکو په نیز چي اسماء الله توقیفی بولي په کار داده چي دغه عبارت ددوي په نیز صحیح نه سي خو دغه عبارت ددوي په نیز صحیح دئ نو دا پر دې دلالت کوي چي کنایه مي نایه نه چلیږي (**وان يتوقف نحو ابنت الربيع البقل**) ځکه دا مستلزم کیږی ودې ته چي دغه عبارت چي انبت الربیع البقل دئ دادي موقوف سي پر سمعه باندي (**واللوازم كلها منتفية**) ټول لوازم منتفی دي علامه تفتازانی وایي تاسي دسکاکی په خبره نه یاست پوه والله که دسکاکی په مطلب دوی پوه سي یو اعتراض پر سکاکی نه واردیږي سکاکی دکنایي

تعريف داسي كوي ذكر دمشبه اراده دمشبه به ادّعاءً او مبالغة نه حقيقة سر مي نه
خلاص ما ته گوره ذكر دربيع اراده دالله ادعاء او مبالغة نه حقيقة يعنى سكاكى دا و
غواړي ربيع په انبات كي دومره عموم او دخل لري لكه الله چي په انبات كي ډير دخل ل
يعنى ذكر دتجارت اراده هم دتجارتنو اضافت دشي خپل نفس ته راغلى كه ته وايي
خو مجاز عقلي دئ سكاكى وايي زه دا دعوه كوم چي ذكر دتجارت دئ اراده دتجار
مجازعقلي ختم سو كه ته وايي دلته خو اضافت دشي خپل نفس ته راغلى سكاكى دا خبر
زه كوم ادعاء او مبالغة نه حقيقة يعنى زه دا دعوه كوم چي تجارت په ربحه كي دومره دخ
لري لكه تجار چي دخل لري يعنى سكاكى دا وايي زه تجار ته تجارت وايم ادعاء ا
مبالغة نه حقيقةً (**ولانه ينتقض بنحو نهاره صائم لاشتماله على ذكر** طرف
**التشبيه**):

پنځم اعتراض پر سكاكى باندي موږ سكاكى ته وايو چي سكاكى ته خپله په خپل كتاب
كي وايي چي استعاره هغه وخت صحيح كيږي چي ذكر دطرفينو دتشبيه نه وي يعنى ي
طرف به ذكر وي مشبه او مشبه به به دواړه ذكر نه وى، په نهاره صائم كي مشبه او مشب
به دواړه ذكر دي دلته ذكر مشبه چي فاعل مجازي دئ كه ته وايي فاعل مجازي څوك
دئ گوره فاعل مجازي هغه ضمير دصائم دئ چي راجع دئ ونهار ته دلته مشبه به هم ذك
ده مشبه به چي فاعل حقيقى دى كه ته وايى فاعل حقيقي څوك دئ فاعل حقيقي دنهار
ضمير دئ چي راجع دئ وشخص ته وكذالک ليلهٗ قائمٌ بل مثال (**فما ربحت تجارتهم**)
دلته مشبه او مشبه به دواړه ذكر دي ذكر مشبه چي تجارت دئ په تجارتهم كى ده
ضمير راجع دى وتجارانو ته نو مشبه بِهِ هم ذكر ده علامه تفتازانى جواب وركوي تفتازانى
وايى كه په عبارت كي مشبه او مشبه به دواړه ذكر وه استعاره نه ده صحيح هغه وخت
چي دليري وجود دتشبيه وي كه دلري وجود دتشبيه نه معلوميده بيا مشبه اومشبه به
دواړه ذكر كول تاوان نه لري لكه دا مثال **قد زرّ ازراره على القمر**: دلته په ازراره كي
ضمير راجع دئ ومحبوب ته قمر مشبه به محبوب مشبه دلته مشبه او مشبه به دواړه ذكر

دي ځکه دلري وجود دتشبیه نه معلومیږي له دې وجه دارنګه عبارت داستعارې سره منافي نه دي .

## پنځه څلویښتم سبق احوال المسند الیه

(احوال المسند الیه)

مقصود دعلم معانی منحصر دئ په ۸ ابوابو کي اول باب ختم سو دویم باب شروع سو نو وې ویل احوال المسند الیه مثال زید قائمٌ: زید مسند الیه دئ زید ته ډیر احوال ورعارضیږي دزید یو حال رفعه ده دویم حال دزید تعریف دئ دریم حال دزید عَلَمَ دئ څلورم حال دزید معرب والی دئ دا ټوله احوال مسند الیه ته ورعارضیږی :

**پوښتنه:** تا چي احوال المسند الیه وویل نو ددې دا معنی چي دمسند الیه دټولو احوالو څخه بحث کیږي او حال دادئ چي اهل معانی دمسند الیه دټولو احوالو څخه بحث نه کوي ؟

**جواب:** دلته دحَیثُ قید مقدر دئ یعنی اهل معانی دهغه احوالو څخه بحث کوي چي زیدٌ ته ورعارض وي په دې حیثیت چي دی به مسند الیه وي:

**دویمه پوښتنه:** زیدٌ ته رفعه ورعارض ده په دې حیثیت چي دی مسند الیه دئ ؟

**جواب:** دلته بل قید دحیثُ معتبر دئ یعنی هغه اُمورٌ عارضةٌ لهُ مِن حیثُ اَنّهٗ مسند الیه دا په دې حیثیت چي ددې احوالو په ذریعه به کلام مطابق وي دمقتضی دحال سره :

**پوښتنه:** مسند الیه ولي پر مسند مقدم سو ؟

**جواب:** مسند الیه پر مسند مقدم سو ځکه مسند الیه رکن اعظم دئ :

په احوال المسند الیه کي اضافت عهد خارجي دئ: استغراقی، جنسی، عهد خارجی ،عهد ذهنی، دا څلور سره چي څرنګه په الف اللام کي چلیږی همدارنګه په اضافت او موصول

کي هم چلیږي له دې وجه په احوال المسند الیه کي اضافت عهد خارجی دئ معهود په دې احوالو سره هغه احوال دي چي دهغو احوالو په ذریعه کلام مطابق کیږی دمقتضی الحال سره

## حذف المسند الیه

**(اما حذفه فللاحتراز عن العبث بناء على الظاهر او تخییل العدول الى اقوى الدلیلین من العقل واللفظ کقوله ع قال لی کیف انت قلت علیل )** دقزوینی عادت دا دئ چي دأمّا بعد کوم شی راغلی هغه مقتضی الحال دئ دلام التعلیل وروسته بیا حال وي احتراز عن العبث دا تقاضا کوي چي دلته دي مسند الیه حذف سي نو حذف مقتضی الحال سو احتراز عن العبث حال سو په حذفُه کي اوله خبره دا ده حذف دمسند الیه کله دامر لفظی دوجي وي حذف دمسند الیه کله دامر معنوي دوجي وي حذف دمسند الیه که دامر لفظی دوجي وو نو اهل معانی په دې کي دخل نه لري مثال اِضْرِبوا اوس چي نون تاکید ورمحلق سو اِضْرِبُنَّ جوړ سو ګوره دلته مسند الیه حذف سوه چي واو دئ دامر لفظی دوجي امر لفظی التقاء دساکنینو دئ حذف دمسند الیه دامر معنوي دوجي دا پر دوه قسمه دئ ١- حذف دمسند الیه باقامة مقامه مثال ضَرَبَ زَیْدٌ عمرًوا دلته زیدٌ مسند الیه دئ تا مسند الیه حذف کړ دفعل اسناد دئ وعمرو ته وکړ نو ضُرِبَ عَمْرٌ جوړ سو دلته عمرؤ دزید قائمقامه سو ددې څخه اهل معانی بحث نه کوي ٢-: حذف دمسند الیه بغیر اقامة مقامه اهل معانی ددې څخه بحث کوي **( اما حذفه :** دحذفه ضمیر راجع دی ومسند الیه ته :

**پوښتنه:** احتراز عن العبث دمتکلم کار دئ دحذفه ضمیر مسند الیه ته راجع دئ نو دمتکلم کار دمسند الیه دکار علت نه سي کیدای؟

**جواب:** موږ دلته دحذف ترجمه په انحذاف سره کوو نو دا معنی متکلم مسند الیه لره حذف وکړ نو کار دده سو ددې دپاره چی احترازعن العبث راسي بنا پر ظاهر باندی:

**پوښتنه:** دمسند الیه ډیر احوال دي مثال حذف، ذکر، تعریف، تنکیر ،تقدیم، تاخیر، تا حذف دمنسد الیه ولی مقدم کړپر ذکر دمسند الیه باندي ؟

**جواب:** مسند الیه حادث دي په حادث کي عدم تروجود مقدم وي ؟

**پوښتنه:** تا حذف پر ذکر مقدم کړ ځکه حذف عدم دئ ذکر وجود دئ نو عدم مقدم وي پر وجود باندي لیکن حذف مقابل دئ دذکر دنرو احوالو مقابل نه دئ لکه تعریف تنکیر وغیر ذالک له دې وجه حذف پر نورو احوالو ولی مقدم سو ؟

**جواب:** باقي نور احوال دذکر فرعه دي والمقدم علی الاصل مقدم علی الفرع :

**پوښتنه:** قزوینی په احول دمسند الیه کي دعدم تعبیر کوي په اما حذفه سره په احوال دمسند کی دعدم تعبیر کوي په اما ترکه سره اوس دلته محض تفنن فی العبارت دئ که بله نکته پکښی ده علامه تفتازانی په مختصر کي وایي دلته یو نکته سته هغه نکته داده مشهوره قانون دئ المحذوف کالمذکور ،داسي نه دئ ویل سوي المتروک کالمذکور مثال په یو صفحه کي مسند الیه حذف سوي نو دا حذف دئ وي لکه ذکر ځکه مسند الیه رکن اعظم دکلام دئ مسند که نه وي پروا نه سته یعنی قزوینی دمسند الیه په احوالو کي تعبیر په اما حذفه کوي داویل غواړي که دصفحي پر مخ نه سته بیا هم دئ دي لکه ذکرولي دده څخه بغیر کار نه کیږي قزوینی دمسند په احوالو کي تعبیر په اما ترکه کوي داویل غواړي کر سره نه سته که ته وایي ولی نه سته موږ وایو بس نه سته پورا نه لري (

**بناء علی الظاهر:**

**پوښتنه:** قزوینی مخکي وویل مسند الیه رکن اعظم دکلام ذی دده بغیر کار نه کیږی اوس وایي ذکر دمسند الیه عبث دئ ؟

جواب: قزوينی وايي **بناء على الظاهر**: ذکر دمسند اليه ظاهرًا عبث دئ ځکه قرينه ولاړه ده پر حذف دمسند اليه باندي دمسند اليه ذکر ته ضرورت نه سته **(او تخييل العدول الى اقوى الدليلين من العقل واللفظ**: يا حذف دمسند اليه ددې دپاره وي چي متکلم مخاطب ته په خيال کي داور کوي چي ما عدول کړی دئ واقوی ددليلينو ته چي يو عقل دئ بل لفظ دئ دشي پر وجود باندي دوه دليله دي يو عقل، بل لفظ، مثلا زه ړوند يم يو سړي اواز وکړي نو زما عقل پر دې دليل دئ چي دلته يو لافظ موجود دئ يا ما دخاړ وليدی نو زما عقل پر دې دليل دئ چي دلته اور موجود دئ خو لفظ وربانديي دليل نه دئ ځکه دا لفظ نه دئ که ما دمسند اليه لفظ ذکر کړ نو لفظ به دمسند اليه پر وجود باندې دليل سي که ما دمسند اليه لفظ ذکر نه کړ عقل به دده پر وجود باندي دليل سي ځکه قرينه

ولاړه ده مثال **قال لي كيف انت قلت عليل** قال لی يو سړي ما ته وويل كيف انت ته څرنګه يې قلت عليل ما ورته وويل زه ناجوړه يم اوس که ما آنا ذکر کړي نو آنا به پر مسند اليه دليل سي که ما آنا ذکر نه کړ نو کيف انت به دلالت وربانديي وکړي ځکه داقرينه ده شي پر وجود باندي دوه دليله دي يو عقل بل لفظ عقل قوي دليل دئ لفظ کمزوری دليل دئ نو دی وايي زه مسند اليه نه ذکر کوم ځکه ما عدول کړی دئ واقوی ددليلينو ته ځکه لفظ چي ديو شي پر وجود دلالت کوی نو عقل ته احتياج لري عقل چي پر يو شي دلالت کوي نو لفظ ته احتياج نه لري، علامه تفتازنی دلته يو عجيبه نکته پورته کوی دير خوندې کوي تفتازانی وايي اي قزوينی ته ولی تخييل وايي تا ته داسي عبارت په کار دئ ا

حذفه **فللعُدول الى اخره** حذف دمسند اليه ددئ دپاره چي ماعدول کړي دئ واقوی ددليلينو ته، دتخييل څه معنی دتخييل خو دامعنی چي متکلم مخاطب ته ظاهرا دا په خيال کي ورکوي چي ماعدول کړي دې واقوی ددليلينو ته نه حقيقة حالانکي دا په حقيقة کي دارنګه دئ:

١-: دلالت لفظی درې قسمه دئ ١-: لفظی وضعي ٢-لفظی عقلي ٣-: لفظی طبعي
٢- دلالت غير لفظی دري قسمه دئ ١-: غير لفظی وضعي ٢-: غير لفظی عقلي ٣. غ

لفظی طبعي په دلالت غير لفظی کي عقل لفظ ته احتیاج نه لري په دلالت لفظی کي عقل لفظ ته احتیاج لري لفظ عقل ته احتیاج لري زموږ مراد دلالت لفظی دې مثال **قال لی کیف انت قلت علیل** ای انَا علیل دلته اَنا مسند الیه حذف سو کیف انت ورباندي قرینه ده اوس عقل دمسند الیه پر وجود باندي دلیل دئ په واسطي دکیف انت او کیف انت لفظ دی له دې وجه یو دبله احتیاج سره لري په دې شعر کي چي مسند الیه حذف ده نو احتراز عن العبث دئ تخییل دعدول الی اقوی الدلیلین هم دئ (**او اختبار تنبیه السامع عند القرینة**) :

**دویم** حذف دمسند الیه ددې دپاره وي چي متکلم دمخاطب سامع څخه امتحان اخلي چي سامع بیداره دئ که بیداره نه دئ (**او مقدار تنبهه**) :

**دریم** حذف دمسند الیه ددې دپاره چي متکلم دسامع حال اندازه کوي چي څومره بیداره دئ څومره بیدراه نه دئ (**او ایهام صونه عن لسانک**):

**څلورم** حذف دمسند الیه ددې دپاره وي چي متکلم مخاطب ته وايي زما او ستا خوله مور داره ده خوند نه کوي چي ما او تا دا پاک مسند الیه په خوله ووايو ځکه مسند الیه دومره عظیم شخصیت دئ چي ما او تا ته نه ښايي چي په خوله يې ذکر کړو مثال تر الله را لاندي تر ټولو مخلوقاتو یو أعلی شخص سته دامت دپاره رحمت دئ نوم يې نه اخلو هغه شخص څوک دئ هغه شخص محمد ﷺ دئ اوس زما او ستا خوله ددې لائقه نه ده چي دده نوم په واخلو :

(**اوعکسه**) **پنځم**: حذف دمسند الیه ددې دپاره وي چي متکلم مخاطب ته وايي مسند الیه یو ذلیل مردار شی دئ خوند نه کوي چي ما او تا مسند الیه ذکر کړو او نوم يې واخلو مثال یو شخص خناس دئ وسواس دئ هغه څوک دئ هغه شیطان دئ .

**او تاتی الانکار لدی الحاجة** : شپږم حذف دمسند الیه دپاره دحصول دانکار په وخ
کي دحاجت مثلا تا دیو سړي غیبت وکړ اوس که دئ راسي تا ته وایي چي زما غیب
تاولی کاوو نو ته انکار کولای سي چي مثلاما دبل چا غیبت کوي او که ته دیو چاغیب
مخامخ وکړي نو بیا ته انکار نه سي کولای ځکه تا دمسند الیه نوم ذکر کړي :

## شپږ څلویښتم سبق حذف دمسند الیه له وجه دمعلوموالي

(**اوتعینه**) اووم: حذف دمسند الیه ددې وجي وي چي مسند الیه معلومه وي مث
مسند تر مسند الیه پوري خاص وي ددې مسند اسناد به غیر ددغه مسند الیه بل چا ته
کیږي له دې وجه مسند الیه حذف سي ځکه مسند الیه هر چا ته معلومه ده مثال ﴿خالق
يَشَاءُ فَعَّالٌ لِمَا يُرِيدُ﴾ دلته دخالق او دفعال اسناد بغیر دالله هیڅ چا ته نه صحیح کیږ
علامه تفتازانی پر دی ځای اعتراض کړی دی، علامه تفتازانی وایي دتعینه نکته
احتراز عن العبث کي داخله ده بیا یې دذکر کیدو ضرورت نه سته ځکه په احتراز عن الع
کي مسند الیه معلومه وی دقرینی دوجي له دې وجه ذکر دتعینه وروسته تر احتراز
العبث لغو او مستدرک دئ علامه تفتازانی جواب ورکوی تفتازانی وایي دتعینه د ذ
کیدو دوه غرضه دي اول غرض ذکر دتعینه دوروسته نکتې دپاره توطیه او تمهید
هغه وروسته نکته داده او ادعائه التعین دلته مسند الیه معلومه نه ده ته به مسند ا
معلومه وي دویم غرض خالق لما یشاء فعّال لما یرید دا مثال داحتراز عن العبث دې
ورکول په دې کي سوء الادب دئ یعنی بې ادبی ده له دې وجه دا نکته مي جلا ذکر کړه د
دپاره چي ما احتراز وکړ ځان مي وساتی دسوء الادب څخه او که دا نکته په احتراز
العبث کي داخله سي نو بیا دا معنی چي ذکر دالله عبث دئ او دا خبره کول سوء الادب
له دې وجه ما جلا نکته ذکر کړه ددې دپاره چي زه ځان وساتم دسوء الادب څخه :

(**او ادعائه التعین**) اتم : حذف دمسند الیه ددې وجي وي چي مسند تر مسند الیه پو
خاص نه وي ته به مسند تر مسند الیه پوري خاصوي یعنی ته به دا دعوه کوې چي دا مس

خاص دئ تر مسند الیه پوري مثال وَهّابُ الالوف عجیبه سړي دئ زرگونه خلگو ته ورکوي ډیر سخي دئ ډیر شجاع دئ که ته وایي دا څوک دئ نو دا خو معلومه ده سلطان ( پاچا) دئ بل څوک دا رنگه نه سي کیدای اوس زرگونه ورکول سخاوت غیرت دا تر سلطان پوري خاص نه دئ زرگونه ورکول سخاوت غیرت دا ټوله په بل چا کی هم مجودیدای سي لیکن زه دادعوه کوم چي زرگونه ورکول سخاوت غیرت دا تر سلطانه پوري خاص دئ **او نحو ذالک** دعلامه قزوینی عادت دادئ چي بعض حالونه نکات ذکر کړي چون کي دا خو متن دئ حالونه نکات دحذف ډیر دي نو قزوینی نحو ذالک ذکر کړ ددي دپاره چي باقی حالونه او نکات پکښي راسي لیکن علامه تفتازانی په مطول او مختصرکي څه نورحالونه نکات دحذف بیان کړي وروسته علامه تفتازانی **نحو ذالک)** ذکر کړئ ځکه حصر استقرایی دئ تفتازانی هغه نکات بیانوي ۱-: کله به مسند الیه حذف وي لضیق المقام و الفرصة دوجی دنه وخت مقام تنگ وی فرصت نه وي مثال ما او تا دواړه ښکار ته روان یو زه درته وایم غزالٌ هوسي ده ای هذا غزالٌ دلته مسند الیه حذف ده ځکه وخت نه سته دمسندا لیه دذکرکیدو یعنی دادئ ځای نه دئ چی سړي مسند الیه ذکر کړي ۲-: کله به متکلم مریض وي زړه یې نه غواړي چي خبري وکړي نو مسند الیه حذف کړي مسند ذکرکړی مثال کیف انت قلت علیل اي آنا علیل دلته مسند الیه حذف دئ ځکه دمتکلم زړه نه غواړي مریض دئ ۳-: کله به مقصد اتباع داستعمال وارده وي نو مسند الیه حذف کړي که مسند الیه ذکر سي اتباع داستعمال وارده نه راځي متل خرابیږي په عرف کي مثال یو متل دارنگه استعمال لیږي چي خبر ذکر وي مبتدا ذکر نه وي اوس که ما او تا دا متل وایو نو مبتداء به نه ذکر کوو ځکه که مبتداء ذکر کړو نو متل خرابیږی که مبتداء ذکر نه کړو نو محافظه دمتل راځي مثال باچا او زوی ښکارته ولاړه باچا ډیر تکان وکړه هوسی یی نه وویشته زوی په اول ټک هوسي وویشته باچا زوی ته وایي رمیَةٌ مِن غیر رام: دغه ویشتل دده غیر دویشتونکي دئ دلته مسند الیه حذف ده ای هذا رمیة من غیر رامٍ اوس که مسند الیه ذکر سي نو اتباع داستعمال وار ده نه راځي متل خرابیږي په پښتو کي ددې مثال دادي موږ او تاسو به په کوچنیوال بجلي کولی چي یو به پجي سو یوه بجله به ورپاته سوه نو ده به وویل نه ده بِجَل که یې بِجَل را وړه نه ده بدي که

یی بدي راوړه يعنی بجل خو ددې نه وه چي بجل يې راوړي وای مكر اوس يې بج
راوړي ۴- مرفوع علی سبيل الذم مثال منَ الشيطان الرجيم اي هو الرجيم ۵-: مرفو
علی سبيل المدح مثال بسم الله الرحمن الرحيم اي هو الرحيم دې ته نحات صفات مقط
وايي دلته حذف دمتبداء واجب دئ ځکه که ته مبتداء ذكر كړی بیا دې ته صفت مقطع
وایي:

## اوه څلویښتم سبق داحتراز عن العبث او دتخييل العدول علامې

(داحترازعن العبث او دتخييل العدول علامې:

اوله علامه مثال داسوال دئ دا جواب دئ که دا جواب جمله اسميه وه مسند اليه حذ
کیږي ددې دپاره چي احتراز عن العبث او تخييل دعدول راسي مثال وَأَصْحَابُ الشِّمَ
مَا أَصْحَابُ الشِّمَالِ فِي سَمُومٍ وَحَمِيمٍ﴾ اي هم في سموم وحميم بل مثال وَأَصحابُ اليمين
اصحابُ اليمين فی صدرٍ مَخضُود اي هم فی صدر مخضود بل مثال ﴿وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْحُطَ
نَارُ اللهِ الْمُوقَدَة﴾ اي هي نارُ الله الموقدة:

دويمه علامه شرط او جزاء جمله اسميه ده مبتداء پکښي ضمير دئ بيا مسند اليه حذ
کیږي مثال﴿ مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ﴾ اَیْ فَهُوَ لِنَفْسِهٖ﴿ وَمَنْ اَسَاءَ فَعَلَيْهَا﴾ اَیْ
عَلَيْهَا بل مثال﴿ وَإِنْ اَسَأْتُمْ فَلَهَا﴾ اَی فَهو لها:

دريمه علامه هر ځای چي بل اعراضيه راسي وروسته جمله اسميه راسي او په جمله اس
کي مسند اليه ضميروي له دې وجه مسند اليه حذف کیږي مثال﴿ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ﴾ ای
هي سولت بل مثال ﴿بَلْ عِبَادٌ مُكْرَمُونَ﴾ ای بل هم عباد مكرمون بل مثال بَلْ اَحْيَاءٌ
بل هم احياءٌ :

ځلورمه علامه : دقال يقول وروسته جمله اسميه راسي په جمله اسميه کی مبتداء ضمير وي يبا مبتداء حذف کيږي مثال﴿سَيَقُولُونَ ثَلٰثَةٌ﴾ اي هم ثلثة.

## ( اما حذفه ) اجراء حذف المسند اليه

وَاَصْحَابُ الْيَمِيْنِ مَا اَصْحَابُ الْيَمِيْنِ فِيْ سِدْرٍ مَّخْضُوْدٍ ( الواقعة ٢٨)

| پوښتنه: | جواب | حذف المسند اليه |
|---|---|---|
| ما اصحاب اليمين | فی صدر مخضود | هم فی صدر مخضود |
| وَمَا اَدْرٰىكَ مَاهِيَهْ، القارعة ( ١٠/١١) | نارٌ حامِيَةٌ | هی نار حاميه |
| مَا اَدْرٰىكَ مَا الْحُطَمَةُ ( الهمزة ٥/ ٦) | نَارُ اللّٰهِ الْمُوْقَدَةُ | هی نار الله الموقدة |
| مَا اَدْرٰىكَ مَا سِجِّيْنٌ ( المطففين ٨/ ٩) | كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌ | هو کتاب مرقوم |
| مَا اَدْرٰىكَ مَا عِلِّيُّوْنَ ( المطففين ١٩/ ٢٠) | كِتٰبٌ مَّرْقُوْمٌ | هو کتاب مرقوم |

| شرط | جزاء | حذف المسنداليه |
|---|---|---|
| مَنْ عَمِلَ صَالِحًا | فلنفسه | فهو لنفسه |
| وَمَنْ اَسَاءَ ( الجاثية ١٥) | فَعَلَيْهَا | فاساءته لها |
| مَنْ عَمِلَ صَالِحًا ( الجاثية ١٥) | فلنفسه | فهو لنفسه |
| وَاِنْ اَسَاْتُمْ | فَلَهَا | فاساءته لها |

(اسرائيل ٧)

## اجراء دبل امراضيه

المثال | حذف المسند اليه
---|---
بَلْ عِبَادٌ مُكْرَمُوْنَ | بل هم عباد
(الانبياء ٢٦) |
بَلْ اَحْيَاءٌ | بل هم احياء
(البقرة ١٥٤) |
بَلْ اَحْيَاءٌ | بل هم احياء
(آل عمران١٦٩) |

المثال | حذف دمسند اليه
---|---
وَقَالَتْ عَجُوْزٌ عَقِيْمٌ | آنا عجوز عقيم
(الذريات ٢٩) |
سَيَقُوْلُوْنَ ثَلٰثَةٌ | هم ثلثة
(الكهف ٢٢) |
وَيَقُوْلُوْنَ خَمْسَةٌ | هم خمسة
(الكهف ٢٢) |
وَيَقُوْلُوْنَ سَبْعَةٌ | هم سبعة
(الكهف ٢٢) |
وَلَاتَقُوْلُوْن ثَلٰثَةٌ | هم ثلثة
(النساء ١٧١) |
قَالَ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ | هي اساطير الاولين
(القلم ١٥) |

قَالَ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ — هي اساطير الاولين
( المطففين ١٣)

## او تعينه

المثال — حذف المسند اليه

عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ — الله
( الانعام ٧٣)

خَالِقٌ لِمَا يَشَاءُ — الله
( الانعام ٧٣)

فَعَّالٌ لِمَا يَشَاءُ — الله
(الانعام ٧٣)

## او عكسه

المثال — حذف المسند اليه

صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ — هم صم، هم بكم، هم عمي
( البقرة ١٨)

## اته ځلويښتم سبق ذكرالمسند اليه

*(واما ذكره فلكونه الاصل)*

مسند اليه ذكر كيږي له دې وجې چې ذكر دمسند اليه اصل دئ تر حذف علامه تفتازانى بل قيد ورسره لګوي هغه قيد دادئ ولا مقتضى للعدول عنه دمسند اليه ذكركيدل اصل دئ په داسي حال کي چې مقتضى دعدول به نه وي دذكر څخه **(او الاحتياط لضعف التعويل على القرينة)** مسند اليه ذكر كيږي احتياطا احتياط له دې وجي وي چي

اعتماد پر قرينه باندي ضعيفه وي (او التنبيه على غباوة السامع) متكلم مسند اليه ذكر كوي له دې وجي چي متكلم حاضرينو ته تنبيه وركوي پر دې باندي چي زما سامع غبي دئ سره ددې چي سامع فاهم دمسند اليه وي بالقرينه خو ليكن متكلم مسند اليه ذكر كوي له دې وجي چي متكلم حاضرينو ته تنبيه وركوي پر دې باندي چي زما سامع غبي دئ كه دويم وار زه ده ته مسند اليه ذكر نه كړم نو دې نه وربانديپوهيږي ( او زيادة الايضاح والتقرير ) كله كله مسند اليه ذكر كيږي ددې دپاره چي داخبره دمخاطب په دماغ كي ښه قرار ونيسي ښه ورته واضح سي مثال الله سبحانه دمؤمنانو په باب كي وايي ﴿ اولئك على هدى من ربهم﴾ دا خلگ پر ډير غټ هدايت دي دا يو حكم سو ﴿أولئك هم المفلحون ﴾ خاص دا خلگ كاميابه دي دا دويم حكم سو دا مقام دا تقاضا كوي چي داسي وويل سي اولئك على هدى من ربهم وهم المفلحون ولى يو وار مسند اليه ذكر سو ددويم وار ضرورت نه سته ولي پر يوه مسند اليه باندي سل (١٠٠) مسندونه عطف كيداى سي حمل كيداى سي خو الله ﷻ دويم واربيا مسند اليه ذكر كړ هغه مسند اليه اسم اشاره ثانيه ده دا دپاره دزيادة الايضاح والتقرير (اواظهار تعظيمه ) دمسند اليه دذكر كيدو ضرورت نه سته خو زه مسند اليه ذكر كوم ددې دپاره چي دمسند اليه دتعظيم اظهار وسي خبره دملا محمد عمر مجاهد رحمه الله عليه شروع ده نو دده دذكر كيدو ضرورت نه سته ولى بحث په ده كي شروع دئ ليكن ته بياهم وايي امير المؤمنين قال كذا ولى دده په نفس نوم كي عظمت سته :

(او اهانته) خبره دخيرک دمور شروع ده نو دده دذكر كيدو ضرورت نه سته ولي خبره په ده كى شروع ده خو زه مسند اليه ذكر كوم ددې دپاره چي دمسند اليه اهانت وسي :

(اوالتبرک بذكره) دمسند اليه دذكر كيدو ضرورت نه سته خو زه مسند اليه ذكر كوم ددې دپاره چي زه په مسند اليه باندي بركت حاصلوم مثال محمد ﷺ يقول كذا :

(اواستلذاذه ) زه مسند الیه ذکر کوم ددې دپاره چې زه خوند پر اخلم مثال الحبیب حاضرٌ:

(او بسط الکلام حیث الاصغاء مطلوب نحو هي عصای) کله کله مسند الیه ذکر کیږي ددې دپاره چي کلام اوږد سي په هغه مکان کي چي غوږ اینبول مطلوب وي ولي دعاشق او معشوق خبره شروع وي نو عاشق ته دمعشوق خبره ډیر خوند ورکوي نو دی کلام اوږد کړی الله پاک موسی علیه السلام ته وایي ﴿ وَمَاتِلْكَ بِيَمِيْنِكَ يَامُوْسَى﴾ نو موسی علیه السلام شروع سو ﴿قَالَ هِيَ عَصَايَ اَتَوَكَّؤُ عَلَيْهَا وَاَهُشُّ بِهَا عَلَى غَنَمِيْ وَلِيَ فِيْهَامَارِبُ اُخْرَى﴾ ترجمه نو وویل (موسی) دا زما همسا ده چي زه تکیه کوم پر دې او وهم په دې سره (پاڼي دونی چي توی سي) پر خپلو پسونو او دې ما ته په دغه کښي مطالب نورهم :

علامه تفتازانی په مختصر کي دمسند الیه دذکر کیدو دپاره څلور نور نکات وایي وقد یکون الذکر للتهویل او التعجب اوالاشهاد فی قضیة او التسجیل علی السامع حتی لا یکون له سبیل الی الانکار) ( اوالتهویل) کله کله مسند الیه ذکر کیږي دپاره دتخویف یعنی په لفظ دمسند الیه کي رُعبَ او دبدبه وي یعنی متکلم مسندا لیه ذکر کوي ددې دپاره چي زما پر مخاطب باندي رعب او دبدبه راسي مثال لوي ملا صاحب ما ته دیو شي حکم وکړ چي دغه کار وکړي ماونه کړي نو متکلم ما ته وایي امر المؤمنین یأمرک بکذا لوی ملا صاحب تاته ددې کار حکم کړی دئ داوکړه لوی ملا صاحب عام سړي نه دئ لوی ملا صاحب غټ سړي دئ دا کار وکړه ګوره دمسندالیه دذکر کیدو ضرورت نه سته لیکن مسند الیه ذکر کوی دپاره دتخویف ( او اظهار التعجب ) کله کله مسند الیه ذکر کیږی دپاره ددې چی اظهار دتعجب وسي محشی وایي صبیٌ قَاوَمَ الاسدَ کوچنی مقاومت وکړي داسد سره دلته تعجب دقاوم الاسد څخه معلومیږی لیکن اظهار دتعجب دمسندالیه څخه معلومیږی هغه مسند الیه صبې دئ ( اوالاشهاد فی قضیة ) قضیه فیصله ته وایي په فیصله کي دزید بحث شروع دئ دمسند الیه دذکر کیدو ضروت نه سته

ځکه بحث په زید کي شروع دئ خو زه مسند الیه ذکر کوم دپاره دشاهدي ورکولو
فیصله کي مثال زید باع کذا بکذا (اوالتسجیل علی السامع حتی لا یکون له سبیل ال
الانکار ) قاضی فیصله وکړه دیوچا په حق کي او دا فیصله نوټ سي رجسټیر سي مثال
فیصله دزید په حق کي ده ماته ګوره اوس قاضی ما ته وایي ایا زید ددغه کار ددغه خبر
اقرار دارنګه کوي نو ما وویل نعم زید هذا اقرّ علی نفسه هکذا دلته مسند الیه ذکر
ددې دپاره چي دی لاره پیدا نه کړي وانکار ته.

## نه ځلویښتم سبق تعریفه بالاضمار

*(واماتعریفه فبالاضمار لان المقام للمتکلم اوالخطاب اوالغیبة)*

ذکردی دئ لکه جنس تعریف تنکیر دئ دي لکه نوعه دذکریوه نوعه تعریف دئ په نو
کي دنن صنفونه دي دتعریف ٧-: صنفونه دي ٧-: قسمونه دي خو تعریف خپله و
ته داسي دئ لکه نوعه (**واماتعریفه فبالاضمار**: په اما تعریفه فبالاضمار کي د
خبري دي یوه خبره داده :

**پوښتنه:** مسند الیه معرفه کول دا دواضع کار دی مسند الیه په ضمیر سره معرفه را
دا دمتکلم کار دی دمتکلم کار دواضع ذکار علت نه سي کیدای ؟

**جواب:** علامه تفتازانی جواب ورکوي ای ایراد المسند الیه معرفة: ایراد دمسند ا
معرفة دمتکلم کاردئ له دې وجه دواړه کارونه دمتکلم سوه:

دویمه خبره داده **پوښتنه:** په مسند الیه کي قزوینی تعریف دمسند الیه مقدم کړ پر تن
دمسند الیه باندي په مسند کي قزوینی تنکیر دمسند مقدم کړی پر تعریف دمسند بان
دا ولي څه وجه ده :

جواب: اصل په مسند الیه کي تعریف دئ اصل په مسند کي تنکیر دئ ولي مسند ا
داسي دئ لکه خر مسند داسي دئ لکه بار چي خر نه وي بار نهورباندي باریږي

مسند اليه نه وي مسند نه ورباندي حمل كيږي يو وار به مسند اليه موجود وي بيا به مسند ورباندي حمل كيږي له دې وجه يو وار به ته مسند اليه پيژنې بيا به حكم ورباندي كوې اصل په مسند كی تنكير دئ ځكه حكم پر معلوم باندي فائده نه كوي :

**دريمه خبره: واما تعريفه فبالاضمار** دنفس تعريف فائده تا بيان نه كړه چې ددې څه فائده ده دوهم سوال: قانون دادئ چې دامّا او دفاء په مابين كي فصل واجب دي تاځنګه كاركړي دئ دفاء دمدخول ځای لان المقام دئ بالاضمار دفاء دمدخول ځای نه دئ ځكه تعريفه فبمالاضمار دا مجموعه مبتداء ده فاصله ده خو دلته مبتداء فاصله نه ده ولي متعلّق او متعلِّق جلا دئ دخبري خلاصه داده دفاء مدخول لان المقام دئ دفاء مدخول بالاضمار نه دئ:

عبدالحكيم سيالكوټی ددواړو سوالونو يو جواب وركوي عبدالحكيم سيالكوټی وايي اما تعريفه فبا لاضمار دادكورنی څخه دعطف مفصل علی مجمل دئ دئ وايي دفبالاضمار وروسته دا ټول عبارت تفصيل جوړيږي دمجمل عبارت څخه هغه مجمل عبارت دلته پروت دئ په فبالاضمار كي فاء عاطفه ده كه فاء دجواب دپاره وايی بيا به تا اعتراض كولای دلته فاء دجواب دپاره نه ده دلته فاء عاطفه ده فاء پر هغه مجمل عبارت پرته ده تقدير دعبارت دادئ واما تعريفه فلا فادة المخاطب اَتمّ فائدة فبالاضمار (**لان المقام للمتكم** ځكه مقام دمتكلم دئ په **اَنَا ضَرَبْتُ** كي **دانْتَ ضَرَبْتَ** مقام دمخاطب دئ **دهُوَ ضَرَبَ** مقام دغائب دئ (**واصل الخطاب ان يكون لمعين** ) انت ضمير واضع وضع كړي دی دمخاطب معين دپاره ځكه دی وايي اصل په خطاب كي دادې چي مخاطب به معين وي (**وقد يترک الی غيره ليعم كل مخاطب** ) كله كله انصلاخ دمخاطب معين څخه وسي وغير معين ته دپاره ددې چی خطاب عام سيٰ وهر مخاطب ته مثال الله پاک نبي عليه السلام ته وايی ﴿ لِوِاطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَّلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا ﴾ ترجمه كه ته ورپورته سي دوي ته خامخا به ته مخ ګرځوی له دوی څخه په تيښته او خامخا به ته

دک کړل سي له دوی څخه له بيري دا خطاب په اصل کي نبی عليه السلام ته دئ اوس
مخاطب عام دئ هر مخاطب ته على سبيل البدل بل مثال ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُو رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ﴾ ترجمه که چيري ته ووينی هغه وخت چي مجرمانو سرونه ټيټ کړي
وي دخپل رب په مخکي اَی تناهت حالهم فی الظهور ددوي حال به په ظهور کي انتهاء
رسيدلي وي په اصل کي خطاب محمد عليه السلام ته دئ اوس هر مخاطب ته دئ ځکه
دقيامت په ورځ ددوی حال يوازی نبي عليه السلام ته ظاهره نه وي بلکي ټولو ته ظاهر
وي ( فلا يختص به مخاطب نه دئ خاص په دغه خطاب سره مخاطب دون مخاطب فلا
يختص بها رؤية راءٍ دون راءٍ :

که دضمير په اړه معلومات غواړي نو وه ګوري التقرير اليسير للنحومير چي هغه تقرير
دئ من افادات محمد اجمل خان حفظه الله.

## اجراء امثلة التكلم

انِّیْ اَنَا اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِیْنَ ( القصص ۳)
وقوله على السالم ان افصح العِرب والعجم ولا فخر لی وقوله علی رضي الله عنه انا
الذي سمتنی امي حدرة :
وقوله عليه السلام انا النبي لاکذب ، انا ابن عبدالمطلب

## اجراء امثلة الخطاب

کقوله عليه السلام انت مني بمنزلة هرون من موسی

وکقول الشاعر : وانت الذي اَخْلفتَنی ما وعدتنی واشمت بی مَن کان فيک يلومُ :
فائده: دغائب ضمير مرجع دري قسمه ده :
لفظی معنوي حکمي
مرجع لفظي پر دوه قسمه ده حقيقي ، تقديري :
۱. مرجع لفظی حقيقی: حقيقي ديته وايی چي مرجع په لفظ اورتبه دواړو کي مخ
ويی مثال ضَرَبَ زيدٌ غلامَهُ :

٢- مرجع لفظی تقدیری دېته وایي چې مرجع په لفظ کی موخره وي خو په رتبه کي مخته وي مثلا ضَرَبَ غلامَهُ زیدٌ مرجع معنوی پر دوه قسمه ده :

١- قسم مرجع معنوی هغه ده چې لفظ دال علی المرجع وي مثال اِعْدِلُوا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَقْوی:

دلته دهو ضمیر راجع دئ وعدل ته عدل مخته نه حقیقة ذکر دئ نه تقدیرا ذکر دئ خو اعدلوا دال دئ پر عدل باندي ځکه په هر فعل کي خپله مبده وي :

٣-: قسم مرجع معنوی هغه ده چې دسیاق او دفهوا دکلام څخه فهمول کیږي مثال وَلِاَبَوَیْهِ لِکُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا السُّدُسُ: دلته داَبَوَیْهِ ضمیر مرجع میت دئ دسیاق دکلام څخه معلومیږي ځکه بحث په میراث کي دئ :

## اجراء المرجع اللفظي

| المثال | الضمير | المرجع | القسم |
|---|---|---|---|
| وَعَصَیٰ اٰدَمُ رَبَّهُ (طه١٢١) | ه | آدم | لفظي حقیقي |
| وَالشَّمْسُ تَجْرِیْ (یس٣٨) | هي | الشمس | // // |
| وَنَادٰی نُوْحٌ ابْنَهُ (هود ٤٢)(هود٤٢) | ه | نوح | // // |
| فَاَوْجَسَ فِیْ نَفْسِهٖ خِیْفَةً مُّوْسٰی (طه٦٧) | ه | موسی | لفظی تقدیري |
| وَلَایُسْئَلُ عَنْ ذُنُوْبِهِمُ الْمُجْرِمُوْنَ (القصص٧٨) | هم | مجرمون | // // |
| لَایُسْئَلُ عَنْ ذَنْۢبِهٖ اِنْسٌ وَّلَاجَانٌّ (الرحمن ٣٩) | ه | انس جان | // // |

## اجراء المرجع المعنوي

| المثال | الضمير | المرجع | القسم |
|---|---|---|---|
| اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰی (المائدة ٨) | هو | العدل | القسم الاول |
| فَارْجِعُوْا هُوَ اَزْکٰی لَکُمْ (النور ٨) | هو | الرجوع | // // |

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ : ( الانعام ١٢١ ) | ہ | الأكل | // // |
| حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ ( ص ٣٢ ) | هى | الشمس | القسم |

الثانى

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ ( الواقعة ٨٣ ) | هى | النفس | // // |
| إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ( القيامة ٢٦ ) | هى | النفس | // // |

## اجراء المرجع الحكمى

| المثال | الضمير | القسم | الجملة المفسرة |
|---|---|---|---|
| قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ ( الاخلاص ١ ) | هو | ضمير الشان | الله احد |
| لٰكِنَّا هُوَ اللّٰهُ رَبِّي ( الكهف ٣٨ ) | هو | ضمير الشان | الله ربى |
| إِنَّهُ مَنْ يَتَّقِ وَيَصْبِرْ ( يوسف ٩٠ ) | ہ | ضمير الشان | من يتق ويصبر |
| فَإِنَّهَا لَا تَعْمَى الْأَبْصَارُ ( الحج ٤٦ ) | ها | ضمير القصة | لاتعمى الابصار |
| يَا بُنَيَّ إِنَّهَا إِنْ تَكُ ( لقمان ١٦ ) | ها | ضمير القصة | ان تك |
| أَنَّهُ مَنْ يُحَادِدِ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ ( التوبة ٦٣ ) | ہ | ضمير الشان | مَن يحادد الله |

## اجراء الخطاب العام

| المثال | الضمير | المراد به |
|---|---|---|
| وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ ( البقرة ٢٥ ) | انت | عموم |
| وَإِذَا رَأَيْتَ ثَمَّ رَأَيْتَ نَعِيمًا وَمُلْكًا كَبِيرًا ( الانسان ٢٠ ) | انت | عموم |
| وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ فَزِعُوا فَلَا فَوْتَ ( سبأ ٥١ ) | انت | عموم |
| وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُو رُءُوسِهِمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ( السجدة ١٢ ) | انت | عموم |
| وَتَحْسَبُهُمْ أَيْقَاظًا ( الكهف ١٨ ) | انت | عموم |

## پنځوسم سبق تعریفه بالعلمیة

(وبالعلمیة لاحضاره بعینه فی ذهن السامع ابتداء باسم مختص به نحو قل هو الله احد) په **بالعلمیة** کي یاء تاء مصدریه دي مصدر متعدي دئ مصدر متعدي متضمن وي معنی لره دجعل نو دا معنی **جعلهُ علماً**:

**پوښتنه:** مسند الیه علم جوړول دواضع کاردئ احضار دمسند الیه په ذهن دسامع کي دمتکلم کاردئ له دې وجه دیوه کاردبل دکار دپاره علت نه سي کیدای؟

جواب: علمیت مصدر متعدي دئ په معنی دجعله علمًا دئ دجعله علما څخه مراد ایرادهُ علما دئ ځکه جاعل حقیقي واضع دئ متکلم نه دئ ایراده علما دمتکلم کار دئ لاحضاره هم دمتکلم کاردی له دې وجه دواړه دمتکلم کارونه دي:

**(لاحضاره**: لام جار احضار مصدر دئ مضاف دئ ومفعول ته داحضار فاعل متکلم دئ ده و ضمیر مفعول به ذوالحال **بعینه** په اعتبار دمتعلق چی متلبسا دئ دا به حال سي دپاره دذوالحال نو دا معنی مسند الیه معرفه راوړل په علم سره داددې دپاره چي متکلم احضار دمسند الیه وکړي په داسی حال کي چي مسند الیه به متلبس وي بِشَخصِه متکلم به احضار دمسند الیه کوی په ذهن دسامع کي اول وار په داسي اسم چي خاص وي په مسند الیه پوری، مخکی تر دې چی د**بعینه** دقید فائده ووایو، یو وار راسی دعلم تعریف واوروئ دعلم تعریف وهو **ما وضع لشئ معین مع جمیع مشخصاته**، علم هغه لفظ دئ چي وضع کړل سوي وی دپاره دشي معین سره دملحوظ والی دټولو مشخصاتو:

**پوښتنه:** علم په حین دولادت کي حقیقت دئ علم په حین دشباب کي په حین دشیخوخت کي مجاز دئ ځکه تبدّل دمشخصاتو راغلی مجاز وایي دې ته چی لفظ مستعمل سي په غیر دما وضع له کي؟

جواب: غیر المبدّلة، مشخصات دوه قسمه دي ۱-: مشخصات مبدله ۲-: مشخصا
غیر مبدله زمونږ مراد مشخصات غیر مبدله دي :

پوښتنه: داسي مشخصات نه سته چي تبدیل دئ نه وي پکښي ګوره مراد د مشخصا
شخه پوزه لاسونه پښې سترګي دي دغه مشخصات دسړي په حین دولادت کي یو رن
وي دغه مشخصات په حین دشباب په حین دشیخوخت کي بل رنګه وي له دې وجه دا
مشخصات نه سته چي تبدیل دئ پکښي نه وي خامخا تبدیل پکښي راځي نو په کار
چي په حین دولادت کي حقیقت سي په حین دشبابت او شیخوخت کي مجاز سي ځکه تبد
په مشخصاتو کی راغلی او مجاز وایی دې ته چي مستعمل سي په غیر دماوضع له کي؟

جواب: مشخصات غیر مبدله دوه قسمه دي یو قسم هغه مشخصات دی چي تمیز دما
شخه راولی بل قسم هغه مشخصات دي چي تمیز دماعدا شخه نه راولی زمونږ
مشخصات مراد دي چي تمیز دماعدا شخه راو لی له دې وجه دغه علم چي نیک دي
دوست دي داچي واضع دده دپاره اول وار وضعه کړي اوس دغه علم په حین دولادت
په حین دشبابیت کي په حین دشیخوخت په ټولو احوالو کی تمیز دمعدا شخه راولی که
هم تبدّل په مشخصاتو کي راغلي دئ :

**لاحضاره بعینه**: طالبانو دعین ډیري ترجمې کیږي خو دلته عین په معنی دشخص
دئ دبعینه په قید سره احتراز راغلي دئ دهغه مسندالیه شخه چي احضار یې با
جنسه وی کله کله متکلم احضار دمسند الیه په ذهن دسامع کي وکړي په اسم جنس
لیکن دغه اسم جنس تمیز دماعدا شخه نه راولی مثال جاءنی رجل عالم

پوښتنه: اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ لفظ الله مبتداء لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ خبر : لفظ الله مسند ال
تاوویل چي زه مسند الیه عَلَم راوړم ددغه دپاره لاحضاره بشخصه الله سبحانه دا
ذات دئ چي هغه شخصیات نه لري دمخاطب ذهن دخدای پر ذات باندی احاطه ن
کوای تا خو وویل چي علم مسند الیه راوړم ددغه دپار چي بشخصه دسامع په ذهن
حاضر سي محشی جواب ورکړي دئ چی شخصیت کله دمفهوم جزی په ذریعه سر

دماغ کي حاضر يږي کله دمفهوم کلی په ذريعه سرهٔ داسي مفهوم کلی چي هغه منحصر وي په فرد واحد کي نيک چي زه مسند اليه جوړ کړم نو دنيک جزی ذات ستا ذهن ته ستا دماغ ته راځي لفظ الله چي زه مسند اليه جوړ کړم نو دالله سبحانه جزی صورت ستا ذهن ته نه راځي خو البته دالله سبحانه چی صفات دي مثلا چي دا دی ذات دئ چي رب العلمين دئ داداسي ذات دئ چي الرحمن الرحيم دئ داداسي ذات دئ چي **ملك يوم الدين** دئ داجبار دئ داقدوس دئ داسبوح دئ دايومفهوم کلی دئ دا اوصاف به راکوړه سي پر دا مفهوم کلی باندي پر دارکم ستا دماغ ته درځي داهم احضار بشخصه دئ دخبري خلاصه داده احضار دمسند اليه په ذهن دسامع کي کله په وجه جزی سره وي لکه زيد کله په وجه کلی سره وي داسي کلی چي منحصر وي په فرد واحد کي لکه لفظ دالله دغه صفات چي رازق دئ خالق دئ قهّار دئ ملک يوم الدين دئ داټول صفات ترالله پوري خاص دئ لهذا الله دسامع په ذهن کي راځي په وجه کلی سره اوتميز يی دټول ماعدا څخه راځي **فى ذهن السامع ابتداءً**: کله کله احضار کيږي ثانيا کله کله احضار کيږي اولا مثال **جاءنى زيدٌ هو راكبٌ**: خبره په **هو راكبٌ** کي ده **هو** مبتداء مسند اليه **راكبٌ** خبر د**هو** په ذريعه باندي احضار دمسند اليه ستا دماغ ته وسو ليکن دا احضار ثانيا دئ ځکه ته به د**هو** ضمير مرجع ته ځی چي هغه مرجع زيد دئ نو احضار دئ ثانيا علامه تفتازني وايي دابتداء په قيد سره جاءنی زيد وهو راکب ووتی ځکه په دی مثال کی احضار دمسند اليه بشخصه دئ ليکن ثانيا نه اولا **باسم مختص به**: احضار دمسند اليه بشخصه دا به په ذهن دسامع کی اول وار په دي نوم وی چي دا به خاص په مسند اليه پوري وي دمختصر المعانی محشی دلته اعتراض کړي دي ماته گوری مثلا دادنيک زوی دئ داددوست زوی دئ دا دملاخټ گل زوی دئ دا دملا خدو زوی دئ دهريوه نوم زيد دئ ما ووېل جاءني زيد دلته زه احضار دمسند اليه چي زيد دئ په ذهن دسامع کی کوم بشخصه ليکن دا احضار باسم مختص به نه دئ ولی دا نوم درده پوري خاص نه دئ ځکه دا نوم دملا خټ گل او دملا خدو او دملا

نیک زوی ته هم شامليږي علامه تفتازني يو قيد ورسره ايږدی بحيث لا يطلق باعتبار هذالوضع على غيره نو دا معنی دانوم به په مسند اليه پوري خاص وي په دي شان چي اطلاق به يې په اعتبار ددغه وضعي سره نه کيږي پر غير باندی که څه هم دده اطلاق پر غير کيږي په اعتبار دوضعي اخر سره ملا خدو چي دزيد نوم دخپل زوی دپاره وضعه کړي نو په اعتبار دداغه وضعي سره دزيد اطلاق دنيک پر زوی نه کيږي علامه تفتازني دلته عجيبه نکته وايی ډير کره ته ديو شی دذکر کيدو دپاره مثلا دومره عبارت پکار وي ليکن دی ددغه شی دذکر کيدو دپاره يوڅه عبارت زيات کړي يعني عبارت دومره کافی وي ليکن دی دومره عبارت راوي نو خلک پر دي سړيَ باندي اعتراض کوي دلته هم **وبالعلمية لاحضاره باسم مختص به** داعبارت کافی دئ د**بعينه في ذهن السامع** ابتداءً دئ قيوداتو هيڅ ضرورت نسته دا قيودات قزويني دڅه دپاره وايی. علامه تفتازاني ددی جواب ورکوی: تفتازاني وايي ډير کرته دومره عبارت راوړل کيږي چي ددي شي واقعي او نفس الامر حالات بيانوی که څه هم په لږ عبارت باندي کار کيږي څه معنی دا معنی لاحضاره باسم مختص به خو کار کوی ليکن دا په واقع او نفس الامر کي دا کار کوی چي تا کم شی په اسم مختص به سره راوړي هغه به بعينه وي هغه به في ذهن السامع وی هغه به ابتداءً وي يعنی دی چي په واقع او نفس الامر کی کوم کار ونه کوی هغه يی ظاهرًا ورسره بيان کړه نحو﴿قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ﴾ووايه ای محمده خبره خودی ده الله يو دئ: په قل هو الله احد کی يو څو بی خونده ترکيبونه کيږي نو په دغه صورت کي زموږ مثال نه جوړيږي خوندور ترکيب دادئ هو ضمير شان الله مسند اليه مبتداء احد خبر مبتداء سره دخبره دا به تفسير سي د**هُو** علامه تفتازاني په مختصر کي په لفظ الله کي دوی خبری کوی يوه خبره به جوړکي بله خبره په وضعه کي اوله خبره **الله** په اصل کي **اَلاِلٰهُ** وو ولی **اِلٰهٌ** مطلقا معبود ته وايی چي ته خاص معبود اخلی نو الف اللام به پر داخلوی **حُذِفَتْ الهمزةُ وعُوِّضت عنها حرف التعريف** محشی پر علامه تفتازني باندي ډير زبردسته اعتراض کړي دئ اعتراض

شرط په عوض کي دادئ چي معوض عنه به ځي عوض به راځي دلته حرف التعریف قبل التعویض دئ دوهم اعتراض دلته جمعه لازمیږي دعوض او معوض قبل حذف الهمزة. ځکه په اَلْاِلٰهَ کی همزه او حرف التعریف دواړه موجود دي. اول جواب دادئ:

دلته حرف التعریف عوض نه دئ دوهم جواب: عَوَّضَ يُعَوِّضُ تعويضاً : تعویض دوی معنی ګاني ورکوي 1 دده پر ځای ذریدل 2 دده پر ځای راوړل . که دتعویض څخه دا معنی واخلی چي دده پر ځای راوړل نو بیا عوض او معوض جمعه کول ناجائز دي که دتعویض څخه د امعنی واخلی چي دده پر ځای دریدل بیا ناجائز نه دي مور وایو همزه ولاړه حرف تعریف دده پر ځای ودریدی مور دی نه وایو چي همزه ولاړه حرف تعریف دده په عوض کي راغلی مثال دکلا شینکوف جابه له مرمیو ډکه ده تا مرمی ورتیره کړه او په زر به دی ودروي هر کله چي تاټک په وکړي نو هغه مرمی ولاړ سی بله مرمی ددی مرمی پر ځای و دریږي الی اخره الف اللام حُبَّهُ حُبَّهُ دارکم دئ چی همزه ولاړه سي الف اللام دهمزي پر ځای ودریږي دوهمه خبره : بعض علماء وایي لفظ الله وضع سوی دئ دذات معین دپاره بعض علماء وایی لفظ الله وضع سوی دئ دمفهوم کلی دپاره لیکن دا مفهوم کلی منحصر دئ په فرد واحد کي : لفظ الله چي دکم ذات دپاره وضع سوی دئ دهغه تعریف دادئ هو علم للذات الواجب الوجود الخالق للعالم : مفهوم دري قسمه دئ ۱ واجب ۲ ممتنع ۳ ممکن ۱ واجب دیته وایي چي دعدم څخه یی محال پیښږي ۲ ممتنع دیته وایی چي وجود یی محال وی ۳ ممکن دیته وایی چي نه یی وجود محال وي نه یی عدم محال وی.

علامه تفتازنی وایی بنه خبره دا ده چی لفظ الله دذات معینه دپاره وضعه سی نه دمفهوم کلی دپاره لَااِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ کلمه دتوحید ده که چیري الله اسم دمفهوم کلی سي بیا به داکلمه افاده دتوحید ونه کړي ځکه **لانَّ الكلي من حيث هو كلي يحتمل الكثرة .**

## یو پنځوسم سبق کله به مسند الیه معرفه وي دتعظیم او

*(اوتعظیم اواهانة)*

کله به مسند الیه معرفه په علم سره وي ددې دپاره چي متکلم په دې علمیت سره قصد تعظیم او اهانة وي بیا عام تر دې شخص وي که لقب وي مثال دلقب لکه داشرف علی تهانوي رحمة الله لقب حکیم الامت وو جاءنی حکیم الامة دا مثال دتعظیم دئ داهانت مثال د سړي نوم دخیرک مورده جاءنی خیرک علامه تفتازانی دتعظیم او اهانت مثالونه ورکړي دي رکِبَ علی وَهَرَبَ معاوية علی چي څنګه پر اوښ یا پر اس سپور سو دجنګ دراوتلو دپاره هَرَبَ معاویه: معاویه رضي الله تعالی عنه وتښتیدی رکِبَ علی دلته دنفس رکِبَ څخه تعظیم دعلي معلومیږی هَرَب معاوية دلته دنفس هرب څخه اهانت دمعاویه معلومیږي لیکن دنفس علی څخه تعظیم معلومیږي ځکه علی دعُلو څخه دی علو معنی اوچت والی، دنفس معاویه څخه اهانت معلومیږي ځکه معاویه دعَوی څخه دی عوی دلیوه اواز ته وایی، شیخ الهند رحمه الله علیه په حاشیه کي وایي دا مثالونه دسوء ادب څخه خالی نه دي له دې وجه دا ښه کار نه دئ چي علامه تفتازانی دا مثالونه ورکوي شیخ وایي که دا دنبي علیه السلام دملګرو نوم نه سي عام نوم سي بیا هم شائبه دسوء ادب سته ښه خبره داده چي دخیرک او دحکیم الامة مثال ورکول سي :

او کناية : کله به مسند الیه معرفه په علم سره وي ددې دپاره چي په علم سره کنایه وسي ومعنی لازمي ته مثال ﴿تَبَّتْ يَدَآ أَبِي لَهَبٍ﴾، دابي لهب دوې معناوي دي ۱-: معنی لغوي ۲-: بله معنی لازمي معنی لغوي ملابسة النار ملازمة النار خاوند دلمبو دا دابولهب معنی لغوی ده او دامعنی ملزومه ده ددې سره جهنمي کیدل لازم دی دا کنایه ده کنایه دې ته وایي چي یو وار به ذهن دلفظ څخه ملزوم ته بیا یې بیا به دملزوم څخه ذهن بیایي ولازم ته ذکر ملزوم چي ملازمة النار ملابسة النار دئ اراده دلازم چي جهنمي کېدل دي دلته مسند الیه معرفه په علم سره ده ددې دپاره چي په علم سره کنایه وسي ومعنی لازمي ته هغه معنی لازمي جهنمي کیدل دئ دابي لهب ددئ لفظ دوی معنی ګانی دي یو دده معنی لغوي بل دده معنی مصداقي ملازمة النار ملابسة النار دا معنی لغوي ده معنی مصداقي دلته غلط نه سی چي ذهن دمعنی مصداقي څخه یوسي ومعنی لازمي ته نو ته

به ذهن دمعنی مصداقي څخه معنی لازمي ته نه بیایی له دې وجه ته به ذهن دمعنی لغوي څخه معنی لازمي ته بیایي موږ علامه تفتازانی ته وویل چې کنايي دې ته وايي چې ذهن دمعنی مصداقي څخه ومعنی لازمي ته ولاړ سي علامه تفتازانی وايي نه وهذا القدر کافٍ دکنايي دپاره دا کافی ده چې دمعنی لغوی څخه معنی لازمي واخیستل سی، بعضی علماء وايي کنایه دیته وایی چې ذهن دلفظ څخه دارک معنی لازمي ته یوسي مثال ته دحاتم څخه ذهن وجوادٌ ته یوسې علامه تفتازانی درې ردونه ورباندی وکړه:

**اول رد:** دا استعاره ده کنایه نه ده ځکه کنايه دې ته وايي چې دلفظ څخه ذهن یوسي وملزوم ته دملزوم څخه ذهن یو سي ولازم ته:

**دویم رد:** که دا کنايي سي نو په کار ده چې ذکر ابو جهل سي مراد ورڅخه دولند ترمپ یا بوش کافر سي او حال دادئ چې دې ته ځوک کنايي نه وايي:

**دریم رد:** که دا کنايه سی چې دلفظ څخه معنی مصداقي مه اخله معنی لازمي اخله نو بیا چې سکاکی علامه تفتازانی دا مثال دکنایه ﴿تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ﴾ دلته دابي لهب څخه اکا دمحمد علیه السلام مراد دئ دابي لهب څخه بل ابي لهب نه دئ مراد که کنایه ستارکم سي نو بیا به دابي لهب څخه بل ابي لهب مراد کیدای سي او حال دادئ چې دلته دابي لهب څخه اکا دمحمد علیه السلام مراد دئ بل څوک نه دئ:

(او ایهام استلذاذه) کله به مسند الیه معرفه وي په علم سره ددې دپاره چې متکلم دمخاطب په ذهن کي وهم وراچوي چې دلته زه پر علم باندي خوند اخلم لکه امرء القیس وايي بالله یا ضبیات القاع قلن لنا لیلای منکنّ ام لیلی من البشر) قسم درکوم اي دځنګله هوسیانو ما ته ووایاست زما لیلي ستا سو له جنسه ده او که زما لیلي دبشر له جنسه ده دلته ام هي من البشر په کار وو لیکن دې وايي ام لیلی من البشر دا دپاره دخوند اخیستلو په علم باندي:

( اوالتبرک به) کله به مسند الیه معرفه وي په علم سره ددې دپاره چې متکلم پر علم باندي برکات حاصلوي مثال الله الهادی ومحمد الشفیع ( او نحو ذالک کالتفاول والتّطیّر):

کله به مسند اليه معرفه وي په علم سره دپاره دنيک پالي نيولو مثال ستاکورته بنه عالم
درغلی ته خپل کور والا ته ووايي نن زما او ستا کور ته برکات حاصليږي ځکه دومره
ښايسته عالم راغلی دئ کله به مسند اليه معرفه وي په علم سره دپاره دبد پالي نيولو
مثال ستا کور ته غلط سړي درغلی تا خپل کور والا ته وويل نن برکات نه ستهٔ ځکه غلط
سړي راغلی دئ:

۱- وبالعلمية ۲- او تعظيم ۳- اهانة ۴- تلذذ ۵- تبرک :

## اجراء العلم

قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ ( الاخلاص ۱)

وَاِذْيَرْفَعُ اِبْرَاهِيْمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَاسْمَاعِيْلُ ( البقرة ۱۲۷)

وَلَمَّا رَجَعَ مُوسىٰ اِلىٰ قَوْمِهٖ ( الاعراف ۱۵۰)

اِذْقَالَ يُوْسُفُ لِاَبِيْهِ (يوسف ۴)

۲- حضرت صلاح الدين : جاءني حكيم الامة :
ركب علي:

۳- جاء صَخر: وذهب تَأبّطَ شرًّا: ياماته دخيرک موړ راغله :

۴- كقول الشاعر بالله يا ظبيات القاع قلن لنا :
ليلایَ منكنّ ام ليلایَ من البشر

۵-: الله الهادی الله ربی الله حسبی
الله اکرمنی فی جواب: هل اکرمک الله

## تعريفه بالموصلية

(وبالموصولية لعدم علم المخاطب بالاحوال المختصة به سوى الصلة كقولک الذی كان
معنا امس رجل عالم) کله به مسند اليه معرفه وي په موصول سره ددې دپاره چې
مخاطب ته دمسند اليه نوم نه وي ورمعلوم مثال زما او ستا سره پرون يو سړي ناست وو

تا ته وايم دپرون سړي څوک وو چي پرون زما او ستا سره ناست وو نو دی وايی **الذی کان معنا امس رجلٌ عالمٌ** هغه څوک چي پرون زما اوستا سره وو هغه عالم وو:

**(او استهجان التصریح)** کله به مسند الیه معرفه وي په موصول او صله سره ددي دپاره چي متکلم ته دمسند الیه نوم اخیستل خوند نه ورکوي متکلم دا نوم اخیستل کریه گڼي په تولهٔ قران کي دښځي نوم نه سته غیر دمریمي دنامه نور ځایونه دښځي نوم په موصول او صله سره ذکر کوي.

## دوه پنځوسم سبق کله به مسند الیه معرفه په موصول وي

**(اوزیادة التقریر نحو وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا عَنْ نَفْسِهِ)**:

کله کله به مسند الیه معرفه وي په موصول سره دپاره دزیادة التقریر تقریر معنی یو شی پخول پوخته کول دلته دري قولونه دي:

**اول قول** مسند الیه دکلام غرض پوخته کوي پخوي دویم قول: مسند الیه فعل پوخته کوي. پخوي دریم قول: داموصول عین مسند الیه پوخته کوی، پخوي مثال قوله تعالی **﴿وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا عَنْ نَفْسِهِ﴾** ترجمه **وَرَاوَدَتْهُ** مطالبه وکړه دیوسف څخه هغې ښځي چي یوسف ددې په کور کي وو دخپل ځان دپاره، په دې کلام کي دالله مقصود او غرض دیوسف علیه السلام پاک والی بیانول دي دا کلام شړول سوي دیوسف علیه السلام دپاک والی دپاره دي یو سړي په یو ملک کي دئ ښځه په بل ملک کي ده دلته مواقع دزنا بعیدي دي که سړي او ښځه دواړه په یو ملکي وي لیکن سړي په یو ښار کي وي ښځه په بل ښار کي وي دلته هم مواقع دزنا بعیدي دي که سړي او ښځه دواړه په یوه کلي وي خو په مینځ یو رود وي دلته هم مواقع دزنا بعیدي دي که سړی او ښځه دواړه په یوه کور کی وی. او دواړه ښایسته وي دواړه دځوانی په حالت کي وي او دا ښځه دسړي څخه طلب دزنا وکړي خو داسړي ورته وایي زه زنا نه کوم نو دا سړي انتهایي پاک دئ یوسف علیه السلام دښځي سره یوائي په کور کي وو ښځي مطالبه دزنا ورڅخه وکړه یوسف علیه السلام ورته وایي یا زه زنا نه کوم یوسف علیه السلام مخکي هم پاک وو ځکه انبیاء علیهم السلام

قبل النبوة او بعد النبوة معصوم دی ښځي دیوسف السلام ځخه مطالبه دزنا وکړه یوسف
قدرت هم درلودي خو بیا هم یوسف علیه السلام ښځي ته وایي زه زنا نه کوم له دې وجه
دلته دا مسند الیه په موصول او صله سره دغه غرض چي پاک والی دئ دا پوخته کوي
پخوي :

دویم قول: دا مسند الیه په موصول او صله سره نفس فعل پوخته کوي راودَ د**مُراودةٌ** ځخه
دئ مراوده باب دمفاعله دئ علامه تفتازاني وایي دراودَ معنی تګ او راتګ داسي تګ
او راتګ مثال کوچنیان دبجلو خند کوي یو بد ماشه ګرځي او راګرځي ددې دپاره چي
دکوچنیانو فهم بلي خوا ته واوړي زه به چور وکړم خو کوچنیان دا نه غواړي چي دې بجلي
چور کړي له دې وجه زلیخي پر یوسف علیه السلام باندي ګرځي او راګرځي ددې دپاره
چي دیوسف علیه السلام عزت ختم سي یوسف علیه السلام خپل عزت دلاسه نه ورکوي
له دې وجه مسند الیه په موصول او صله سره دا فعل پوخته کوي پخوي:
دریم قول: دا موصول او صله نفس مسند الیه پوخته کوي که خدای پاک داسي قول کړي
واي **وَرَاوَدَتْهُ اِمْرَأَةُ العزيز** دلته په امراءة العزیز کي ابهام وو چي امرأة العزیز به ځوک
وي که دالتی پر ځای زلیخا ویل سوي وای نو بیا په زلیخا کي احتمال داشتراک سته مثال
زلیخا ددرو ښځو نوم دئ له دې وجه دلته دا نه معلومیږي چي کومه زلیخا یاد وي دلته
التی دا مسند الیه پخوي :

**او زيادة التقرير نحو ﴿وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا عَنْ نَّفْسِهِ﴾** ترکیب راودَ فعل دهو ضمیر
مفعول به التی موصول هو مبتداء فی بیتها په اعتبار دمتعلق خبر مبتدا سره دخبره دا به
صله سي دموصول موصول سره دصلي دا به فاعل سي دراود عن نفسه دا به متعلق سي
دراود ( **اوالتفخيم نحو ﴿فَغَشِيَهُمْ مِنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ﴾** موصول دوه قسمه دئ ۱-:
موصول خاص ۲- موصول مشترک موصول که خاص دئ که مشترک دئ خو عام دی
موصول چي عام سو نو ابهام پکښي دئ کله کله متکلم راولاړسي مسند الیه په موصول
سره ذکر کړي مخاطب ته داور ښکاره کړي چي دامسند الیه نا پول ددې جد معلومول ددې
طول معلومول ددې وزن کیلو معلومول ستا تر وس وتلې ده بس په دغه مبهم ګوزارا
وکړه مسند الیه داسي غټ ښکاره کول مسند الیه خوف داره ښکاره کول مبهم ښکاره کول

دا به غیره دموصوله په بل چا نه کیږي مثال ﴿فَغَشِيَهُمْ مِنَ الْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ﴾ ترجمه پس
لاندي کړل دوي له در یاب څخه هغه شي چي لاندي یی کړه دوي دلته متکلم الله دی الله
وایي دوی یې ډوب کړه هغه دریاب در یاب څومره دئ څو ټانکي دي څومره حدیې دئ نو
الله وایي بس پریږده یې ستا تروس وتلې ده دلته لفظ ما مسند الیه دی په موصول او
صله سره دالله په قدرت کي دمسندالیه حد وزن کیلو سته زما او ستا په قدرت کي نه سته
الله پاک مسند الیه په موصول او صله سره راوړي مقصد .دالله تخویف او تعظیم دئ په
مسند الیه کي (او تنبیه المخاطب علی الخطاء) کله به مسند الیه معرفه وي په موصول
سره ددې دپاره چي متکلم تنبیه اګاهي ورکوي مخاطب ته پر خطاء باندي چي قصه دارکم
نه ده ای مخاطبه ته په خپل ګمان کي خطایي (نحو اِنَّ الذین تَرَونَهُمْ اخوانکم یَشفِي
غَلِیْلَ صُدُوْرِهِمْ اَنْ تُصرَعُوْا):

قاعده درَاْی یری باب که هر ځای دمجهول په صیغه ذکر سو معنی دظن ورکوي لیکن دغه
معنی به دفعل معروف وي:

ترجمه اِنَّ الذین واقع هغه کسان تَرَونَهُم چي تاسو ګمان کوي په دوي باندي اخوانکم
چي دا ستاسو ورونه دئ دلته دوی خطاء دئ ولی ځکه یشفی غلیل صدورهم ان تصرعوا،
ستاسو هلاکت ددوي دسینو دیخوالی شفی ده یعنی دوي پر تاسو دا ګمان کوي چي تاسو
زموږ ورونه یاست خو ستاسو هلاکت ددوي دسینو دیخوالی شفی ده په دغه ګمان کي
دوی خطا دي:

ترکیب اجمالا اِنَّ: انّ حرف دئ دحروف مشبه بالفعل څخه اسم منصوب خبر مرفوع
غواړي الذین اسم موصول ترونهم اخوانکم دا به صله سي دموصول موصول سره
دصلي دا به اسم د انّ سي یشفی غلیلَ صُدُوْرِهم ان تصرعوا یشفی فعل غلیل صدورهم دا
به مفعول سي دیشفی ان تصرعوا په تأویل دمصدر دا به فاعل سي دیشفی، فعل سره
دفاعله سره دمفعوله دا به خبر سي دانّ (او الایماء الی وجه بناء الخبر) کله کله مسند الیه
معرفه وي په موصول او صله سره ددې دپاره چي متکلم په دې موصول سره اشاره کوي
دخبر ونوعي ته مثال متکلم چي څرنګه په موصول شروع وکړي نو اشاره ودې ته وکړي

چي را روان خبر ددې نوعي ثخه دئ (نحو﴿إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ﴾

ترجمه واقع هغه کسان چي تکبر کوي زما ددعاء دغوښتلو ثخه او په دې موصول سره اشاره وسوه ورا روان خبر ته چي را روان خبر دعذاب دئ سيدخلون جهنم داخرين ژردئ چي داخل به سي جهنم ته په داسي حال کی چي ذليله به وي .

## دري پنځوسم سبق کله کله مسند اليه په موصول او صله راوړل سي

(ثم انه ربما يجعل ذريعة الى التعريض بالتعظيم لشانه نحو شعر ان الذي سمک السماء بنى لنا، بيتا دعائمه اعز واطول)

کله کله مسند اليه په موصول او صله سره راوړل سي ددې دپاره چي متکلم په دې موصول سره طرز، ډول، نوعي، دخبر ته اشاره وکړي کله داساده وي کله کله ددې سره سره بله فائده هم ورکوي کله کله ددې سره سره اشاره وتعظيم ته دخبر وی کله به اشاره وي تعظيم ته غير دخبره کله به اشاره وي واهانت ته غير دخبره دخبري خلاصه داده کله به مسنداليه په موصول او صله سره راوړل سي ددې دپاره چي په دې موصول سره اشاره وسي دخبر ونوعي ته کله به ددې سره سره اشاره وي وتعظيم ته دخبر کله به اشاره وي وتعظيم ته غير دخبره کله به اشاره وي واهانت ته غير دخبره مثال إِنَّ الذی سمک السماء هغه ذات چي اسمان يې پورته کړي دئ بنى لنا بيتا دعائمه اعزّ واطول جوړ کړي دي زموږ دپاره کوټه داسي کوټه چي ستنی دهغې کلکي او اوږدې دي ان الذی سمک السماء هغه ذات چی اسمان يې پورته کړي دې دلته په موصول سره اشاره وسوه دخبر ونوعی ته چي راروان خبر به درفعت دکورنی ثخه وي ولي مسند اليه درفعت دکورنی ثخه دئ ددې سره سره اشاره وسوه وتعظيم ته دخبر په دارنګه باندې هغه ذات چی اسمان يې پورته کړي دئ ته اسمان ته وګوره ثومره غټ شان والادئ لوړ تر لوړه لس کربه کيلو ميټره دئ نو خبر به هم دومره غټ شان والا وي (اوشان ډېره) کله به ددې سره سره اشاره وي وتعظيم ته غير دخبره

مثال ﴿اَلَّذِيْنَ كَذَّبُوْا شُعَيْبًا كَانُوْا هُمُ الْخٰسِرِيْنَ﴾ ترجمه هغه کسان چي تکذيب يې کړی وو دوي به وي **هم** خاص دوی **الخسرين** تاوان جن دیٔ دلته په موصول سره اشاره وسوه ونوعي ته دخبر چي را روان خبر تاواني دیٔ ددې سره سره اشاره وسوه وتعظيم ته دشعيب، شعيب خبر نه دیٔ شعيب مفعول به دیٔ شعيب دومره غټ سړي دیٔ چي څوک يې تکذيب وکړی هغه به تاواني وی کله به ددې سره سره اشاره وی واهانت ته غير دخبره مثال **اِنَّ الذی يتبع الشيطان فهو خاسر** : هغه څوک چي دشيطان تابعداري وکړي هغه به خاسر وي دلته په موصول سره اشاره وسوه دخبر ونوعی ته چي راروان خبر تاواني دیٔ ددې سره سره اشاره وسوه واهانت ته غير دخبره هغه اهانت دشيطان دیٔ، شيطان دومره خبيث دیٔ چي څوک دده تابعداری وکړي هغه به تاواني وی ګوره شيطان خبر نه دیٔ شيطان مفعول دیٔ

علامه تفتازاني يو بله نکته هم وايي تفتازاني وايي کله **ايماء الی وجه بناء الخبر تحقق** او تثبيت ښکاره کوی خبره پخوي بيا علامه تفتازاني يوه خبره کوي ما چي کوم شعر درته پيش کړدا په مطلق ايماء الی وجه بناء الخبر کي دیٔ او هغه ايماء الی وجه بناء الخبر چي شان دځانه سره راوړي په هغوی کي دا خبره نه سته مثال شاعر پر يوه ښځه عاشق وو دا ښځه راولاړه سوه دشاعر دکلي څخه يې کډه وکړه کوفة الجند ته ولاړه هلته يې کور جوړ کړ شاعر خلګوته وايي چي ددې تګ ددې ځايه څخه او په کوفة الجند کي ددې کور جوړول داددې دليل دیٔ دا خبره په حق رسوي چي ددې ښځي زما سره محبت نه سته ددې ښځي محبت هلاک سوی دیٔ داسی مثال ورکوي **اِنَّ الق**: واقع هغه انجلی، **ضَرَبت**: چي جوړ يې کړ، بيتًا : هغه کور، **بکوفة الجند**: په کوفة الجند کي، **مهاجرة**:په داسي حال کي چي داورکډه سوه ددې وروسته چي کومه خبره ذکرکيږي هغه به په حق رسيږي ولي باقاعده ده برهان پر ووايو نو وې ويل غالت ودّها غول، يو هلاکونکي ددې محبت هلاک کړي دیٔ محبت نه کيدل دا خبر دیٔ ددې خبر دتحقق او دتثبيت دپاره يې موصول او صله راوړل **ثم انه ربما يجعل ذريعة الخ** بعض علماء وايي دا دموصول جلا نکته ده علامه

تفتازانی وایي دثم انه دعبارت څخه دارامعلومیږی چي دا جلا نکته نه ده دا دایماءاي وجه بناء الخبر یو ښاخ دئ .

۱- وبالموصلية : لعدم علم المخاطب: ۲ التفخیم ۳- او تنبیه المخاطب ۴- الایماء الی وجه بناء الخبر :

## اجراء الموصول

۱: وَقَالَ لِلَّذِیْ ظَنَّ اَنَّهٗ نَاجٍ مِّنْهُمَا اذْكُرْنِیْ عِنْدَ رَبِّكَ (یوسف ۴۲)

**ترجمه:** او وویل یوسف هغه یوه ته چي یقین یې درلود چي بیشکه دی خلاصیدونکی دئ له دې دواړو څخه چي یاد کړه ما په نیز دمالک خپل :

**تشریح:** دلته جار او مجرور په موصول او صله ذکر دي نکته داده چي دی علم نه ږاندي لري چي نوم یې واخلي ځکه یې په موصول او صله ذکر کوي :

۲- فَغَشِیَهُمْ مِّنَ الْیَمِّ مَا غَشِیَهُمْ: (طه ۷۸) :

**تشریح:** دلته لفظ (ما) مسند الیه ده په موصول او صله سره دلته مسند الیه په موصول او صله سره راوړل سوه ځکه دمسند الیه حد معلومول وزن معلومول دا زما او ستا په قدرت کي نسته مقصد دالله تعظیم او تخویف ښکاره کول دي په مسند الیه کي :

**فائده** کله کله دالله مقصد په موصول او صله سره تعظیم او تهویل وي غیر دمسند الیه یعني مسند الیه به نه وي مفعول به وي مثال فَاَوْحٰى اِلٰى عَبْدِهٖ مَاۤ اَوْحٰى( النجم ۱۰)

**ترجمه:** پس وحی وکړله ( الله په ژبه دجبرائیل) بنده خپل ته هغه چي وحي یې وکړه :

۳-: اِنَّ الَّذِیْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ عِبَادٌ اَمْثَالُكُمْ ( الاعراف ۱۹۴)

یو وار نظر وکړه ترکیب ته، ترکیب الذین تدعون من دون الله دا به موصول سره دصلې دا به اسم د( اِنّ )سي عباد امثالکم دا به موصوف سره دصفة خبر د ( اِنّ)

سي: ترجمه واقع هغه کسان چي عبادت يې کوئ تاسي (اې مشرکانو دوی رابولئ) به له الله دامملوکان او بندګان دالله دي په شان ستاسو :

**تشريح:** په تدعون کي خطاب ومشرکينو ته دئ مشرکينو دعيسی عليه السلام او دعزير او دبتانو عبادت کوئ، بتان خو دومره کمزوري دي چي مچ هم دخپلي پوزي څخه نشي ليري کولای: لهذا الله پاک مخاطبينو( مشرکينو) ته وايي چي تاسو خطا ياست چي مخلوقين او مملوکين دالله رابولي او عبادت يې کوئ تاسو الله نه رابولی دالله عبادت کوئ لهذا تاسو خطا ياست :

۲: اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دَاخِرِيْنَ ( غافر ۶۰)

فَالَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيْمٌ ( الحج ۵۰)

وَالَّذِيْنَ اجْتَنَبُوْا الطَّاغُوْتَ اَنْ يَّعْبُدُوْهَا وَاَنَابُوْا اِلَى اللّٰهِ لَهُمُ الْبُشْرٰى ( الزمر ۱۷)

## څلور پنځوسم سبق تعريفه بالاشارة

(وبالاشارة لتميزه اكمل تميز نحو قوله ع هذا ابو الصقر فردا في محاسنه)

ايراد دمسند اليه په اسم اشاره سره ددې دپاره چي متکلم په دې مسند اليه سره پوره پوره تميز دماعدا څخه راولي لغرض من الاغراض ديو غرض داغراضو يعنی دمسند اليه سره شرکاء وي متکلم مسند اليه دټول ماعدا څخه را ممتاز کړي دمختصر المعانی محشی يو اعتراض پر کړي دئ :

**پوښتنه:** محشی وايي اکمل ثميز هغه دئ چي په عين او قلب سره وي دغه تميز نه حاصليږی مګر په اسم اشاره سره نو ستا دکلام او عبارت څخه دارامعلوميږي چي اسم اشاره اعرف المعارف ده حلانکي اعرف المعارف اسم جلاله دئ وروسته ضمير دمتکلم دئ اسم اشاره اعرف المعارف خو نه ده ددې دپاره محشی دوه جوابه ورکوي اول جواب خوندور نه دئ دويم جواب خوندور دئ:

**اول جواب** اسم اشاره اعرف المعارف ده په اعتبار دماتحت هغه ماتحت دادي ۱- معرفه په موصول سره ۲-: معرفه په نداء سره ۳-: معرفه په اضافت سره له دې وجه اسم اشاره

مطلقا اعرف المعارف نه ده اسم اشاره اعرف المعارف ده په نسبت وما تحته ته نه په اعتبار دمافوق سره :

**دويم جواب:** اسم جلاله ضمير دمتكلم ضمير دمخاطب دا اعرف المعارف دي ديوې وجه اسم اشاره اعرف المعارف ده دبلي وجه هغه وجه داده اسم اشاره واضع وضع كړې ده دمحسوس بالبصر دپاره له دې وجه داسم اشاره په اعرفيت سره اعرفيت داسم جلاله اعرفيت دضمير متكلم اعرفيت دضمير مخاطب نه ختميږي له دې وجه اسم اشاره اكمل تميز ده په نسبت دماعدا مثال **هذا ابوالصقر فردا فى محاسنه** تنها دئ په ښوالي كي من نسل شيبان دشيبان له خاندان څخه دئ **بين الضال والسلم** په مابين كي ددوو درختو ضال او سلم ددرختو نومونه دي **من نسل شيبان** چي وويل سو ودې خوا ته اشاره وسوه چي دا دِغتي كورنى څخه دئ **بين الضال والسلم** چي وويل سو ودې خواته اشاره وسوه چي دا صحرايى سړى دئ دصحراء خلک بهتر دئ دښارو تر خلګو ځکه دصحراء خلګ غيرت مند دي دښارو ترخلګو ځکه دصحراء خلګ څه نا څه دخپل سر دئ دښارو خلګ دخپل سر نه دي دحکومت څخه ډير بيريږي اهل الجبل كالجبلدا دوه امكانه لري فتأمل د لته په **هذا** سره اشاره وسوه وابو صقر ته وروسته متكلم په دې عبارت باندي چي **فردا فى محاسنه** دئ حكم وړباندي لګوي ددې دپاره چي تميز دټول ماعدا څخه راسي:

**تركيب اجمالا** : هذا :مبتداء، ابو الصقر: خبر، فردا : منصوب دئ بناء بر حاليت يا بناء بر مفعول به يعنى فردا حال دئ دا بو الصقر څخه يا فردا مفعول به دئ دفعل مقدر دپاره **من نسل شيبان** دلته درې تركيبونه دئ ١- من نسل شيبان خبر بعد الخبر ٢-: من نسل شيبان داحال دئ دابو الصقر څخه فيكون من قبيل المترادفة يعنى دا حال مترادفه دئ ٣- : من نسل شيبان دا خبر دمبتداء محذوفى اى هو من نسل شيبان بين الضال والسلم دا حال دئ دمن نسل شيبان څخه **فردا** علامه تفتازانى دفردا وروسته وايي نصب على المدح او على الحال يعنى فردا منصوب دئ بناء برحاليت يا خو فردا مفعول به دئ دفعل دپاره :

قاعده: هر ځای که داسي عبارت راغلی نصب علی المدح مقصد دنحو یانو دا نه وي چي وچ په وچه به امدحُ فعل را باسي مقصد ددوي داوي چي دا فعل محذوف منصوب کړي دئ بیا عام تر دي امدح فعل را باسي اعنی فعل راباسی وغیر ذالک فردا حال دئ دابو الصقر څخه :

پوښتنه: حال یا دفاعل څخه وي یا دمفعول څخه وي یا ددواړوو څخه وي دلته ابو الصقر نه فاعل دئ نه مفعول د ئ ؟

جواب: فاعل او مفعول عام دئ حقیقة وي که حکما وي دلته ابو الصقر مفعول دئ حکما ځکه دهاء څخه اُنبِّهُ را معلومیږي د ذا څخه داشیر معنی را معلومیږي له دې وجه ابو الصقر معنی مفعول به دئ تقدیر دعبارت دادئ اشیر اباالصقر :

(اوالتعریض بغباوة السامع کقوله شعر اولئک ابائي فجئني بمثلهم ، اذا جمعتنا یا جریر المجامع) کله به ایراد دمسند الیه په اسم اشاره سره وي دپاره دتعریض یعنی متکلم خلګو ته وایي زما سامع دومره غبي دئ چي غیر دمحسوسه دبل شی ادارک نه سي کولای مثال اولئک ابائي فجئني بمثلهم، اذا جمعتنا یا جریر المجامع په عربو کی دوه مشهور شاعران تیرسوی دي یو فرزدق ، بل جریر، طالبانو زموږ پښتانه چي څرنګه قومیت کوی چي زه اچکزي یم زه کاکړ یم زه الکوزیی یم زه بارګزیی یم په عربو کی همدارنګه قومیت وو بلکي په عربو کی قومیت ډیر پر مخ وو عرب ډیر فصیح خلګ دئ شعر او شاعري په دوی کي ډیره وه طالبه که ستا څخه څوک پوښتنه وکړي چي په عربو کي شعر او شاعري ولي زیاته وه نو ته په جواب کي ورته ووایه شعر او شاعري په دوی کي ځکه زیاته وه چي په دوی کي دعشق ماده ډیره وه دعشق ماده په دوی کي ځکه ډیره وه چي دوی کډي ډیري کولې نن دلته کډه کړي صبا هلته کډه کړي بله ورځ هلته کډه کړي فرزدق پر جریر تعریض کوي اولئک آبائي دغه زما پلرونه دي فجئني بمثلهم ته راتګ وکړه ددوي په مثل باندي دایي ګز دایې میدان وه نیسه راتګ وکړه ددوي په مثل باندي اذا جمعتنا یا جریر المجامع هغه وخت چي موږ راجمعه کړو مجالس ای جریره :

دلته **اولئک** مبتداء **اهالی** خبر مبتدا اسم اشاره ده دپاره دتنبیه ورکول پر غباوت دسامع
باندي چي زما سامع دومره غبي دئ چي به غیر دحسي دبل شی ادراک نه سي کولای نو
ځکه ما مسند الیه په اسم اشاره راوړه او اشاره دمحسوس بالبصر دپاره راځي :

**(او بیان حاله فی القرب او البعد او التوسط کقولک هذا وذالک وذاک زید)** کله به ایراد
دمسند الیه په اشاره وي ددې دپاره چي دمسند الیه حال بیان کړي په قرب او بعد او
توسط کي مثال هذا زید ذاک زید ذالک زید عرب چي اشاره قریب ته کوي نو بیا هاء
دتنبیه په سر داشارې کي راوړي لکه هذا چي اشاره متوسط ته کوي خالی کاف راوړي
لکه ذاک چي اشاره وبعید ته کوي لام او کاف دواړه راوړي لکه ذالک دډرو سره ترجمه په
پښتو کي داده هذا دغه ذاک هغه ذالک اُو غه که ستا مقصد قرب او بعد او توسط وو نو
دا په ضمیر نه کیږي په علم نه کیږی وغیر ذالک قرب ، بعد ، توسط ، دا یوازی په اشار
کیږي **او بیان حاله فی القرب اوالبعد اوالتوسط کقولک هذا وذالک وذاک زید** علام
تفتازانی پر دې عبارت باندي دوه اعتراضه کوي:

**پوښتنه:** په دغه عبارت کي ته غیر فصیح يې ولي تقدیم دئ پر تقدیم نه دئ پري ایښي
تاخیر دئ پر تاخیر نه دئ پري ایښي اوله رتبه دقرب ده دویمه رتبه دتوسط ده دریمه رتبا
دبعد ده او تا اول قرب راوړي دئ بیا دي بعد راوړي دئ بیا دی توسط راوړي دي لا
دې وجه په ترتیب کي غلط يې چي ترتیب غلط سو نو ستا عبارت دمقتضی الحال
مطابق نه سو چي عبارت دمقتضی الحال مطابق نه سو نو کلام غیر بلیغ دئ علام
تفتازانی جواب ورکوي په اعتبار دذات سره په اعتبار دواقع او نفس الامر سره اول قرب
وی بیا توسط وي بیا بعد وي خو په اعتبار د وصف سره تحقق دتوسط به غیره دقرب او
بعد نه راځي یو وار به قرب او بعد ښکاره وي بیا توسط ښکاره کیږي او حال دا دئ چ
زموږ خبره په اوصافو کي ده :

**۲-: پوښتنه:** علامه تفتازانی وايي دا قرب دئ دا بعد دئ دا توسط دئ ددې څخه عل
نحو او علم لغات والا خبري کوي دا دمعانی کار نه دئ له دې وجه دا خروج عن البحث
دئ؟

جواب: علامه تفتازانی وایي هري اسم اشاري لره دوه دوه حیثیتونه دي ذالک واضع وضع کړي دې دبعد دپاره دا یو حیثیت خو موږ دمسند الیه بعد په کار دئ نو ذالک راوړو دا بل حیثیت دئ ذاک واضع وضع کړي دئ دتوسط دپاره دا یو حیثیت خوزموږ دمسند الیه توسط په کار دئ نو ذاک را وړو دا بل حیثیت دئ هذا واضع وضع کړي دئ دقریب دپاره دایو حیثیت خو زموږ دمسند الیه قرب په کار دئ نو هذا راوړو دا بل حیثیت له دې وجه ذالک دبعید دپاره وضع سوي دئ دا دنحو او دلغاتو کار دئ خو زموږ بعد دمسند الیه په کار دئ نو ذالک مي استعمال کړی دا کار دعلم معانی والا دئ دلغاتو او دنحو کار نه دئ له دې وجه موږ په هغه حیثیت بحث کوو چي هغه حیثیت دعلم معانی والا کار دې موږ په هغه حیثیت بحث نه کوو چي هغه حیثیت دنحو او لغاتو والا کار دئ :

(**او تحقیره بالقرب**) هذا واضع وضع کړي دئ دقرب لپاره ذالک دبعد دپاره واضع وضع کړي دئ کله کله دخپلي وضعي اخوا ته دبل مقصد دپاره وي علامه قزوینی اوس هغه بل مقصد بیانوي کله کله دقرب والاشاره دتحقیر دپاره استعمال سي ګوره دهذا څخه دتحقیر معنی څرنګه فهمیږي دغه ځای سخت دئ ابو جهل خبیث په مجلس کی ناست دئ دنبي علیه السلام غیبت کوی نو دی وایي﴿ **أَهٰذَا الَّذِیْ یَذْکُرُ اٰلِهَتَکُمْ** ﴾ ایا دغه ستاسو دخدایانو پسي خبري کوی دغه اوس یو شي دئ نبي علیه السلام دابو جهل څخه ډیر لیری دئ ځای دذالک دې استعمال سوی هذا دئ که ذالک استعمال سوي وای نو ابو جهل به خلګو ته دا وربنکاره کړي وای چي فی الحال دې زموږ څخه لیري دی دلیري والا ځای یې په هذا قریب استعمال کړي اشاره یې ودې ته وکړه چي دا دومره شی نه دې ما ته ګوره په اشاره قریب سره حقارت څرنګه معلومیږی دغه ځای مشکل دئ داشاري قریب څخه حقارت دارنګه معلومیږی صرف اندازه ته وګوره خپله معلومیږي زما اندازه ته ګوره ایا دغه ستاسو دخدایانو پسي خبري کوي پښتانه هم چي تحقیر استعمالوي داسي وایي ایا دغه داخو هیڅ شي نه دئ په قرب کي تحقیر څرنګه متسعملیږي راسي زه تعبیر درته وکړم دیو باچا سره ته ملاقات کوي دا ملاقات ډیر څند غواړي دا ملاقات ستا څخه ډیري واسطې غواړي ولي باچا په رتبه کي تر تا ډیر لوړ دئ ته په رتبه کي ډیر ټیټ یې نو ستا او دباچا ملاقات ډیري واسطې غواړي ډیر وخت غواړي یو ستا خادم دئ تر تا ادنی

دئ تا ته ډير نژدې دئ هر وخت ته لاس وراچولای سی عرب چي يو شي په رتبه کي غټ
ښکاره کوي نو هغه ته دبعيد اشاره وکړي چي دا ډير لوړ دئ تر تا په رتبه کي اوشي چي
حقير ښکاره کوي نو په اشاره قريب سره يې ذکر کړی ددې دپاره چي دا تا ته ډير درنژدې
دئ دا چاندانی شي نه دئ دغه رنگه داشاره قريب څخه تحقير معلوميږي دغه رنگه
داشاره بعيد څخه تعظيم معلوميږي <u>(او تعظيمه بالبعد)</u> کله به تعظيم دمسند اليه وي په
بعد سره مثال <u>(نحو الم ذالک الکتب)</u> ذالک واضع وضع کړي دئ دبعد مسافتي دپاره
کله کله په ذالک سره دبعد مسافتی پر ځای اشاره وکړی دبعد رتبي وخواته ددې دپاره
چي متکلم مخاطب ته دا وربښکاره کوي چي دا په رتبه کي ډير ليري دئ دې ته ورسيدل دا
ستا کارنه دئ دخبري خلاصه داده کله اشاره قريبه دبعد پر ځای استعمال سي دپاره
دتحقير کله اشاره بعيده دقريب پر ځای استعمال سي دپاره دتعظيم دادواړه صورتونه
تنزيلي دي په ذالک الکتاب کی تنزيل دبعد رتبي په منزله دبعد مسافتي دئ يعنی بعد
رتبه په منزله دبعد مسافه کړي بيا دبعيد اشاره راوړي تنزيل دتحقير وکړي په منزله
دقرب مسافتی بيا اشاره دقريب راوړي <u>(او تحقيره کما يقال ذالک اللعين فعل کذا)</u>
عرب کله کله اشاره بعيده دقريب پر ځای استعمال کړي دپاره دتحقير مثال دا يو خبيث
سړی دئ دې خبيث سړي يو کار کړی دې د اسړی مخامخ ناست دئ زه تاته وايم ذالک
اللعين فعل کذا دغه خبيث سړي دا کار وکړ گوره سړی مخامخ ناست دئ نو دقريب اشاره
په کار ده خو دې دبعيد اشاره استعمالوي ددې لپاره چي دئ تحقير ښکاره کوي تحقير
دارنگه ښکاره کيږي داسړي قريب دئ خو دی اشاره بعيد ه استعمالوي مخاطب ته دا
وربښکاره کوي چي دا دئ دتا لري وي دې ته نژدې مه ورځه دالعين دئ لکه موږ په
کوچنوالی ويله ليري دماليري دکسوک دانی دي وخيژه پر لري :
۱-: وبالاشارة لتميزه اکمل تميز ۲-: وتحقيره بالقرب والبعد ۳- او تعظيمه
بالبعد او القرب ۴- او تحقيره بالبعد :

## اجراء الاشارة

<u>۱-: قَالَتْ فَذَالِكُنَّ الَّذِیْ لُمْتُنَّنِیْ فِیْهِ (يوسف ۳۲) :</u>

نو وویل (زلیخا) داهمغه زلمی دئ چي زه ملامته کړي ومه تاسو په (محبت) دده کښي:

**تشریح:** دلته فذالکنّ مسند الیه ده په اسم اشاره سره دذالکنّ مشار الیه یوسف علیه السلام دئ دلته مسند الیه په اسم اشاره راوړل سوه څه نکته ده داده لتمیزه اکمل تمیز :

مسند الیه معرفه سوه په اسم اشاره سره ددې دپاره چي دده تمیز راسي په پوره تمیز سره نو زلیخا وویل ښه ورته وګورئ ددغه زلمی په باره کښي تاسو زه ملامته کړې:

**بله نکته:** دذالک اشاره مستعملیږي دبعید دپاره دلته یوسف علیه السلام نژدې دئ نو پکار ده چي هذا استعمال سي خو دلته دبعید اشاره استعمال سوه څه نکته ده نو ته ورته وو ایه چي نکته دلته تنزیل دبعد رتبې په منزله دبعد مسافتي سوی یعنی الله پاک موږ ته دا ښکاره کوي چي یوسف علیه السلام پر زلیخا باندي په زړه کي ډیر ګران وو یوسف علیه السلام دزلیخا په نظر کي ډیر عظیم الشان والا سری وو :

۲: اِنَّ هٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِيْ لِلَّتِيْ هِيَ اَقْوَمُ (الاسرا۹) :

**تشریح:** هذا دقریب والا اشاره ده خو نکته داده چي دلته تعظیم دمسند الیه دئ په قرب سره :

ذٰلِكَ الْكِتَابُ (البقرة ۲)

دلته تعظیم دمسند الیه دئ په بعد سره :

تشریح : داځای دقریب والا اشارې دئ خو دلته دبعید اشاره استعمال سوه مقصد دمتکلم تعظیم دمسند الیه دئ په بعد سره یعنی دلته تنزیل دبعد رتبی دئ په منزله دبعد مسافتی:

۲-: هَلْ هٰذَا اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ (الانبیاء ۳)

دلته تحقیر دمسند الیه دئ په قرب سره:

**تشریح:** دلته دقریب والا اشاره استعمال ده مقصد تحقیر دمسند الیه دئ په قرب سره :

ترجمه دتحقیر: ای دغه ( محمد) نه دئ مگر خویو انسان دئ په شان ستاسي : :

اَهٰذَا الَّذِیْ یَذْکُرُ اٰلِهَتَکُمْ ( الانبیاء ۳۶)

دلته تحقیر دمسند الیه دئ په قرب سره :

**ترجمه:** دتحقیر: ایا دی هغه څوک دئ چي یادوي په ( بدو او سپکه ) معبودان ستاسي:

۲: فَذٰلِکَ الَّذِیْ یَدُعُّ الْیَتِیْمَ ( الماعون ۲)

دلته تحقیر د مسند الیه دئ په بعد سره :

**ترجمه دتحقیر:** ای همدغه دئ هغه کس چي شړي یتیم :

## پنځه پنځوسم سبق او التنبیه عند التعقیب

(او التنبیه عند تعقیب المشار الیه بأوصاف علی انه جدیر بما یرد بعده من اجلها نحو أُولٰئِکَ عَلٰی هُدًی مِّنْ رَّبِّهِمْ وَأُولٰئِکَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ):

**قاعده:** یو شي چي په اسم ظاهر باندي ذکر سي بیا هغه شي دویم وار په ضمیر ذکر کیږي متکلم مسند الیه په اسم ظاهر باندي ذکرکوي او حال دادئ چي دا ځای دضمیر دئ دا ولي څه وجه ده متکلم وایی اسم اشاره چي کوم کار کوي ضمیر هغه کار نه سي کولای مخکي تر دې چي دقزوینی نکته وایو یوه قاعده واوره ضمیر یوائي ذات پورته کوي یا یوازی وصف پورته کوی دواړه نه سي پورته کولای اسم اشاره ذات مع الوصف را پورته کولای سي قزوینی هغه نکته وایي متکلم مسند الیه په اسم اشاره باندی ذکر کوی او حال دادئ چی دا ځای دضمیر دئ متکلم وایي اسم اشاره چي کوم کار کوي ضمیر هغه کار نه سي کولای اسم اشاره دا کارکوي یو ځای مشار الیه تیره سوه یو څو اوصاف متصل وروسته وه په مشار الیه باندي وروسته اشاره راوړي دا اشاره مشار الیه سره داوصافو را واخلي وروسته حکم باندي ولګوي مثال ﴿هُدًی لِّلْمُتَّقِیْنَ﴾ ترجمه لار ښونکي دئ دپر هیزګارانو دپاره پر مخ دمتقینو تعریف کوي ﴿الَّذِیْنَ یُؤْمِنُوْنَ بِالْغَیْبِ وَیُقِیْمُوْنَ الصَّلٰوةَ

وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ وَبِالْآخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ﴾ الله سبحانه الذين ذكركړي الذين مشار اليه دئ الله سبحانه دمشار اليه وروسته يو څو اوصاف ذكر كړي دي دغه اوصاف دادي ۱-: ايمان بالغيب ۲-: اقامة الصلوة ۳-: انفاق فی سبيل الله ۴-: ايمان بما انزل اليک ۵-: ايمان بماانزل من قبلک ۶- اتقان بالاخرت ددې اوصافو وروسته الله اسم اشاره ذكركړي ده متكلم په اسم اشاره سره مشار اليه سره دشپږو اوصافو را پورته كوي وروسته حكم ورباندي لګوي چي دا خلګ پر غټ هدايت دې كاميابه دي او التنبيه عند تعقيب المشار اليه باوصاف على انه جدير بما يرد بعده من اجلها كله به مسند اليه معرفه وي په اشاره سره ددې دپاره چی متكلم مخاطب ته تنبيه وركوي هغه وخت چی دمشار اليه وروسته اوصاف راسی على انه بنا پر دې چي دا مشار اليه جدير بما يرد بعده لائقه ده په هغه حكم باندي چی راځي وروسته داسم اشاري من اجلها دوجي داوصافو مثال اولئک على هدى عقبَ يُعَقِّبُ تَعقيبٌ تعقيب معنى يو شی په بل شي پسي كېدل عرب وايی عقبه فلان فلانكي سرئ دفلانكي وروسته سو عند تعقيب المشار اليه باوصاف ددې عبارت معنى دمشار اليه وروسته اوصاف راتلل يعنى په مشار اليه پسی اوصاف پسي كيدل بعض علماء ددې عبارت ترجمه داسي كوي اسم اشاره داوصاف وروسته راتلل يعنى اسم اشاره په اوصافو پسي كيدل محشيان وايي ددواړو مآل او مرجع او مقصد يو دئ خو علامه تفتازانی رد ورباندي كوي پر بعض علماء باندي علامه وايی دا معنى تا دكومه كړه داخو ددې عبارت معنى نه ده نحو اولئک على هدى من ربهم واولئک هم المفلحون :

## اجراء الاشارة

أُولٰئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنْ رَّبِّهِمْ وَأُولٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ( البقرة ۵)

تشريح : الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ، بيا تر أُولٰئِكَ پوري دا مشار اليه د ه دلته مسند اليه په اسم اشاره باندي ذكر ده مقصد دمتكلم دادئ چي مشار اليه سره دشپږو

اوصافو اخلی وروسته حکم وربانديٍ لګوی، زمخشری وایی جائز دي ( روا) چي الذين يومنون بالغيب صفت سی دِلِلْمُتَّقِين دپاره اَلَّذِيْنَ يُؤمِنُونَ بِمَا أُنْزِلَ اِلَيْکَ مبتداء

اولئک خبر وَالَّذِيْ جَاءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهٖ أُولٰئِکَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ( الزمر ٣٣)

**ترجمه** او هغه ( محمد) چي راغلی په ( خيري) رښتيا سره او هغه ( مؤمنان ) چي رښتيا يې وشميرله دا ( خبره) دغه کسان خاص دوی دي پرهيزګاران :

**تشريح:** اَلَّذِيْ سره دصلې مشار اليه مبتداء اولئک خبر دلته مسند اليه په اسم اشاره ذکر ده مقصد دالله دادئ چي مشار اليه چي ( محمد) دئ يا ( مؤمنان) دي دا مشار اليه سره دصفته را اخلی بيا حکم وربانديٍ کوي:

لنډه کتنه: دالذي څخه محمد مراد دئ که چيري دموصول نسبت واولی صلې ته واخلې (جاء بالصدق) دالذي څخه مؤمنان مراد دي که چيري دموصول نسبت دوهمي صلې ته واخلې ( وصدق به ) :

وَالَّذِيْنَ کَفَرُوْا بِاٰيَاتِ اللهِ أُولٰئِکَ هُمُ الخسرون ( الزمر ٦٣)

**ترجمه:** او هغه کسان چي کافران سوی دي په اياتونو دالله دغه کسان خاص دوی دي زيانکاران :

اِسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ فَأَنْسَاهُمْ ذِکْرَ اللهِ أُولٰئِکَ حِزْبُ الشَّيْطٰنِ ( المجادلة ١٩)

**ترجمه:** غالب سوی دئ پر دوی باندي شيطان نو هير کړي دئ شيطان له دوی څخه پند، ياد دالله دغه (هيروونکی کسان) لښکر دشيطان دئ :

## تعريفه باللام

وبالّلام للاشارة الی معهود نحو وَلَيْسَ الذَّکَرُ کَالاُنثٰی ای الذي طلبت کالتی وهبت لها اوالی نفس الحقيقة کقولک (الرجل خير من المرأة) کله مسند اليه معرفه وي په الف اللام سره ددې دپاره چي اشاره وسي ومعهود ته يا اشاره وسي ونفس حقيقة ته دلته دالف اللام څخه الف اللام معرفه مراد دئ دلته دالف اللام څخه الف اللام زائده نه دئ مراد نه الف اللام

استفهامي مراد دئ نه الف اللام اسمي مراد دئ دلته الف اللام معرفه مراد دي مثال الانسان اَلْ ته الف اللام وايي انسان ته مدخول دالف اللام وايي په انسان کي دوه شيان دي ۱-: مفهوم او ماهيت ۲- مصداق اول دانسان ماهيت حيوان ناطق دئ دويم دانسان مصداق زيد عمر بکر خالد دئ دالف اللام اشاره کله ماهيت او حقيقت ته وي کله افرادو ته وي دالف اللام اشاره دمدخول ماهيت او حقيقت ته وي بيا دا ماهيت او حقيقت ملحوظ وي په ضمن دافرادو کی دالف اللام اشاره افرادو ته نه وی مصداق ته نه وي که دالف اللام اشاره دمدخول ماهيت او حقيقت ته وه بيا دا ماهيت او حقيقت ملحوظ وو په ضمن دفرد معين کي بيا عام تر دې فرد معين يو وی دوه وی درې وی ديته الف اللام عهد خارجي وايي قاعده موصول معهود غواړي اشاره معهود غواړي اضافت معهود غواړي ضمير معهود غواړی الف اللام عهد خارجي معهود غواړي دا ټوله معهود غواړي الف اللام عهد خارجي معهود غواړي ( معهود دري قسمه دئ ۱- معهود ذکري ۲-: معهود علمي ۳-: معهود حضوري اول معهود ذکري دې ته وايي چي مخکي معهود په عبارت کي ذکر وی مثال كَمَا اَرْسَلْنَا اِلٰى فِرْعَوْنَ رَسُولًا فَعَصٰى فِرْعَوْنُ الرَّسُوْلَ، دلته په الرسول کی الف اللام عهد خاجي دئ دالف اللام اشاره د خپل مدخول ماهيت او حقيقت ته ده هغه ماهيت دالرسول هو بعثه الله تعالى الى الخلق لتبليغ الاحكام ومعه کتاب جديد دالف اللام اشاره ودغه ماهيت او حقيقت ته ده دا ماهيت او حقيت په ضمن دټولو افرادو کی ملحوظ دئ هغه افراد يو لک څلور ويشت زره (۱۲۴۰۰۰) زيات وکم پيغمبران دي خو دلته دا ماهيت ملحوظ دئ په ضمن دفرد معين کي هغه فرد معين موسي عليه السلام دئ دا فرد معين مخکي په عبارت کي وجود لري لکه کما ارسلنا الی فرعون رسولا، دويم معهود علمي دې ته وايي چي دالف اللام معهود دمتکلم او دمخاطب په علم کي وي که څه هم فی الحال معهود موجود نه وي په عبارت کي مثال اِذْ هُمَا فِى الْغَارِ په الغار کي الف اللام عهد خارجي دئ معهود په ده سره غار ثور دئ غار ثور دمتکلم چي الله دئ او دمخاطبينو چي امت دمحمد عليه السلام دئ ټولو ته معلوم دئ چی دغار څخه غار ثور مراد دئ دريم معهود حضوري دې ته وايي چي دالف اللام معهود دمتکلم او مخاطب په حضور کي وي مثال فَالْيَوْمَ نَنْسٰهُمْ كَمَا نَسُوْا لِقَآءَ يَوْمِهِمْ هٰذَا) ترجمه: نو

نن ورځ به موږ دوی هیروو لکه چي هیر کړي وو دوي ملا قات دورځي خپل چی دغه ده په
الیوم کي الف اللام عهد خارجي دئ معهود په ده سره ورځ ده هغه ورځ دمتکلم چی الله
دئ او دمخاطبینو چي کفار دئ دغه ورځ دمتکلم او دمخاطب په حضور کی ده بل مثال
**اَلْیَوْمَ اَکْمَلْتُ لَکُمْ دِیْنَکُمْ الایه** :ترجمه: نن ورځ مکمل (پوره) کړ ما تاسي ته دین
ستاسي په الیوم کي الف اللام عهد خارجي دئ معهود په ده سره ورځ ده دغه ورځ دمتکلم
او دمخاطب په حضور کی ده :

قاعده: که داشاري وروسته اسم جامد راغلی او الف اللام وربانديي داخل وو تقریبا غالبا
الف اللام عهد خارجي دئ او معهود به هم حضوري وی مثال **وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ الایة**
:

ترجمه: مه نژدې کیږي ودغې درختي ته په الشجرة کی الف اللام عهد خارجي دي
معهود په ده سره درخته ده متکلم الله دئ مخاطب ادم علیه السلام او بي بی حوا رضی الله
عنها ده دغه درخته دمتکلم او دمخاطب په حضور کي ده علامه تفتازانی وایی دالف اللام
عهد خارجي معهود صراحة وي یا کنایة وي صراحة دې ته وایي چي په عبارت کي ذکر
وي کنایة دېته وایي چي دسیاق څخه دمعهودشائبه (بویی) را معلومیږی مثال **وَلَیْسَ
الذَّکَرُ کَالْاُنْثٰی** الایة ترجمه او نه دئ نارینه په شان دده ښځي دلته په الذکر او په الانثی
دواړو کي الف اللام عهد خارجي دئ دالانثی معهود صراحة ذکر دئ هغه معهود دادئ
مثال امرأة العمران وویل **رَبِّ اِنِّیْ وَضَعْتُهَا اُنْثٰی** ترجمه: ای زما ربه واقع زه چي یم ومی
زیږاوه هغه (نذر) حال دا چي ښځه ده دلته معهود انثی ده انثی په عبارت کي صراحة ذکر
ده دالذکر معهود مذکر دئ مذکر کنایة ذکر دئ **مثال ﴿اِنِّیْ نَذَرْتُ لَکَ مَا فِیْ بَطْنِیْ مُحَرَّرًا﴾**
ترجمه بېشکه ما نذر کړي مي دې تا ته هغه شي چي په نس زما کي دئ حال دا چي هغه به
آزاد وی یعنی خالص به دبیت المقدس خذمت کوی، دلته معهود (ما) ده ما عبارت دی
دمذکر څخه که څه هم ما احتمال دمذکر او مؤنث لري لیکن دلته ما عبارت دی دمذکر
څخه ځکه دبیت المقدس دخذمت دپاره هلک وي ښځه نه وي دا معهود دمحررا څخه
کنایة معلومیږي **او الی نفس الحقیقة کقولک الرجل خیر من المرأة** دالف اللام اشارا

نفس ماهيت او حقيت ته وي دافرادو بوئ نه وي الف اللام جنسي چي پر كمه جمله داخل سي دا دئ وي لكه قضيه طبعيه په قضيه طبعيه كی حكم پر ماهيت او حقيقت لګيږی دافرادو بوئ نه وی مثال الانسان نوع نوعيت دانسان پر ماهيت او حقيقت باندی لګيږی پر افرادو نه لګيږي كه چيري دنوعي حكم ته دانسان پر افرادو باندي ولګوې نو ددې دا معنی زيد هم نوعه ده بكر هم نوعه ده خالد هم نوعه ده نوعه خو ‌دې ته وايي كلي مقول علی كثيرين مختلفين بالحقائق فی جواب ماهو: ګوره زيد پر يوه سړي صادقيږی پر كثرين باندي نه صادقيږي بل مثال الحيوان جنس تر حيوان لاندي انسان بقر غنم وغير ذالک دا ټوله دي كه دالف اللام اشاره افرادو ته سي نو ددې دامعنی انسان يو جنس دې بقر بل جنس دئ غنم بل جنس حلانكي دا ټول انواع دي له دې وجه په الحوان كي د الف اللام اشاره ماهيت او حقيقت ته دهٔ هغه ماهيت جسم نام حساس متحرک بالارادة يعنی الف اللام وايي جسم نام حساس متحرک بالارداة دغه جنس دئ مثال الرجل خير من المرأة دسړی جوړ ساخ بهتر دئ دښځي تر جوړ ساخت ته به فرد ته نه ځي ځكه په افرادو كي فرعون هم دي ډولند ټرمپ هم دئ نو دا ټول افراد خو تر ښځي بهتر نه دي ځكه په ښځو كي عائشه رضي عنها سته او ملالي ميوندي هم سته له دې وجه دسړي جوړ دښځي تر جوړ بهتر دئ ولی سړي جهاد كولای سي امام جوړيدای سي او دجمعې لمونځ كولای سي او خليفه المسلمين جوړيدای سي ښځه يو شي نه سي جوړيدای

## شپږ پنځوسم سبق دالف اللام قسمونه

(وقد يأتي لواحد باعتبار عهد يته فی الذهن كقولک ادخل السوق حيث لا عهد فی الخارج وهذا فی المعنی كالنكرة . وقد يفيد الاستغراق نحو إنَّ الانسان لَفی خسر ):

الف اللام عهد ذهنی او الف اللام استغراقي دادالف اللام جنسي قسمونه دي كه هر يو دالف اللام جلا جلا قسم دئ علامه تفتازانی وايي دعبدالرحمن قزوينی دعبارت څخه دا رامعلوميږي چی دا دواړه دالف اللام جنسي قسمونه دي ولی په الف اللام عهد ذهنی كي الف اللام ذهن دمدخول ماهيت او حقيقت ته وړي داماهيت او حقيقت بيا ملحوظ وي په ضمن دفرد منتشر كی نو ښكاره خبره ده چي دا دالف اللام جنسي قسمونه دي كه

چيرى الف اللام ذهن ډارک افرادو ته وړي بيا دالف اللام جلا قسمونه وو او خال داډ
چي الف اللام ډارک ذهن افرادو ته نه بيايي يو وار ذهن ماهيت او حقيقت ته ځي بيا ذه
افرادو ته ځي تعريفونه دهر يوه اول الف لام عهد ذهنى دې ته وايي چي دالف اللام اشا
دمدخول ماهيت او حقيقت ته وي داماهيت او حقيقت به ملحوظ وي په فرد منتشر کې

مثال **أُدْخُلِ السُّوقَ**:

دويم الف اللام استغراقي دې ته وايي چي دالف اللام اشاره دمدخول ماهيت او حقيقت
وي دا ماهيت او حقيقت به په ضمن دټولو افرادو کى وي مثال **﴿إِنَّ الانسان لَفِي خسر﴾**
که دالف اللام اشاره دمدخول ماهيت او حقيقت ته وه دا ماهيت او حقيقت ملحوظ وو
فرد کي دا فرد به خالى نه وي يا به دافرد تعيّن ذهنى او خارجى لري يا به دافرد يوازې
تعين ذهنى لري که چيري دافرد تعين ذهنى او خارجى درلودي بيا الف اللام عهد خارجي
دې که چيرى دا فرد يوازى تعين ذهنى درلودي بيا الف اللام عهد ذهنى دى، **وقد يأتي ل**
**احد**: په قد ياتى کى ضمير راجع دئ والف اللام جنسي ته، **وقد يأتي لواحد**: کله کله
راځي الف اللام جنسي دفرد منتشر دپاره **باعتبار عهديته في الذهن** په دې اعتبار چې
متکلم به تعين ذهنى ورکړي وى يعنى متکلم به په خپل ذهن کي تعين ورکړي وى مثال
ادخل السوق تا ماته ټلفون وکړ چي زه په ښار کي يم جنګ شروع دئ زه څه وکړم ما درته
وويل **ادخل السوق** بازار ته داخل سه اوس بازارونه ډير دي کوم بازار ته داخل سم لياقت
بازار ته داخل سم ميزان چوک ته داخل سم جناح روډ ته داخل سم دا جمله دئ ووايي م
حيث لا عهد فى الخارج په هغه ځاى کي چي زما او دمخاطب په مابين کي معهود خارجي
نه وي که زما او مخاطب په ما بين کي معهود خارجي وو ذکر ديو بازار وو لکه لياقت
بازار مثلانو داالف اللام عهد خارجي دئ فرق دالف اللام عهد ذهنى او دالف اللام عهد
خارجى الف اللام عهد خارجي ذهن دمدخول ماهيت او حقيقت ته وړي دماهيت او
حقيقت څخه ذهن وړي وفرد ته، الف اللام عهد ذهنى ذهن دمخول ماهيت او حقيقت
ته وړي بس نور څه نه سي کولاى بيا سباق يا قرينه ذهن دماهيت او حقيقت څخه رابا
وفرد ته يې وړى مثال ادخل السوق ته بازار ته داخل سه په السوق کي الف اللام عهد

ذهنی دئ یو وار الف اللام ذهن دمدخول ماهیت او حقیقت ته وري بیا ادخل را ولاړيږي ذهن دماهیت او حقیقت څخه راباسي وفرد ته ځکه دا ماهیت او حقیقت په ذهن کی نه سی راتلای ولی ذهن خرابه وی بل مثال﴿ اَنْ يَّأْكُلَهُ الذِّئْبُ﴾ په الذئب کی الف اللام عهد ذهنی دئ یو وار الف اللام ذهن دمدخول ماهیت او حقیقت ته وري بیا یأکل ذهن دماهیت او حقیقت څخه راباسی وفرد منتشر ته ځکه په دا ماهیت او حقیقت کی اکل نه کیږی اکل فرد کوي الف اللام عهد ذهنی دمنافق خوئی لري کله احکام دمعرفې پر جاری کیږی کله احکام دنکرې پر جاري کیږی، دمعرفی احکام وربانديِ جاري کیږی مثال الف اللام عهد ذهنی مبتدا واقع کیږی ذوالحال واقع کیږی صفت دمعرفی واقع کیږی معرفه دده دپاره صفت واقع کیږی دنکرې احکام وربانديِ جاري کیږی :

**قاعده** :جمله په حکم کي دنکرې ده له دې وجه جمله دالف اللام عهد ذهنی دپاره صفت واقع کیږي مثال ولقدامرُّ علی اللئیم یصُبنِی، په اللئیم کی الف اللام عهد ذهنی دئ یصبنی صفت دئ دااللئیم څخه :

**پوښتنه**: ستا دخبري څخه دا را معلومیږی چي دالف اللام عهد ذهنی او نکري هیڅ فرق نه سته یعنی دواړه یو شي دي ؟

جواب: دنکرې او دالف اللام عهد ذهنی ډیر فرق سته مثال الذئب ذئبٌ ذئب نکره دئ په الذئب کي الف الام عهد ذهنی دئ په ذئب کي ذهن ډارک فرد ته ځي په الذئب کي الف اللام ذهن دمدخول ماهیت او حقیقت ته وري بیا سباق را ولاړ سي ذهن دماهیت او حقیقت څخه یوسي وفرد ته دنکري او دالف اللام عهد ذهنی په اعتبار دقرینی فرق نه سته مثال ذئب ادخل السوق په ذئب کي ذهن فرد ته ځي په ادخل السوقَ کي قرینه ذهن دماهیت او حقیقت څخه راباسي وفرد منتشر ته :

**پوښتنه**: دالف اللام عهد ذهنی او نکرې څه فرق دئ ؟

جواب: قرینی ته ګوري که نه ګوري که قرینی ته ګوري فرق یي نه سته که قرینی ته نه ګوري بیا یې فرق سته ځکه عبدالرحمن قزوینی وایي وهذافی المعنی کالنکرة عبدالرحمن قزوینی داسي نه دئ ویلی چی الف اللام عهد ذهنی او نکره سواءٌ برابر دي

**وقد یفید الاستغراق** کله کله لام جنسی افاده کوي داستغراق مثال ان الانسان لفی خسر

په الانسان کي الف الام استغراقي دئ ټولو افرادو ته شامل دې دليل په دې باندي استثناء
ده هغه استثناء داده الا الذين آمنوا (وهذا ضربان حقيقي وعرفي) دحقيقي تعريف وهو
ان يراد كل فرد مما يتناوله اللفظ بحسب اللغة حقيقي دې ته وايي چې لفظ په حسب
دلغت څومره افرادو ته شامليږی هغه ټوله مراد دي مثال ﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ الله
پاک عالم دئ په ټول غيب ای غائب عنّا اوپه ټول شهاده باندي ای شاهد لنا :
**دعرفی تعريف** وهو ان يراد كل فرد مما يتناوله اللفظ بحسب متفاهيم العرف:عرفي
دې ته وايي چې لفظ په حسب دعرف څومره افرادو ته شامليږی هغه ټول مراد دی مثال
جَمَعَ الاميرُ الصاغةَ اي صاغة بلدة او مملكة امير امر وکړ چې زرگران دی راجمعه سی دلته
مراد دزرگرانو څخه دټولي دنيا زرگران مراد نه دي دلته مراد دزرگرانو څخه ديو ښار
زرگران دئ يا ديو هيواد زرگان مراد دي :
**پوښتنه**:الصاغة اسم فاعل دئ په اسم فاعل باندي چې الف اللام داخل سي په معنی
دالذی يا دالتی وي له دې وجه دلته الف اللام نه سته ځکه دلته الف اللام اسمي دئ؟
**جواب**: اسم فاعل چې په معنی دحدوث سي بيا الف اللام په معنی دالذی يا دالتي وي
اسم فاعل چې په معنی ددوام سي بيا الف اللام حرفی دئ دلته الصاغة اسم فاعل دئ په
معنی ددوام دئ:
**پوښتنه**:دا به دمازنی مذهب وي ځکه مازنی وايی الف اللام چې پر اسم فاعل باندي
داخل سي الف اللام حرفی وي بيا عام تر دې اسم فاعل كه په معنی دحدوث وي كه په
معنی ددوام وی؟
**جواب**: دا دجمهور علماء مذهب هم دئ چې اسم فاعل په معنی ددوام وي بيا الف اللام
حرفی دئ اختلاف په حدوث کي دې دويم جواب كه دا ومنم چې دا الف اللام موصولي
دئ نو بيا هم استغراق چې څرنگه په الف اللام کي راځي همدارنگه په موصول کي هم
راځي

## اووه پنځوسم سبق استغراق پر دوه قسمه دئ

**( واستغراق المفرد اشمل بدليل صحة لارجال فی الدار اذا كان فيها رجل او رجلان دون لارجل )**

استغراق دوه قسمه وو ۱ حقيقي ۲-: عرفی خبره تر خبري يا ديږي استغراقی دري قسمه دئ استغراق فی المفرد استغراق فی المنثی استغراق فی الجمع :

**اول:** استغراق دمفرد ديته وايي چي الف اللام دخپل مدخول ټول افراد را کښني باسي:

**دوهم :** استغراق دمثنی دي ته وايي چي الف اللام دخپل مدخول دوه دوه اثنين اثنين افراد راکښني باسي :

**دريم:** استغراق دجمعي دي ته وايي چي الف اللام دخپل مدخول جماعت جماعت راکښني باسی اوس استغراق په دا درو اقسامو کي په چا کی ډير دئ يعنی استغراق په چا کي اشمل دئ استغراق دمفرد اشمل دئ تر استغراق فی المثنی وفی الجمع ځکه په استغراق فی المفرد کي الف اللام ټول افراد راکښني باسي استغراق فی المثنی يو نه راکښني باسي دوه دوه راکښني باسي استغراق فی الجمع يو يا دوه نه راکښني باسي جماعت جماعت راکښني باسي بدليل **صحة لا رجال فی الدار اذا كان فيها رجل او رجلان دون لارجل** که چيري په کور کي دوه کسان وه بيا لا رجال فی الدار بالکل صحيح دئ که په کور کي يو يا دوه کسان وو بيا لارجل فی الدار نه سي ويلای ځکه دلارجل فی الدار معنی بوی درجل په دار کي نه سته :

**قاعده:** نکره تحت النفی چي راسي هلته من اسغراقيه يا مقدر وي يا ظاهر وي من استغراقيه ټول افراد راکښني باسي مثال لا رجال فی الدار لارجل فی الدار ای لا من رجال فی الدار لامن رجل فی الدار علامه تفتازانی پر عبدالرحمن قزوينی باندي سخته نيوکه کړي استغراق پر دوه قسمه دئ يو استغراق په الف اللام حرفی سره بل استغراق په نکره تحت النفی سره :

**پوښتنه:** په نکره تحت النفی کی استغراق دمفرد پر جمعه باندي اشمل دئ خو په الف اللام حرفی کی استغراق دمفرد پر جمعه باندی نسته ځکه الف اللام چي پر جمعه باندي

داخل سي نو جمعيت باطل کړي جنس جوړ کړی نو الف اللام دخپل مدخول چي جنس دئ ټول افراد راکښي باسي استغراق دمفرد هم ټول افراد راکښي باسی له دې وجه فرق يې نه سته شيخ الهند رحمه الله پر علامه تفتازانی باندي رد کړي دئ شيخ صاحب وايي که چيري موږ دقزوينی په مراد پوه سو پوښتنه به پر قزوينی ونه سي دقزوينی مراد دا دئ چي جمعه تر څو پوري پر جمعيت باقي پاته وي نو استغراق دمفرد اشمل دئ پر استغراق دجمعي باندي له دې وجه الف اللام چي پر جمعه باندي داخل سي جمعيت باطل کړي جنس يې جوړ کړي نو دده او دمفرد فرق نه سته ځکه په دواړو کي الف اللام دخپل مدخول ټول افراد راکښي باسي ځکه زموږ بحث په معنی کي دئ په لفظ کي نه دئ اوس چي الف اللام پر جمع باندي داخل سي نو جمعيت باطل کړي جنس يې جوړ کړي نو مفرد سې له دې وجه قزوينی وايي په دې صورت کي چي الف اللام پر جمعه باندي داخل سې قزوينی وايي زه داشمليت قائله نه يم قزوينی وايي چي جمعه تر څو پوري پر جمعې باندی باقي پاته وي نو استغراق دمفرد اشمل دئ پر استغراق دجمعي باندي قوم رهط لفظا مفرد دئ معنی جمعه دئ پر دې چي الف اللام داخل سي زه دلته داشمليت قائله نه يم که څه هم دا لفظا مفرد دې معنی جمعه دئ له دې وجه شيخ صاحب وايي که چيري دقزوينی په مراد سړی پوه سي نو خلګ بيا اعتراض نه وربandي کوی (ولاتنافي بين الاستغراق وافراد الاسم لان الحرف انما يدخل عليه مجردا عن معنی الوحدة ولانه بمعنی کل فرد له لامجموع الافراد عبدالرحمن قزوينی دا عبارت دسوال مقدر جواب ګرځوي:

پوښتنه: الف اللام استغراقي تقاضی دتعدد کوي مفرد تقاضی دوحدت توحد کوي له دې وجه الف اللام استغراقي او مفرد دا دواړه ضدين دي نه سره جمعه کيږی ځکه الف اللام وايي ډير افراد زما څخه واخله مدخول دالف اللام وايي زما څخه وحدت واخله؟

جواب: عبدالرحمن قزوينی وايی ولا تنافي بين الاستغراق وافراد الاسم دالف اللام استغراقی او دمدخول په مابين کي هيڅ تضاد نه سته قزوينی ددې دپاره دوه دليله وايي يو دليل دادئ لان الحرف انما يدخل عليه مجردا عن معنی الوحدة :

الف اللام استغراقي چي موږ پر مفرد داخله وو يو وار مفرد دوحدت او دتوحد دمعنی څخه خالی کوو بيا الف اللام استغراقي پر داخلوو وو له دې وجه دلته وحدت نه ستره يوائي تعدد دئ دويم دليل دادئ ولانه بمعنی کل فرد له لا مجموع الافراد يوه کلمه ده يو يو شي را اخلی ټول په يو ځای نه را اخلی هغه کلمه چي يو يو شي را اخلی دې ته کلُ فرد فرد وايی چي ټول په يو وار راخلی دې ته مجموع الافراد وايي الف اللام استغراقي چي پر مفرد داخل سي مراد ور څخه کل فرد فرد دئ يعني الف اللام چي پر مفرد داخل سي يو يو فرد رااخلی له دې وجه يو يو فرد راخسيتل که څه هم وروسته ډير افراد جوړ سي نو الف اللام خو يو يو فرد را کشوي نو دايو دئ مدخول هم يو دئ له دې وجه الف اللام او مفرد سره جمعه کيږي ځکه الف اللام تقاضیٰ دتعدد نه کوي (ولهذا امتنع وصفه بنعت الجمع) :

پوښتنه: څه وخت چي الف اللام استغراقي پر مفرد داخليږي ته وايي زه مفرد دوحدت څخه باسمه پر الرجل کي درجل ښه دواحد ده واحد نه دئ نو پوښتنه دا ده چي درجل ښه دواحد ده او واحد نه دئ نو تعدد پکښي راغلی نو ښه دغه مفرد چي دالف اللام استغراقي مدخول جوړسي نو بيا دغه مفرد دجمعي دپاره صفت ولي نه جوړوي او جمعه دده دپاره صفت ولی نه جوړوی ځکه که جمعه دده دپاره صفت سي نو تطبيق راځي او که دې دجمعی دپاره صفت سي هم تطبيق راځي ځکه واحد نه دئ او حال دادئ چي ته دا جائز نه بولې ممتنع يې بولی ممتنع بلل دا پر دې دلالت کوي چي دا تا دځانه جوړه کړه چي ما رجل دوحدت څخه ايستلي دئ دا پوښتنه علامه تفتازانی کړي ده وروسته علامه په مختصر کي ددي جواب ورکوی علامه وايي نحاة اکثره لفظ ته اعتبار ورکوي له دې وجه رجل لفظا مفرد دئ مفرد دجمعی دپاره صفت نه جوړيږي يعنی دظاهري ښې دوجي صفت نه جوړيږی کله کله نحاة دمعنی اعتبا کوی مثال او الطفل الذين لم يظهروا او الطفل مفرد دې الف اللام استغراقي پر داخل دئ دلته او الطفل موصوف دئ الذين لم يظهروا صفت دئ:

۱-: وبالام للاشارة الی معهود ۲-: او الی نفس الحقيقة:

**اجراء اللام**

۱: وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْاُنْثٰى (آل عمران ٣٦)

تشريح: په الذكر كي الف اللام عهد خارج دئ دالذكر معهود مذكر دئ مذكر كنايةً ذكر دئ :

په دي قول كي اِنِّيْ نَذَرْتُ لَكَ مَا فِيْ بَطْنِيْ دلته معهود لفظ ( ما ) ده ما عبارت دمذكر څخه ځکه دبيت المقدس دخذمت لپاره هلك وي انجلی نه وي دا معهود دمحررًا څخه كناية معلوميږي داَلْاُنْثٰى معهود صراحة ذكردئ پەدي قول دالله كي رَبِّ اِنِّيْ وَضَعْتُهَا اُنْثٰى :

فائده: معهود دري قسمه دئ صريحي علمي حضوري :

## اجراء اللام

| المثال | الف اللام | القسم | د معهود |
|---|---|---|---|
| اَلْمِصْبَاحُ فِيْ زُجَاجَةٍ ( النور ٣٩) | المصباح | عهد خارجي صريح: | مصباح |
| الزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا: ( النور ٣٩) | الزجاجة | عهد خارجي | صريح: زجاجة |
| فَعَصٰى فِرْعَوْنُ الرَّسُوْلَ ( المزمل ١٦) | الرسول | عهد خارجي | صريح: رسولا |
| بِيَدِهٖ عُقْدَةُ النِّكَاحِ ( البقرة ٢٣٧) | النكاح : | عهد خاجي: | صريح: لاتعزموعقدة النكاح |
| اَلطَّلَاقُ مَرَّتَانِ : ( البقرة ٢٢٩) | الطلاق | عهد خارجي: | صريح: والمطلقات يتربصن |
| حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ :البقرة ٢٢٩) | الصلواة | عهدخارجي: | علمي: الصلواة الخمس |
| وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى ( البقرة ٢٢٩ | الصلواة الوسطى: | عهد خارجي: | علمي: صلاة العصر |

ځکه دا معلوم دئ ومخاطب اول ته چي هغه نبی عليه السلام دئ :

إِذْهُمَا فِي الْغَارِ : ( التوبة ۴۰) الغار عهد خارجي:

علی: غار ثور

اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ ( المائده: اليوم : عهد خارجي: حضوري

ورخ

وَلَاتَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ : ( البقرة ۳۵) الشجرة: عهد خارجي: حضوري

درختہ

هٰذِهِ الْقَرْيَةَ ( البقرة ۵۸) القرية عهد خارجي: حضوري

کلی

فَمَا لِهٰؤُلَاءِ الْقَوْمِ ( النساء ۷۸)

اِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ ( طه ۱۲)

## اجراء اللام

| المثال | الف اللام | القسم |
| --- | --- | --- |
| الرِّجَالُ قَوَّامُوْنَ عَلَى النِّسَاءِ (النساء ۳۴) | النساء | جنسی |
| فَانْكِحُوْا مَاطَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ (النساء ۳۶) | النساء | جنسی |
| اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى (البقرة ۱۷۸) | (الحر، العبد، الانثی) | جنسی |
| اَوِ الطِّفْلِ الَّذِيْنَ لَمْ يَظْهَرُوْا عَلٰى عَوْرَاتِ النِّسَاءِ (النور ۳۱) | اوالطفل | استغراقی |
| اِنَّ الْاِنْسَانَ خُلِقَ هَلُوْعًا ( المعارج ۱۹) | ( الانسان) | استغراقی |

شهرُ رمضان الذي انزل فيه القران هدًا للناس وبينت من الهدى والفرقان فمن شهد منكم الشهر فليصمه ومن كان مريضاً او على سفر فعدة من ايام اخر يريد الله بكم اليسر ولايريد بكم العسر ولتكملوا العدة ( البقرة ۱۸۵)

الهدی: عهد خارجی: صریح: هدی

العدة // // // فعدة من ایام اخر

الفرقان جنسی الناس جنسی

الیسر، جنسی العسر جنسی

القران: جنسی پر صحیح قول باندې

## ١-: استغراق حقیقي ٢-: استغراق عرفی :

## اجراء اللام الاستغراقي والعرفی

١: عَالِمُ الغَيْبِ والشَّهَادَةِ (الانعام ٧٣) ای کل غائب وشاهد:

عَالِمُ الغَيْبِ والشَّهَادَةِ (التوبة ٩٤)

عَالِمُ الغَيْبِ والشَّهَادَةِ (الحشر ٢٢)

٢: جَمَعَ الْأَمِيرُ التُّجارَ : ای جمع الامیر تجار مملکته :

واستغراق المفرد اشمل :

إِنِّي وَهَنَ العَظْمُ (مريم ٤)

ترجمه: وویل ( زکریا ) ای ربه زما بیشکه زه چي یم سست ضعیف سوی دي تول هډوکی یعنی هر هډوکی ضعیف سوی :

## تعریفه بالاضافة

(وبالاضافة لانها اخصر طریق نحوع هوای مع الرکب الیمانین مصعد، جُنَیْبٌ وجثمانی بمكّة موثق ) کله به مسند الیه معرفه وي په اضافت سره ځکه اضافت اخصر طریقه ده:

پوښتنه: اسم جلاله ضمیر علم دا تر اضافت اخصر دئ؟

جواب: اضافت اخصر دئ په نسبت وموصول او صلی ته مثال هوای مع الرکب الیمانین مصعد ترجمه زما محبوبه هم تلونکی ده او دا تابع ده په تلو کی دبل چا یا دقافلې مشرا

ده **وجثمانی بمکة موثق** او حال دادئ چي زه بندی یم په مکه کی یعنی زړه او روح زما دهغه محبوبي سره تللي دي هسي خالی جسد زما په دې بندی خانه کي پاته دئ هوای، مضاف او مضاف الیه دئ او دا **هوای** مسند الیه دئ مبتدا ده دلته **هوای** اخصر دئ تر الذی اهواه

(**او لتضمنها تعظیماً لشان المضاف الیه او المضاف او غیرهما**)

مسند الیه معرفه کیږی په اضافت سره له دې وجه چي اضافت په بغل کي اخلي تعظیم دمضاف الیه یا تعظیم دمضاف یا تعظیم دغیر دمضاف الیه او مضاف مثال دتعظیم دمضاف الیه **عبدي حضر** زما غلام حاضر دئ دلته عبد مضاف یاء دمتکلم مضاف الیه ده دلته تعظیم دمضاف الیه دئ ځکه هر څوک چي غلام لري دا غټه خبره ده مثال دتعظیم دمضاف **عبد الخلیفة رکب** دخلیفه غلام سپور دي دلته عبدُ مضاف الخلیفة مضاف الیه دلته تعظیم دمضاف دئ مثال دغیر دمضاف الیه او مضاف **عبد السلطان عندي** دباچا غلام زما سره دئ :

**پوښتنه:** په عندي کي یاء مضاف الیه ده له دې وجه دا خو تعظیم دغیر نه سو ؟

**جواب:** مراد دغیر څخه دا دئ چي دمسند الیه په طرف کي به نه وی (**او تحقیراً للمضاف**)

یا به تحقیر دمضاف وی مثال **ولد الحجام حاضر** دحجام زوی حاضر دئ ولدَ مضاف الحجام مضاف الیه دلته تحقیر په مضاف کی دئ علامه تفتازانی درې نوري نکات ویلي دي:

**اوله نکته** کله به تفصیل دمسند الیه متعذره وي نو زه مسند الیه په اضافت سره ذکر کړم مثال **اتفق اهل الحق علی کذا** اهل حق متفق سوه پر دې کار دلته تفصیل دمسند اله متعذره دئ ځکه دټولی دنیا اهل حق ذکر کول متعذره دي :

**دویمه نکته** : کله به تفصیل دمسند الیه متعسر وي مثال **اهل البلد فعلوا کذا** اهل بلد والادا کار وکړ دلته تفصیل دمسند الیه ممکن دئ خو دیو ښار علماء ټول ذکر کول مشکل دئ:

دریمه نکته کله به دمسند الیه دتفصیل لپاره یو مانع ولاړ وي مثال علماء البلد حاضرون دلته که ته یو عالم ذکر کوي یا دوه ذکر کوي نو دریم عالم وایي دده نوم دئ اول ذکر کړ زما نوم دئ ولی اول نه ذکر کوي .
۱-: تعظیم دمضاف الیه ۲-: تعظیم دمضاف ۳-: تعظیم دغیرهما :

## اجراء الاضافة

| المثال | اضافة |
|---|---|
| بِعَبْدِهٖ (الاسراء ۱) | للتشریف |
| عِبَادُنَا (الکهف ۶۵) | للتشریف |
| بُيُوْتَ النَّبِيِّ (الاحزاب ۵۳) | للتشریف |
| فَنَفَخْنَا فِيْهِ مِنْ رُّوْحِنَا (الانبیاء ۹۱) | للتشریف |
| نَاقَةَ اللّٰهِ (الشمس ۱۳) | للتشریف |

## اته پنځوسم سبق تنکیره

(واما تنکیره فللافراد نحو وَجَاءَ رَجُلٌ مِنْ اقصا الْمَدِيْنَةِ يَسْعٰى)

زه متکلم یم ته مخاطب یې زه مسند الیه نکره راوړم معرفه یې نه راوړم زه متکلم مخاطب ته دا ورښکاره کوم چي دا کار دیو چا څخه صادر سوي دی که ته وایي هغه څوک دئ نوز وایم دهغه سره نه زما کار دئ نه ستا کار دئ یوازی ما تاته دا معلومه کړه چی دافعل دیو فرد ما څخه صادر دئ:

(واما تنکیره فللافراد تنکیر دمسند الیه دپاره دافراد وي یعنی متکلم مسند الیه نکره راوړي ددې دپاره چي متکلم مخاطب ته وایي دافعل دفرد ما څخه صادر دئ دهغه سره نه زما کار سته نه ستا کار ورسره سته نه زما غرض تعلق ورسره لري نه ستا غرض تعلق ورسره لري مثال وجاء رجل من اقصی المدینة یسعی ترجمه او راغلي یو سړي دښار له آخره

دې حال چي راځغستله يې سړي راغلي په منډه منډ كه ته وايي داسړي څوک دئ نو متكلم مخاطب ته وايي ددې سړي نوم ته څه کوي ددې سره نه ستا کار سته نه زما کار ورسره سته پر مخ الله وايي ﴿قَالَ يٰمُوسَىٰٓ إِنَّ الْمَلَأَ يَأْتَمِرُونَ بِكَ لِيَقْتُلُوكَ فَاخْرُجْ إِنِّي لَكَ مِنَ النّٰصِحِينَ﴾ ترجمه: وويل اي موسى بيشكه مشران مشورې كوي په تا كي دپاره ددې چي ووژنی تا پس ووځه ته (له مصره) بيشكه زه يم تاته له نصيحت كونكی څخه اوالنوعية نحو﴿ وعلى أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ﴾ تنكير دمسند اليه كله دنوعيت دپاره وي مثال وعلى ابصار هم غشاوة ترجمه ددوي پرسترګو به خاص قسم پرده وي يعنی ددوي پر سترګو به يو نوعه دپردي وی هغه نوعه دپردي تعامي عن الحق ده تعامي عن الحق دامعنی په زوره سترګي پټول دحق څخه تعامي باب دتفاعل دئ د تفاعل دباب يوه خاصه داده فاعل خپل ځان په زوره صاحب مآخذ جوړول دا معنی به يې نه كوي چي ددوي پر سترګو باندي پردې دي ولی بيا پوښتنه درڅخه كيږي هغه پوښتنه داده چي ددوي پر سترګو باندي ميخونه كومه دي ولی پر دي ميخونه غواړي ددې دپاره چي بيا ورباندي راوځړيږي له دې وجه په غشاوة كي تنوين دنوعيت دئ (اوالتعظيم او التحقير كقوله شعر له حاجب عن كل امر يشينه وليس له عن طالب العرف حاجب) كله به تنكير دمسند اليه دتعظيم او دتحقير دپاره وي شاعر وايي زما محبوب چي غلط كار كوي ده لره مانع عظيم وي چي ښه كار كوی بيا ده لره ضعيف مانع نه وي (له حاجب ممدوح لره لوی مانع وي عن كل امر دهر كار داسي كار يشينه چي دې عيب جنه كيږی وليس له نه سته ده لره عن طالب العرف دنيک طلبه حاجب كمزوري مانع په اول حاجبٌ كي تنوين دتعظيم دپاره دئ په دويم حاجب كي تنوين دتحقير دپاره دئ (اوالتكثير) كله به تنكير دمسند اليه دپاره دتكثير وي (كقولهم ان له لابلا وانّ له لغنما) إنّ له لابلا: واقع ده لره ډير اوښان دي. وانّ له لغنما: واقع ده لره ډير پسونه دی (او التقليل كله به تنكير دمسند اليه دپاره دتقليل وي (نحو﴿ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ﴾ لږ خاشه راضي كول خدای پاک جل

جلاله ډیره لویه ده دجنت تر نعمتو ( وقد جاء للتعظیم والتکثیر ) کله به تنکیر دمسند
الیه دپاره دتعظیم او دتکثیر وی (نحو وَإِنْ يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ ای ذو عدد کثیر
او ایات عظام خدای پاک نبي علیه السلام ته وایي کوم څوک چي ستا تکذیب کوي دا
نوی قصه نه ده دازړه قصه ده وان یکذبوک که چیري دوی ستا تکذیب کوي ابوجهل
ابولهب وغیره فقد کذبت رسل نو په تحقیق سره دډیرو رسولانو تکذیب سوی دئ د
تکثیر دئ دډیروغټو رسولانو تکذیب سوي دئ دا تعظیم دئ ( وقد یکون للتحقیر
والتقلیل) کله به تنکیر دمسند الیه دپاره دتحقیر او دتقلیل وي (نحو حصل لي منه شيء
ما ته یو څه زار راورسیدل :

**قاعده:** دتعظیم او دتحقیر تعلق دکیف سره دي دتکثیر او دتقلیل تعلق دکم سره دئ دد
مثال په ساده اندازباندي یو سړي ته میلمه راروان دي دی واستقبال ته په ښه اعلی مو
کي ورغلی او کور ته یې راوستي دا تعظیم دئ ددې کیف برابر دئ خو که دې واستقبال
ورغلی او ډیر سیکلان یې وروستل دا تکثیر دئ ددکم زیات دئ.(ومن تنکیر غیره للافراد
او النوعیة) تنکیر دغیر دمسند الیه دپاره دافراد وي یا دپاره دنوعیت وي نحو (وا
خلق كُلَّ دَآبَّةٍ مِّن مَّآءٍ) خدای پاک پیدا کړي ده هره دابه دابو څخه دا افراد دئ خدای پا
پیدا کړی ده هر نوعه ددابي من ماء دنوعي داوبو څخه دا نوعیت دئ :

ولتعظیم نحو( فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ) کله به تنکیر دغیر دمسند الیه دپ
دتعظیم وی خدای پاک وایی سود مه کوي سود پریږدی که تاسو سود کوي سود
پریږدئ فاذنوا بحرب من الله ورسوله ترجمه نو اګاه سئ تاسي په لوی جنګ له (طر
دالله او د رسوله دده.

## نه پنځوسم سبق وللتحقیر

( وللتحقیر نحو( إِن نَّظُنُّ إِلَّا ظَنًّا ) کله به تنکیر دغیر دمسند الیه دپاره دتحقیر
مثال ان نظن الا ظنا ترجمه موږ ګمان نه کاوو مګر ضعیف ګمان په الاظنا کي تن

دتحقير دپاره دئ كه تنوين دتحقير دپاره نه سي مفعول مطلق للنوع به نه سي مفعول مطلق للتكايد به سي مفعول مطلق للتاكيد نه صحيح كيږي ولي په مفعول مطلق للتاكيد كي استثناء نه صحيح كيږي ځكه استثناء دشي دخپل نفس څخه راځي مفعول مطلق للتاكيد دې ته وايي چي په فعل كي يو مصدر وي مفعول مطلق للتاكيد يوازى دهغه دمصدر تاكيد كوي مفعول مطلق للنوع دې ته وايي چي په فعل كي يو مصدر وي هغه مصدر جنس وي مفعول مطلق دهغه جنس نوعه بيانوي مثال جَلَسْتُ جِلسةَ القَارِي په مفعول مطلق للنوع كي استثنا صحيح ده له دى وجه ظن پر دوه قسمه دئ ١-: ظن عظيم ٢-: ظن ضعيف اِن نظنُ الا ظنًا موږ گمان نه كاوو مگر ضعيف گمان.

فائده: كله مسند اليه نكره وي كله غير دمسند اليه نكره وي :

## اجراء تنكير المسند اليه

| المثال | تنكير دمسند اليه | المراد به |
|---|---|---|
| جَاءني رجل | رجل | اى فرد من اشخاص الرجال |
| وَجَاءَ رَجُلٌ مِنْ اَقْصَى المَدِيْنَةِ ( القصص ٢٠) | رجل | افراد |
| وَجَاءَ رَجُلٌ مِنْ اَقْصَى المَدِيْنَةِ ( يس ٢٠) | رجل | افراد |
| وَعَلَى اَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ ( البقرة ٧) | غشاوة | نوع |
| هُوَالَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ طِيْنٍ ( الانعام ٢) | من طين | نوع |
| وَلَكُمْ فِي القِصَاصِ حَيواةٌ | حيوة | نوع |
| لِكُلِّ داءٍ دواءٌ | داء، دواء | لكل نوع من الداء نوع من الدواء |
| عَلَى حيواة (البقرة ٩٦) | حيواة | تعظيم |
| وَهُدًى (البقرة ٩٧ | هدًى | تعظيم |
| وَلَكُمْ فِي القِصَاصِ حَيواة ( البقرة ١٧٩) | حيواة | تعظيم |

| | | |
|---|---|---|
| خَيْرَنِ الوَصِيَّةُ (البقرة ١٨٠) | خيرا | تحقير |
| أُوتُوا نَصِيبًا (آل عمران ٢٣) | نصيبا | تحقير |
| أَجْرًا عَظِيمًا (النساء ٤٠) | اجرا عظيما | تعظيم تكثير |
| اِخْتِلَافًا كَثِيرًا (النساء ٨٢) | كثيرا | تكثير |
| جَاءَكُمْ رَسُولٌ (التوبة ١٢٨) | رسول | تعظيم |
| عَزِيزٌ (التوبة ١٢٨) | عزيز | تعظيم |
| رَءُوفٌ رَحِيمٌ (التوبة ١٢٩) | رؤف رحيم | تعظيم |
| إِلَّا قَلِيلًا: (النساء ٨٣) | قليل | تقليل |
| إِنَّ لَنَا لَأَجْرًا (الاعراف ١١٣) | لاجرا | تكثير |
| وَرِضْوَانٌ مِنَ اللهِ أَكْبَرُ (التوبة ٧٢) | رضوان | تقليل |
| سُبْحَانَ الَّذِيْ أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ لَيْلًا (الاسراء ١) | ليلا | تقليل |
| لَوْكَانَ لَنَا مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ (آل عمران ١٥٤) | شيء | تقليل |
| وَإِنْ يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ (فاطر ٤) | رسل | ذو عدد كثير والوايات عظام |

فائده: تنوين كله كله دتحقيراو تقليل دپاره رائحي :

مثال: إعطانى شيئا (شيئا) حقيرا قليلا

المثال

| | | |
|---|---|---|
| | تنكير دغير دمسند اليه | تنوين |
| وَاللهُ خَلَقَ دَآبَّةٍ مِنْ مَّاءٍ (النور ٤٥) | افراد | نوع |

تشريح: اما على اعتبار الافراد فيكون التقدير والله خلق كل نوع من انواع الدواب من نوع من الماء هذا تقدير للنوع، هذا ذكرٌ، ص٤٩ (ذكرٌ) نوع اى نوع من الذكر: فيكون التقدير والله خلق كل فرد من افراد الدواب من نطفة معينة هذا تقدير للافراد:

| | | |
|---|---|---|
| فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ (البقرة ۲۷۸) | بحرب | تعظیم |
| إِن نَّظُنُّ إِلَّا ظَنًّا (الجاثیة ۳۲) | (ظناً) | تحقیر ای ظناً حقیرا ضعیفاً |
| وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُودَ وَسُلَيْمَانَ عِلْمًا (النمل ۱۵) | علماً | تعظیم تکثیر |

## شپیتم سبق وصفه

**(واما وصفه فلکونه مبیناً له کاشفاً عن معناه):**

جاءنی رجلٌ عالم وصف چي په معانی کی ذکر سي دوې ترجمي يې کیږي یوه ترجمه يې داده **واما وصفه** دمسند الیه صفت بیاڼول یعنی دموصوف صفت راوړل دغه معنی مصدري ته هم وصف وایي جاءنی رجل عالم کومه کلمه چي په ترکیب کي صفت واقع ده دې ته هم وصف وایي موږ علامه تفتازانی ته وویل په **اما وصفه** کي کومه معنی واخلو ستا څنکه مشوره ده ته مشوره راکړه علامه تفتازانی وایي دواړي معنی ګانی واخله موږ علامه تفتازانی ته وویل بیا هم کومه معنی احسنه (ښایسته) ده علامه تفتازانی وایی چي ترتیب ته وګوري سیاق او سباق ته وګورې اندازه دقزوینی ته وګوري ما ته دلته وصف په معنی مصدري باندي ښه خوند کوي په نسبت دعین وصف ولي قزوینی پرمخ وایی اما **بیانه اما توکیده اما الابدال منه** ددې ټولو څخه مقصد دادئ تابع راوړل دبیان تابع راوړل دتاکید تابع راوړل دابدال دلته عین بیان عین تاکید عین ابدال نه دئ مراد راوړل، راوړل مراد دي نو په **اما وصفه** کي ښه خبره داده چي ترجمه په اما اتیان الوصف سره وشي ددې دپاره چي دټول نظم تطبیق راسي (**فلکونه** موږ علامه ته وویل چي د**فلکونه** ضمیر چا ته راجع دئ تفتازانی وایی د**فلکونه** ضمیر عین صفت ته راجع دئ څکه عین صفت چی عالمٌ دئ دا مبین وی دمسند الیه (موصوف) کاشف وي دمسند الیه (موصوف) وصف راوړل دمسند الیه دپاره نه مبین وي نه کاشف وي دا **ما وصفه** څخه وصف راوړل واخله دلکونه دضمیر څخه عین وصف واخله نو صنعت استخدام سو صنعت

استخدام دی ته وایي چې پرمرجع راسي یوه معنی واخله چي پر راجع راسي بله معنی
واخله چې پر مرجع راسي دوصف راوړل معنی واخله نو تطبیق به دنظم سره راسي پر
راجع چي راسي عین وصف واخله ځکه عین صفت مبین وي عین صفت کاشف وي مبینا
له کاشفا عن معناه ) **کاشفا عن معنا** دی دئ لکه عطف تفسیر دمبینا له وضاحت کشف پر
دوه قسمه دئ یو وضاحت او کشف دادئ چې تا ته دموصوف ذاتیات حد په لاس درکړی
بل وضاحت او کشف دادئ چي تاته دموصوف مصداق په لاس درکړی مثال په کلي کي
ددرو کسانو نوم زید دئ خو یو زید تاجر دئ بل زید عالم دئ بل زید جاهل دئ هروخت چي
تا وویل زیدن التاجر جاءنی ما ته راغلی هغه زید چي تاجر دئ دلته دزید کشف په التاجر
سره وسو خو دا کشف دموصوف دمصداق دئ خو دلته زموږ دا کشف او وضاحت نه دئ
مراد زموږ هغه کشف مراد دئ چې تا ته دموصوف حد ذاتیات په لاس درکړی دخبري
خلاصه داده وصف کله کشف کوي تا ته مصداق په لاس درکړي وصف کله کشف کوی
تا ته مفهوم په لاس درکړی دلته دمبینا له او کاشفا څخه هغه کشف مراد دئ چې تا ته
مفهوم په لاس درکړی که په معانی کی دمبینا له او کاشفا عن معناه خبر راغله نو دا معنی
دلته صفت دموصوف تعریف کوي مثال (**کقولک الجسم الطویل العریض العمیق**)
دجسم تعریف دادئ چې طول عرض عمق ولري الطویل العریض العمیق دا صفت کاشفه
دئ میر سید سند وایي زه له تا پوښتنه کوم الطویل صفت کاشفه دئ وایي الطویل صفت
کاشفه دئ میر سید وایی یواځي الطویل دجسم تعریف نه دئ دجسم تعریف طویل عریض
عمیق دئ یعنی دا دري سره چې مجموع راواخلي بیا دجسم تعریف جوړیږی میر سید
عجیبه نکته وایی میرسید وایی په صفت کاشفه کی قانون دادئ چې څونه صفات دئ دا
ټوله به یو ځای کیږی بیا صفت کاشفه جوړیږی دهغه صورت دادئ چې اول مقید کړه باقي
نور ورته قیدونه کړه بیا یې صفت دموصوف جوړ کړه ګویا کي دالجسم الطویل العریض
العمیق ترجمه دارنګه ده الجسم الذاهب فی جهات الثلثة جسم تګ کونکي دئ په طول
کي تګ کونکي دئ په عرض کي تګ کونکي دئ په عمق کي ددې مثال په عربیت کي سته
چي په هره کلمه باندي جلا جلا اعراب جاري وي خو ټوله کلمات راجمع کیږی بیا صفت
جوړیږي سید سند وایي وو مثال هذا حلو حامض هره یوه جلاجلا کلمه ده اعراب ور

باندي جاري دئ خو دواړي کلمات چي يو ځای سي يوه معنی يې راوزي مثال هذا مرٌ له دې وجه طويل عريض عميق دا ټوله سره راجمعه کېږی بيا صفت جوړېږی او دټولو ترجمه په الجسم الذاهب فی جهات الثلثة سره کېږی، **الجسم الطويل العريض العميق يحتاج** د محتاجه دئ **الی فراغ** وخالی ځا ته **يشغله** چي مشغوله کړی داخلی ځا :

**(ونحوه فی الکشف قوله شعر ان الذی جمع السماحة والنجدة والبرّ والتقی جمعا الالمعی الذی يظن بک الظن کان قد رای وقد سمعا)** دقزوينی يو عادت دئ هغه دا چي ما بعد وماقبل ته څه سوی وی پوره پوره نه وی سوی په هغه صورت کی دی دنحوه کلمه زياتوی په دې شعر کي **الالمعی** موصوف **الذی يظن** الی آخره دا صفت دئ **الذی يظن** عين ذاتيات نه دی دويم **الالمعی** مسند اليه نه دئ په دا دوو خويو کي الذی دماقبل څخه جلا دئ په يو ځای کي لږ ورته سوی دئ هغه دا چي الذی دالمعي څه ناڅه کشف وضاحت کوی له دې وجه الذی صفت کاشفه دئ دالمعي دپاره خو داسي صفت کاشفه نه ده لکه الجسم الطويل العريض العميق ولی الذی دماقبل څخه په دوو خويو کي بيل دئ به يو خوی کی الذی څه ناڅه ماقبل ته سوی علامه تفتازانی وايي دالمعي خپله ذاتی ترجمه داده **الذکی المتوقّتُ** ذکاوت پردوه قسمه دئ يو قسم ذکی هغه دئ ذهن يې تيز وي خو داسي تيز نه وی چي باقاعده يې دماغ شغلې پورته کوي بل قسم ذکي هغه دئ چي ذهن يې دومره تيز وي چي دماغ يې باقاعده شغلې پورته کوي ودغه پول تيز ته المعي وايي دالمعي ذاتي معنی الذکی المتوقت دئ خو دالمعي سره الذی يظن بک الظن الخ دا لازم دئ چي يو سړي دومره ذهين وی چي سړي ته وګوري او په دې سړي کی يوه دقيقه ګمان وکړي داسی خبري به ددې سړي په باره کي پيش کړي ته چی وايي ده ليدلی دئ داخبري يا يې دده څخه اوريدلي دي ودغه ذکي تيز ذهين سړي ته المعي وايی المعي په ترکيب کي مسند دئ خبر دماقبل څخه **ان الذی** هغه سړي **جمع السماحة** چي سخا يې جمعه کړه ده **والنجدة** چي ديلاوري يې جمعه کړي ده **والبرّ** چي نکي يې جمعه کړي ده **جمعا** از روي جمعه هغه سړي **الالمعی** دئ **الذی** هغه معٰی **يظن بک الظن** چي په تاباندي ګمان کوي

**الظن** گمان کول **کان قدر ای وقد سمعا** لکه تا چې وینی او ستا ده اوري (**او مخصصا نحو زيد التاجر عندنا**):

قاعده: مخصص دتخصیص څخه دئ تخصیص دوو شیانو ته وایي یو تقلیل دشرکاء بل رفع داحتمالاتو په موصوف کي شرکاء وي صفت راسی شریکان ختم کړي دي ته هم تخصیص وایي په موصوف کي احتمالات وي صفت راسي احتمالات ختم کړي دیته هم تخصیص وایي دمعانی په ژبه باندي تقلیل دشرکاء رفعه داحتمالاتو دواړو ته دمعانی په ژبه تخصیص وایی هر هغه وخت که دنکري صفت بیان سو دا تقلیل دشرکاء کوي هر هغه وخت که دمعرفی صفت بیان سو دارفعه داحتمالاتو کوي مثال جاءنی رجل مؤمنٌ رجل ددې امکان لري چي عالم دئ وي رجل ددې امکان لري چی جاهل دئ وي رجل ددې امکان لري چي مؤمن دي وي رجل ددې امکان لري چي کافر دئ وي دا ټوله امکانات په رجل کي سته څه وخت چی تا دمومن قید درجل سره ولګوي تقلیل دشرکاء راغلی جاءنی زیدن التاجر زید احتمال دتاجر او دغیرتاجر ددواړو لري څه وخت چي تا زید متصف کړ په التاجر سره احتمال دغیر تاجر ختم سو اهل معانی دواړو ته صفت مخصص وایي نحو یان وایي که صفت دنکري وو بیا صفت مخصصه دئ که صفت دمعرفه وو بیا صفت موضحه دئ **او مخصصا نحو زيد التاجر عندنا** طالبانو دعلم نحو والا په نیز دا مثال دصفت مخصصه نه دئ (**او مدحا او ذما نحو جاءنی زيد العالم او الجاهل حيث يتعين قبل ذكره**) یا به صفت مادحه وي یا به صفت ذامه وي مثال الاول جاءنی زید العالم مثال الثانی جاءنی زید الجاهل دا هغه وخت چي مسند الیه معین وي مخکي تر وصف که مسند الیه مخکي معلومه نه وه بیا صفت مخصصه دئ (**او تاكيدا نحو امس الدابر كان يوما عظيما**) کله به صفت مؤکده وي صفت مؤکده دي ته وایي چي دصفت کومه معنی ده هغه معنی به په موصوف کي پر ته وي مثال **امس الدابر كان يوما عظيما** امس تیري سوی زمانی ته وایي الدابرهم تېر سوې زمانی ته وایي دلته **دابر** صفت مؤکده دئ **دامس** دپاره علامه تفتازانی وایي موصوف کله کله ددې دپاره وی متکلم مخاطب ته وایي پام کوا

چي دموصوف څخه فرد ما وانه اخلی متکلم مخاطب ته وايي دموصوف دجنس خاصه به صفت جوړ کړي ددې دپاره چې دموصوف ټول افراد واخسيتل سي يعنی دپاره دتعميم او داحاطي دافرادو مثال ﴿وَمَامِنْ دَآبَّةٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا طَآئِرٍ يَّطِيْرُ﴾ دلته فی الارض صفت دئ ددآبة څخه فی الارض دجنس دابة خاصه ده ځکه دابة کل ما يدب علی الارض ته وايي ترجمه نه سته يو دابه له دابو په ځمکه نه سته يو مرغه له مرغانو چي الوزي :

قاعده: هر ځای که فعل ذکر سو وروسته اسم اشاره راغله داسم اشاري مشار اليه دفعل مصدر وونو به اسم اشاره بعيده راوړی.

## اجراء الصفة

| المثال | الموصوف | الصفة | القسم |
|---|---|---|---|
| الجسم الطويل العريض العميق | (الجسم) | (الطويل، العريض العميق | صفة كاشفة |

تشريح: دغه اشياء ( الطويل العريض العميق) مبينه دي ماهيت لره دجسم ځکه دا جوهر دئ جوهر قابل دابعاد ثلثة وي ا( ای الطول والعرض والعمق)

| المثال | الصفة | القسم |
|---|---|---|
| هُدًى لِلْمُتَّقِيْنَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصلوة وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ( البقرة ۳۲ | (الذين يؤمنون باالغيب ومما رزقناهم ينفقون) | صفة كاشفة |

تشريح: دغه صفات( ايمان بالغيب اقامة الصلواة انفاق فی سبيل الله ) مبينه دي دمتقي څخه په دارنګه باندي چي متقي واجبات کوي دمنهياتو څخه ځان ساتي نو ګويا کي داده حد دئ ځکه دشان څخه ددغه صفاتو استجرار دټولو طاعاتو ده او فاعل ددغه صفاتو به حمل کيږي پر اجتناب باندي چي ځان وساته دمحظوراتو څخه :

| المثال | الموصوف | الصفة | القسم |
|---|---|---|---|
| اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ( البقرة ۱۶۳) | اله | واحد | صفة كاشفه |
| وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ (البقرة ۲۲۱) | لعبد | مؤمن | مخصصه |
| النِّسْوَةِ الّٰتِيْ ( يوسف ۵۰) | النسوة | التي | // // |
| وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ( الاحزاب ۷۰) | قولا | سديد | // // |

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ (الفاتحة) | الصراط | المستقیم | // // |
| بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | | الرحمن | الرحيم |

مادحه

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ (النحل ۹۸) | الشیطان | الرجیم | ذامه |
| نَفْخَةٌ وَاحِدَةٌ (الحاقة ۱۳) | نفخة | واحدة | موکده |
| تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ (البقرة ۱۹۶) | عشرة | کاملة | موکده |
| يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّوْنَ الَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا (المائده ۴۴) | النبيون | الذين اسلموا | مادحه |

تشریح: الذین اسلموا داصفت مادحه دئ دالنبیون څخه داصفت دتخصیص او توضیح دپاره نه‌دئ کذا قاله الزمخشري :

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِلٰهَيْنِ اثْنَيْنِ : (النحل ۵۱) | | (اثنين | مؤکده |

| المثال | الموصوف | الصفة | الفائده |
|---|---|---|---|
| اِنْ كَانَتْ اِلَّا صَيْحَةً وَّاحِدَةً (یس ۲۹) | صیحة | واحدة | التاکید |
| هٰذَا مُغْتَسَلٌ بَارِدٌ وَّشَرَابٌ (ص ۴۲) | مغتسل | بارد | التخصیص |
| كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ (الصف ۴) | بینان | مرصوص | التخصیص |
| وَجَعَلْنَا السَّمَآءَ سَقْفًا مَّحْفُوْظًا (الانبیاء ۳۲) | سقفا | محفوظ | التخصیص |
| يَوْمَ يَكُوْنُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوْثِ (القارعة ۴) | الفراش | المبثوث | التخصیص |
| فَاِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ (النازعات ۱۳) | زجرة | واحدة | التاکید |
| فَدُكَّتَا دَكَّةً وَّاحِدَةً (الحاقة ۱۴) | دکة | واحدة | التاکید |
| كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ (النور ۳۵) | کوکب | دری | المدح |
| اَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ (الزمر ۳) | الدين | الخالص | المدح |
| سُبْحَانَهٗ هُوَ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ (الزمر ۴) | الله | الواحد | المدح |

| | | |
|---|---|---|
| قِرَدَةً خَاسِئِينَ ( البقرة ٦٥) | | |
| قردة | خاسئين | الذم |
| وَحَفِظْنٰهَا مِنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ رَجِيْمٍ ( الحجر ١٦) | | |
| شيطان | رجيم | الذم |
| وَحِفْظًا مِنْ كُلِّ شَيْطٰنٍ مَارِدٍ ( الصافات ٧) | | |
| شيطان | مارد | الذم |

## يو شپيتم سبق توكيده

**( واما توكيده فللتقرير او دفع التجوز او السهو او عدم الشمول )**

او له خبره تاكيد تأكيد توكد دري سره كلمات مستعمليږي تاكيد هر هغه تابع دئ چي دمتبوع حال پوخته كړي چي تا كي متكلم دفع كړي توهم دمجاز توهم دسهو توهم دعدم شمول مثال جاءنى زيد زيد دلته به مخاطب دمتبوع مصداق پر خپل ځای پيټ كوي بل ځای به يې نه وړي **او دفع التجوز** كله به مخاطب دمتكلم په كلام كي توهم دمجاز كوي مثال **قطع اللصّ الاميرُ** الامير دغله لاس امېر كاټ كړي او **نفسه** امير په خپله كاټ كړي او **عَيْنُهُ** عين امير لاس وركاټ كړی قطع اللص الامِير الامير دلته مخاطب دا توهم كوي چي په قطع اللص الامير كی مجاز دئ يعنى دقطعي اسناد وامير ته مجاز دئ امير يوازی سبب دقطعي دئ دقطعي اسناد په اصل كي وجلاد ته دئ كله چي دويم وار متكلم امير ذكر كړي توهم دمجاز ختم سو **او السهو** كله به مخاطب دمتكلم په كلام كي توهم دسهو كوي مثال جاءنی الامير الامير مخاطب داتوهم كوي چي تا ته به زيد راغلی وی خطا سوي به يې كله چي دويم وار متكلم امير ذكر كړي توهم دسهو ختم سو :

**او عدم الشمول:** كله به دمتكلم په كلام كی توهم دعدم شمول كوي مثال جاءنی القوم كلهم دلته مخاطب دا توهم كوي چي دقوم غټ غټ خلگ به راغلی وي كمزوري خلگ به نه وي راغلی يا به ذكر كل وی مراد به بعض وي چی متكلم كلهم ذكر كړی توهم دعدم شمول ختم سو

## اجراء التاكيد

| المثال | المؤكد | التاكيد | الفائدة |
|---|---|---|---|

| | | | |
|---|---|---|---|
| عرفني الرجلان كلاهما | الرّجلان | كلاهما | دفع عدم الشمول |
| عرفني الرجال كلهم | الرجال | كلهم | دفع عدم الشمول |
| فَسَجَدَ الْمَلٰئِكَةُ كُلُّهُمْ (الحجر ٣) | الملئكة | كلهم | دفع توهم المجاز |

تشريح: څه وخت چي الملئكة ووېل سو نو توهم دمجاز وسو هغه دا چي ذكر كل مراد ورڅخه بعض (يوڅو ملائكه) څه وخت چي كلهم ووېل سو توهم دمجاز ختم سو يعنى ټولو ملائكو سجده وكړه:

فائده: مبرد او زجاج وايي په دې ايت كي **فَسَجَدَ الْمَلٰئِكَةُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ:** كلهم دال دئ پر احاطه او شمول باندي اجمعون دال دئ پر دئ باندي چي سجود ددوي په حالة واحدة كي وه وليس هذا شئ دا يو شي نه دئ ځكه هر كله چي نه ووايي جاء القوم اجمعون نو معنا ددې شمول او احاطه ده:

**وَالْاَرْضُ جَمِيْعًا قَبْضَتُهٗ** (الزمر ٦٧)

تركيب: الارض مبتداء ذوالحال، جميعا: حال ذوالحال سره دحال دا به مبتداء سي قبضته خبر:

تشريح: دلته جميعا مخته سو تر خبر ددې دپاره چي داول الامر څخه معلومه سي چي را روان خبر ديوې ارضي څخه نه دئ واقع يعني دالله په قبضه كي يوه مخصوصه ځمكه نه ده بلكي را روان خبر دټولو اراضوا څخه واقع دئ يعني دالله په قبضه كي ټولي ځمكي دي:

## بيانه

**(واما بيانه فلا يضاحه باسم مختص به نحو قدم صديقك خالد)** عطف بيان دمسند اليه ددې دپاره وي چي متكلم وضاحت وكړي دمسند اليه په يو اسم داسي اسم چي خاص وي په مسند اليه پوري **باسم مختص به** اسم كله مقابل دفعل او دحرف وي اسم كله با مقابل دكنيت او دلقب وي دلته اسم مقابل دفعل او دحرف دئ اسم مقابل دكنيت او دلقب نه دئ يعني دمسند اليه وضاحت په كنيت سره راځي دمسند اليه وضاحت په لقب سره راځي په اسم محضه سره راځي له دې وجه كنيه لقب اسم محضه دا هر يو وضاحت

دمسند اليه کوي او عطف بيان جوړيږي مثال **قدم صديقک خالد** ستا انديوال راغلی
يعنی خالد خالد عطف بيان دئ دصديقک دپاره ولی يو سړي به په صديق مشهور نه وی
په خالد به مشهور وي له دې وجه خالد وضاحت کوي دصديقک دقزويني دعبارت څخه
دوی خبري رامعلوميږی يوه داخبره رامعلوميږی چي عطف بيان به ترمتبوع واضح وي
دويمه خبره داسم مختص به څخه رامعلوميږي چي دمتبوع وضاحت به يوازی په کنيه او
لقب او اسم محضه سره وي علامه تفتازانی دواړي خبري ردوي اول اعتراض دادئ قطعا
داضروري نه دئ چي تابع دئ ترمتبوع واضح وي کله به تابع او متبوع په عدم وضاحت
کي برابر وي چی دواړه سره يو ځای سي بيا وضاحت کوي نفس تابع وضاحت نه سي
کولای نفس متبوع وضاحت نه سي کولای ددې مثال اشتراک دئ په کلي کي پنځه زيد
ده دئ پنځه ابو عبدالله دئ په زيدکی هم اشتراک دئ په ابو عبدالله کي هم اشتراک دئ
نو په اسم محضه کي هم اشتراک دئ په اسم کنيه کي هم اشتراک دئ يواځي په زيد سره
وضاحت نه کيږي يواځي په ابو عبدالله سره وضاحت نه کيږي چی دواړه ذکر سي بيا
وضاحت کيږي ولی په کلي کي دا رنګه سړی نه سته چي هم دئ زيد وي هم دئ ابو عبدالله
وي مثال څلور کسان په زيد سره مشهوره دي څلور کسان په ابو عبدالله سره مشهوره دي
خو دلته يو بل زيد سته هغه هم په ابو عبدالله سره مشهور دي ګوره ابو عبدالله هم ډير
دئ زيد هم ډير دئ په زيد سره دخپل مصداق وضاحت نه کيږی ولی هر کس دزيد احتمال
لري په ابو عبدالله هم دشي وضاحت نه کيږی مګر چي زيد او ابو عبدالله دواړه ذکر سي
يا وضاحت راځي ولی جاءنی زيد ابو عبدالله په دغه صورت کي بل نه په ګډيږي ولی که
دي ابوعبدالله دئ خو دئ زيد نه دئ دابل هم نه په ګډيږی ولی که دی زيد دئ خو دئ
ابو عبدالله نه دئ دغه اعتراض پر لايضاحه وو :

جواب: عطف بيان تر متبوع واضح وي په غالبه موادو کی مثال لکه اقسم ابو حفص عمر
عمر فاروق په ابو حفص دومره مشهوره نه دئ لکه په عمرچي مشهوره دئ کله کله سړي په
کنيه سره دومره مشهور نه وي لکه په علم سره چي مشهوره وي دويم اعتراض دباسم
مختص به څخه دا رامعلوميږي چي دمتبوع وضاحت په کنيه لقب اسم محضه سره راځي
کله کله به عطف بيان وي خو په اسم مختص به سره به نه وي يعنی نه به لقب وي نه به کنيه

وي نه به اسم محضه وي مثال والمؤمن العائذ ات الطير يمسحها دلته الطير عطف بيا
دئ دالعائذات څخه سره له دې چې اسم مختص به نه دئ :
جواب: دمتبوع وضاحت په اسم مختص به سره راځي په غالبه موادو کي دريم اعتراض
کله کله عطف بيان راځي دغير وضاحت دپاره کما فی ﴿قوله تعالی جَعَلَ اللّٰهُ الکَعْ
البَيْتَ الحَرَامَ قِيَامًا للناس﴾ صاحب الکشاف وايي البيت الحرام عطف بيان د
دللکعبه دپاره دلته عطف بيان دوضاحت دپاره نه دئ دلته عطف بيان دمدحي دپا
دئ

## اجراء عطف البيان

| المثال | المبين | عطف بيان |
|---|---|---|
| اقسم بالله ابو حفص عمر | ابو حفص | عمر |
| وقام عبدالله بن عمر | عبدالله | بن عمر |
| امَنَّا بِرَبِّ العالمين رَبِّ مُوسٰى وَهَارُوْنَ (الشعراء ٤٧) | رب العلمين | رب موسى |

## ابداله

( واما الابدال منه فلزيادة التقرير ) بدل راوړل دمبدل منه دپاره فلزيادة التقرير
دپاره دزيادة التقرير تقرير په چا سره راځي تقرير په تکرار سره راځي موږ علا
تفتازانی ته وويل قزوينی چي پر توکيد راغلی داسي عبارت يې وويلی اما توکيد
فللتقرير چي پر بدل راغلی داسي عبارت يې وويل اما لابدال منه فلزيادة التقرير له د
وجه دلته تفنن محض دئ که يو نکته سته علامه تفتازانی وايي خلکْ وايي دلته تفن
محض دئ دواړه يو شي د ي يوازی تعبير ونه جلا دي موږ تفتازانی ته وويل ته څه واي
تفتازانی وايي دلته يو نکته سته علامه وايي قزوينی دئ وايي تاکيد وچ په و
تقرير فائده کوي په بدل کي مقصود بالنسبة تابع دئ متبوع يوازی توطيه او تمهيد دئ
موږ وويل بدل خو تقرير هم کوي نو دئ وايي تقرير يوزيات شي دئ مثال (جاءنی اخوک
زيد) دا مثال دبدل الکل دئ:

بدل الكل دې ته وايي چي دبدل او دمبدل منه ددواړو مصداق يو وي (**وجاءني القوم اكثرهم**) دا مثال دبدل البعض دئ بدل البعض دي ته وايي چي بدل دمبدل منه څخه بعض وي بل مثال **اكلت الرغيف نصفه** (**وسلب عمر ثوبه**) دا مثال دبدل الاشتمال دئ بدل الاشتمال دې ته وايي چي مبدل منه ذكر سي دفعل سره بدل اجمالا په ذهن او تصور كي راځي ته چي نحوى معلومه وي نو نحوى دفاعل په تعريف سره نه معلوميږى ته چي نحوى معلومه وى نو ته ورته ووايه ما ته دبدل الاشتمال تعريف وكړه بدل الاشتمال دې ته وايي چي فعل او مبدل منه سره ذكر سي بدل اجمالا په ذهن او تصور كى راځي به غير دكليت او جزئيت څخه سلب عمرو چور كړه سوه دعمر څخه خولي كالي لنګوټه مبايل صدري ګوره بدل اجمالا په تصور كي راغلي چي تا ثوبه وويل نو ثوبه اجمالا پكښي وو ثوبه بدل الاشتمال دئ :

## دوه شپيتم سبق بدل الاشتمال دې ته وايي

علامه تفتازانى په بدل الاشتمال كي نور قيودات بيان كړي دئ بدل الاشتمال دې ته وايي چي فعل او مبدل منه ذكر سي بدل اجمالا په تصور كي راسي اول قيد دادئ اشعار به اجمالا كوي دويم قيد دادئ باقاعده به مخاطب دبدل وذكر كيدو ته انتظار كوى متشوق به وي كه دغه رنګه وو بدل الاشتمال دئ كه دغه رنګه نه وو بيا بدل الغلط دئ :

بدل الاشتمال دې ته وايي چي فعل او مبدل منه سره ذكر سي بدل اجمالا په تصور كي راسي اول قيد مبدل منه به مشتمل وي پر بدل باندي داسي اشتمال به نه وى لكه اشتمال دظرف پر مظروف باندي كله به داسي اشتمال وي لكه اشتمال دظرف پر مظروف باندى مثال ﴿**يسئلونك عن الشهر الحرام قتال فيه**﴾ الشهر ظرف دئ قتال فيه دا مظروف دئ خلګ دنبي عليه السلام څخه پوښتنه كوي عن الشهر الحرام دشهر حرام په اړه كى اوس دلته ابهام دئ چي دا خلګ دقتال پوښتنه كوي او كه دعدم قتال پوښتنه كوي دروژې دخوړلو پوښتنه كوي او كه دروژې دنه خوړلو پوښتنه كوي كله چي قتال فيه ووېل سو ابهام ختم سو ، په دې آيت كي الشهر الحرام مبدل منه دئ قتال فيه بدل دئ دويم قيد په مبدل منه كى به اشعار اجمالا پر بدل وي تفصيلا به نه وي كه اشعار تفصيلا پر بدل وو بيا

بدل الغلط دئ مثال **قتل الامير سيافه** دا مثال دبدل الغلط دئ دبدل اشتمال نه دي ولی
دلته په مبدل منه کي اشعار تفصيلا دئ پر بدل باندي ځکه څه وخت چي قتل الامير
وويل سی عرفا دا فهم کيږی چي قاتل سياف دئ دريم قيد مخاطب به منتظر متشوق وي
دبدل وذکر کيدو ته که منتظر متشوق نه وو دبل وذکر ته بيا بدل الغلط دئ مثال جاءنی
زيد اخوک کله چي جاءنی زيد وويل سي بس خبره ختمه سوه انتظار نه سته يعنی
مخاطب منتظر متشوق نه دئ هر کله جاءنی زيد اخوک وويل دعلامه تفتازانی په نيزاو
دجمهوره په نيز دا بدل الغلط دئ که څه هم دا بن حاجب په نيز دابدل الاشتمال دئ څلورم
بدل به دمبدل منه پر ځاي ايښوداى سي مثال اعجبنی زيد علمه دابدل الاشتمال دئ زه
په تعجب کي واچولم زيد اوس دلته ابهام دئ دزيد علم په تعجب کي واچولم دزيد
غيرت په تجب کي واچولې چي تا وويل اعجبنی زيد علمه بس ابهام ختم سو دلته بدل
دمبدل منه پر ځاى ايښودلاى سي اي اعجبنی علم زيد سلب عمر ثوبه اي سُلِبَ ثوبُ
عمر په بدل الغلط کی بدل دمبدل منه پر ځاى نه راځي مثال جائنی زيد اخوک دابدل
الغلط دئ اوس که بدل دمبدل منه پر ځاى کښيږدي داسي وواييي جاءنی اخوک زيد بيا
دا بدل الکل دئ بدل الغلط نه دئ که څوک پوښتنه وکړي چي قزوينی دري مثالونه ورکړه
قزوينی دبدل الغلط مثال ورنه کړ دا ولی علامه تفتازانی وايي بدل الغلط په فصيح کلام
کي نه راځي **التقرير** تقرير دې ته وايي چي يو شي مقرر ذکر سي :

**پوښتنه:** منم چي په بدل الکل کي تقرير سته خو په بدل البعض او بدل الاشتمال کي
تقرير نه سته؟.

جواب په بدل البعض او بدل لاشتمال کي تقرير سته ځکه په هر کل کي جزء وي له دې وجه
په بدل البعض او بدل الاشتمال کي يو وار خو په ضمن دکل کي جزء وي دويم وار چي جزء
ذکر سي دا تقرير دئ مثال جاءنی القوم اکثرهم سلب عمر ثوبه بدل دوه کاره کوي يو
تقرير فائده کوي دويم ايضاح او تفصيل فائده کوي مثال سلب عمر دلته ابهام دئ چي
دعمر څخه خولې چور سوي ده مبايل چور سوي دئ کالی چور سوي دئ وغير ذالک کله
چي ثوبه وويل سو نو ايضاح او تفصيل يې وکړ همدا رنګه په اکلت الرغيف کي دا امکان

وو چي پوره دودی دئ خوړل سوي وي يا نيمه دودی دي خوړل سوي وي چي نصفه وويل سو نو يو قسم تفصيل وسو :

**فائده :** بدل البعض او بدل الاشتمال دا د واړه به متصل وي په ضمير باندي داسي ضمير چي راجع وی ومبدل منه ته :

## اجراء البدل

| المثال | المبدل منه | البدل | القسم |
|---|---|---|---|
| صِرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ صِرَاطَ الَّذِينَ (الفاتحة) | صراط المستقيم | صراط الذين | بدل الكل |
| حَتّٰى تَأْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ رَسُوْلٌ مِّنَ اللّٰهِ (البينه ٢) | البينه | رسول | البدل الكل |
| وَاِذْ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ لِاَبِيْهِ اٰزَرَ (الانعام ٧٤) | ابيه | ازر | البدل الكل |
| وَيَجْعَلَ الْخَبِيْثَ بَعْضَهُ عَلٰى بَعْضٍ (الانفال ٣٧) | الخبيث | بعضه | بدل البعض |
| لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ (الاحزاب ٢١) | لكم | لمن | بدل البعض |
| سَنُعِيْدُهَا سِيْرَتَهَا الْاُوْلٰى (طه ٢١) | ها | سيرتها | بدل الاشتمال |
| يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ (البقرة ٢١٧) | الشهر الحرام | قتال | بدل الاشتمال |
| قُتِلَ اَصْحَابُ الْاُخْدُوْدِ النَّارِ (البروج ٥) | اخدود | نار | بدل الاشتمال |

وَمِنَ النَّخْلِ مِنْ طَلْعِهَا ( الانعام ٩٩) النخل

طلعها بدل الاشتمال

## دروشپیتم سبق العطف علیه

(واما العطف فلتفصيل المسند اليه مع اختصار نحو جاءنی زيد وعمرٌو) او یو شی معطوف گرځول پر مسند اليه باندي دا ددې دپاره چي تفصيل دمسند اليه راسي سر داختصاره مثال جاءنی زید وعمرٌو دلته عمرو عطف دئ پر زید مسند اليه باندي تفصيل هم راغلی اختصار هم راغلی یعنی تفصيل دمسند اليه راغلی او اختصار هم راغلی په عبارت کي په مع اختصار قید سره احتراز راغلی ددې جملې څخه جاءنی زید وجاءنی عمرو ځکه دلته تفصيل دمسند اليه سته خو اختصار نسته بل داچي دلته عطف پر مسند اليه نه دئ دلته عطف دجملې پر جملې باندي دئ بعض علماء وایی په مع اختصار قید سره احتراز راغلی ددې جملې څخه جاءنی زید جاءنی عمرو به غیر دعطف ځکه دلته تفصيل دمسند اليه سته که چیري په دې مثال کي دعطف ملاحظه وسي یعنی بتقدیر الواو خو اختصار نه سته لتکرار العامل که په دې مثال کی واو ملاحظه نه سي نو بیا دویمه جمله اضراب دئ دا ولی جملی څخه پر دې باندي شیخ په دلائل الاعجاز کي تصریح کړې ده خو دا مثال ووتي په دې قیدباندي فلتفصيل المسند اليه ځکه دلته تفصيل دمسند اليه نه سته اضراب دې ته وایي خبره مي دئ تراکول اوس خبره دئ تر راڅخه وسوه هغه خبره واخله دا پرېږده ویل مي جاءنی عمر راڅخه وویل سوه جاءنی زید بس جاءنی زید پرېږده جاءنی عمرو مه یله کوه واخله (اوالمسند كذالك) کله به تفصيل دمسند وي سره داختصاره که واو راغلی وو دا تفصيل دمسند اليه بیا نوی که فاء، ثم حتی راغلی وو دا تفصيل دمسند بیانوي که دمعطوف او دمعطوف علیه په مابین کی فاء راغله نو فاء دا وایي زما ماقبل او زما ما بعد په دې فعل کي سره شریکان دي زما ماقبل په دې فعل کي مخ ته دئ زما تر ما بعد او زما مابعد زما په ماقبل پوري متصل دئ مثال جاءنی زید فعمرو فاء دا وایي زما مخ ته چي زید دئ زما وروسته چي عمر دئ دا دواړه په مجیئت کي سره شریکان دي خو اول مجیئت زید کړی دئ بیا عمر کړي دئ او عمر

زید پوري متصل دئ که دمعطوف او معطوف علیه په مابین کي ثم راغلی نو ثم وایي زما ما قبل او زما ما بعد په دې فعل کي سره شریکان دئ زما ماقبل زما تر مابعد په دې فعل که مخ ته دئ زما مابعد زما په ماقبل پوري متصل نه دئ یعنی یو څه ځنډ والی پکښي دئ مثال جاءنی زید ثم عمر ما ته راغلی زید وروسته عمر راغلی فاء او ثم دواړه مجیئت بیانوي خو ثم دلالت کوي پر تعقیب باندی سره دتراخي او دمهلته فاء دلالت کوي پر تعقیب باندي بغیر دتراخی او دمهلته که دمعطوف او دمعطوف علیه په مابین کي حتی راغله نو حتي وایي زما ماقبل دا فعل ترتیب واره کړی دئ یعنی حتي وایي زما ماقبل خو متعدد دئ دا متعدد دافعل ترتیب واره کوی حتی دا کمزوري سړي هم دا کار او فعل وکړی یا حتی وایي زما ماقبل چی معتدد دئ دا متعدد داکار کوي حتی دا لوی سړي هم دا کار وکړ مثال جاءنی القوم حتي خالد ما ته قوم راتلی راتلی راتلی حتی بزګر خالد هم راغلی دلته ترتیب واره فعل داقوی شخه راغلی واضعف ته یا خالد دقوم سردار دئ قوم راتلی راتلی حتی سردار خالد هم راغلی دلته تر تیب واره فعل داضعف شخه واقوی ته راغلی له دې وجه دا فعل او کار په ترتیب سره کول کله داقوی شخه واضعف ته وي کله داضعف شخه واقوی ته وي علامه تفتازانی رحمه الله عجیبه زبردسته نکته وایي علامه وایي دحتي په ماقبل او دحتي په مابعد کي ترتیب خارجي ضروری نه دئ ترتیب ذهنی کافي دئ یعنی دا ضروري نه ده چي دحتی ما بعد په واقع او نفس الامر کي دحتی تر ماقبل په یو فعل کی ورسته دئ داهم کیدای سي چی دحتی مابعد په واقع او نفس الامر دحتي تر ما قبل په یو فعل کي مخته وي خو بیا هم دحتی وروسته وي مثال مات الناس حتی آدم ټول خلک مړه سوو حتی آدم: آدم هم وفات سو

ګوره دلته آدم په موت کي تر خلکو مخ ته دئ خو آدم په عبارت کي وروسته دئ کله کله دحتی مابعد دحتی دماقبل سره په یو فعل کی نه مخ ته وي نه وروسته وی بلکي متوسط وي مثال مات الناس حتی انبیاء علیه السلام خلک مړه سو حتی انبیاء هم وفات سوه دلته دانبیآء مخ ته هم خلک مړه دئ دانبیاء وروسته هم خلک مړه کیږي نو انبیاء په موت کي متوسط سوه کله به دحتی مابعد دحتی تر ماقبل وروسته وي عبدالاحد نن مړ سوه زه ووایم مات الناس حتی عبدالاحد علامه تفتازانی دلته یو زبردسته نکته پورته کوي :

پوښتنه فاء ثم حتی دادري سره چي څرنګه تفصيل دمسند کوي همدارنګه تفصيل
دمسند اليه هم کوي نو بيا داسي عبارت په کار دئ او تفصيلهما معا؟
جواب: علامه تفتازانی وايي مثلا زه کړکي ته ګورم ضمنا نورکسان هم وينم خو زما
مقصود کړکي ليدل دئ دوست نيک عبدالاحد دا زما مقصود په ليدو نه دئ تفتازانی
وايي شيخ په خپل کتاب کی يو نکته وايي او په دې نکته باندي باقاعده وصيت کوي چي
دا محفوظه وساته هغه دا يو شي حاصل وی مقصود بالذات يو شي حاصل وي ضمنا
بالتبع ددې دواړو ډير فرق سته فاء ثم حتی ددوې مقصود بالذات تفصيل دمسند دئ
تفصيل دمسند اليه کوي ضمنا تبعا ځکه قزوينی داسي عبارت نه وايی او تفصيلهما
معا:

## څلورشپيتم سبق لا دوې فائدې کوي

(اوردالسامع الی الصواب نحو جاءنی زيد لا عمرو) :

لا دوې فائدې کوي ۱- قصر الافراد ۲-: قصر القلب ۱-: قصر الافراد دې ته وايي
مخاطب قائله داشتراک وي متکلم را ولاړ سي دلا په ذريعه سره دمخاطب اشتراک
ورختم کړي مثال متکلم ووايي جاءنی زيد لاعمرو دلته مخاطب قائله داشتراک دی
دمخاطب عقيده داده چي زيد او عمر دواړه په فعل کي سره شريکان دي متکلم په لا سره
دمخاطب اشتراک ورختم کړي چي ورو ره ما ته زيد راغلی دئ عمر نه دئ راغلی ۲-قصر
القلب دې ته وايي مخاطب يو ځای حکم ثابتوي متکلم مخاطب ته وايي ورو ره ته خطا
يې حکم دي سړي ته ثابت دئ تا چي چا ته حکم ثابت کړي د ئ ته په هغه حکم کښي
خطايې مثال جاءنی زيد لا عمرو دمخاطب عقيده داده چي تا ته عمر راغلی دئ زيد تا ته
نه دئ راغلی متکلم مخاطب ته وايي ته خطا يې ماته زيد راغلی دئ عمر نه دئ راغلی
يعنی متکلم دلا په ذريعه سره مخاطب دخطا څخه وحق ته واړه وي اور دالسامع الی
الصواب متکلم سامع رد کړي وثواب او حق ته مثال جاءنی زيد لا عمرو بل لکن دئ نحاة
وايي لکن خبَهٔ لا دې يعنی لا چي کومه افاده کوي لکن هم هغه افاده کوي اهل بيان داسي
وايي لکن صرف افاده دقصر الافراد کوي لکن افاده دقصر القلب نه کوي يعنی لکن

یوازی اشتراک ختموي مثال ما جاءنی زید لکن عمر **( او صرف الحکم الی اخر نحو جاءنی زید بل عمر او ماجاءنی زید بل عمرو)** :

دحروف عاطف څخه اووم بل دئ بل داضراب دپاره راځي اضراب معنی اړول اړول دا معنی چي دده مخکي بل حکم سوي دئ بل راولاړېږي دا حکم بلي خوا ته اړوي عبدالاحد وايي جاءنی زید زه وایم بل عمرو دمجیئت حکم چي زید ته سوی وو هغه حکم عمر ته واړول سو داثبات په صورت کي حکم اړول ډیر اسان دئ دنفی په صورت کي حکم اړول مشکل دئ مثال جاءنی زید بل عمرو ما جاءنی زید بل عمرو دلته اختلاف دئ د جمهور علماء او دابن حاجب صاحب ۱- جمهور وایی بل را ولاړېږي دخپل ماقبل څخه حکم را واخلي وما بعد ته یې ثابت کړي خو په ماقبل کي مسکوت عنه سي مثال جاءنی زید بل عمرو ما ته عمر راغلی دئ په زید باندي تعبیر نه کوي چي زید راغلی دئ او که زید نه دئ راغلی ۲- ابن حاجب وایي بل را ولاړېږي دخپل ما قبل حکم چي چا ته ثابت دئ هغه حکم نفی کړي وما بعد ته یې ثابت کړي مثال جاءنی زید بل عمر ما ته عمر راغلی دئ زید نه دئ راغلی مثال دمنفی ما جاءنی زید بل عمرو دلته دوه صورتونه دي یو صوت خو دا دئ چي بل دخپل ما قبل نفی ثابت کړي وما بعد ته په ماقبل کي مسکوت عنه سي مثل ما جاءنی زید بل عمرو ما ته عمر نه دئ راغلی په زید باندي تعبیر نه کوي په دې صورت کي اشکال نه سته دویم صورت دادئ چي بل دخپل ما قبل حکم مثبت کړي بیا یې ومابعد ته ثابت کړي مثال ما جاءنی زید بل عمرو ددې عبارت د امعنی سوه ما ته عمر راغلی دئ په دې صورت کي اشکال دئ ځکه دلته بل دخپل ما قبل حکم چي نفی دئ هغه حکم یې ومابعد ته ثابت نه کړ بلکي بل نوی حکم چي مثبت دئ هغه حکم یې وما بعد ته ثابت کړ نو صرف الحکم موجود نه سو چي هغه حکم نفی دزید دی وعمر ته یعنی هغه زوړ حکم چي نفی دئ هغه موجود نه سو جواب: دحکم داسي تعبیر کول چي مخکي دفعل اسناد وفاعل ما ته سوي دئ هغه اسناد چي دفعل وفاعل ما ته سوي دئ تا دغه اسناد دبل ومابعد ته ثابت کړی دنفی او داثبات قید ته تا اعتبار ور نه کړي مطلق اسناد ته تااعتبار ورکړی نو بیا اشکال نه سته ولی په ما جاءنی زید کي دمجیئت اسناد سوي دئ وزید ته یوازی مجیئت دنفی په قید سره منفی سوی دئ خو دنفس مجیئت

اسناد سته هر وخت که تا ضَرَبَ اسناد وعمر ته راوړی نو بیا نوی حکم سو اوکه ته
ددغه مجیئت اسناد وعمر ته راوړي نو بیا نوی حکم نه دئ زوړ حکم دئ (**او للشک او التشکیک نحو جاءنی زید او عمرو**) اَوْ څلور فائدې ورکوي ۱-: او کله کله دشک دپاره
وي ۲-: اَوْ کله کله دتشکیک دپاره وي ۳-: اَوْ کله کله دابهام دپاره وي ۴-: او کله کله
دتخییر دپاره وي اول او للشک دئ شک دا معنی چې متکلم په خپل کلام کې شکمن وي
مثال جاءنی زید او عمرو دلته متکلم شکمن دئ چې ماته به زید راغلی وي که به عمرو
راغلی وي دویم اَوْ للتشکیک دئ اَوْ کله راوړل کیږی ددې دپاره چې متکلم په خپله خبر
وي خو مخاطب په شک کې اچوی مثال جاءنی زید او عمر دریم او للابهام دئ او للابهام
دې ته وایي چې دمتکلم پوره یقین وي متکلم خبر وي چې قصه دارنګه ده خو متکلم
مخاطب ته ابهام جوړ کړی ولی که تعین وکړي بیا تاوان پیښیږي مثال **وَاِنَّا اَوْ اِيَّاكُمْ لَعَلٰى هُدًى او فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ**، هر چا ته معلومه ده چې موږ پر هدآیت یو ولی موږ دخدای په
نازل کړي قانون باندي عمل کوو خو متکلم ابهام جوړ کړ چې موږ پر هدایت یو او که
تاسي پر هدایت یاست موږ ګمراه یو که تاسي ګمراه یاست متکلم تعین نه کوي ولی
تاوان پیښیږي څلورم او کله راوړل کیږي دپاره داختیار مثال ستا خوښه ده جهاد کوې
که سبق وایي داباحت او داختیار فرق دا دئ په اباحت کې دواړه جمعه کیږي په اختیار
کي دواړه نه جمعه کیږي

| المثال | المعطوف علیه | المعطوف | الفائدة |
|---|---|---|---|
| جاء محمد وعلی | محمد | علی | تفصیل المسندالیه |
| قَامَ زید وعمرو | زید | عمر | // // |
| هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ (الانعام ۵۰) | الاعمی | البصیر | // // |
| تعلم النحو اوالبلاغة | النحو | البلاغة | اباحت |
| وَاِنَّا اَوْ اِيَّاكُمْ لَعَلٰى هُدًى اَوْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ (سباء ۲۴) نا | | ایاکم | ابهام |

| جالس الحسن او ابن سیرین | الحسن | ابن سیرین | اباحت |
| --- | --- | --- | --- |
| لَبِثْنَا یَوْمًا اَوْ بَعْضَ یَوْمٍ ( الکهف ۱۹) | یوما | او بعض یوم | شک |

وَاَرْسَلْنَاهُ اِلٰی مِائَةِ اَلْفٍ اَوْ یَزِیْدُوْنَ (الصافات ۱۴۷)

تشريح: بعض وايي دلته او دابهام دپاره دئ بعض وايي اَو دتخيير دپاره دئ بعض وايي او دشک دپاره دئ بعض وايي اَوْ داباحت دپاره دئ فرا وايي اُو دلته په معنا دبل اضرابيه دئ :

## تعقیبه بضمیر الفصل

( واما الفصل فلتخصيصه بالمسند) فصل معنی، صيغة الفصل، فصل معنی، ضمير فصل، فصل معنی، عماد، فصل معنیٰ دعامه :

ضمير فصل راوړل کيږي ددې دپاره چې مسند قصر سي په مسند اليه کي مثال ﴿وَاُولٰئِکَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾ دلته مفلحون قصر دئ په اولئک کي ضمير فصل په دې مثال کي هم دئ:

پوښتنه: بحث دضمير فصل څخه کول داخروج عن البحث دئ ځکه داحرف دئ دا دمسند اليه سره کار نه لري؟

جواب علامه تفتازانی جواب ورکوي ضمير فصل په شکل او بڼه په خوئی او خصلت دمبتداء تابع دئ که مسند اليه دغائب په شکل وو ضمير فصل به هم دغائب په شکل وي که مسند اليه دمخاطب په شکل وو ضمير فصل به هم دمخاطب په شکل وي که مسند دمتکلم په شکل وو ضمير فصل به هم دمتکلم په شکل وي مثال ﴿کُنْتَ اَنْتَ الرَّقِیْبَ﴾ دلته انت صيغة الفصل دئ په کنت کي تاضمير دمخاطب دئ انت هم مخاطب دئ ﴿اِنْ تَرَنِ اَنَا اَقَلَّ مِنْکَ مَالًا وَّوَلَدًا﴾ په ان ترنی کي نِی دمتکلم په شکل دئ اَنا هم دمتکلم په شکل دئ﴿ اُوْلٰئِکَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾ اولئک غائب دئ ځکه اسم ظاهر دغائب په حکم کي دئ هُمْ هم دغائب دئ په واحد تثنيه جمعه کي موافقه ورسره لري بل دا چې ضمير فصل

اول وار دمسند اليه سره متصل كيږي بيا مسند ورباندي حمل كيږي ضمير فصل دوه كاره كوي يو قصر بل تاكيد قصر كه مخكي قصر وو بيا عماد مينځ ته راغلی نو تاكيدقصر كوي هغه وخت چي مبتداء او خبر مرفوع وي مثال ﴿واو لئك هُمُ المفلحون﴾ كه مخكي قصر نه وو بيا ضمير فصل راغلی نو قصر فائده كوي مثال ﴿ إِنَّهُ هُوَ أَضْحَكَ وَأَبْكَى ﴾

## اجراء ضمير الفصل

| المثال | ضمير فصل | الفائدة |
|---|---|---|
| أُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ( البقرة ٥) | هم | تاكيد قصر |
| أُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ( لقمن ٥) | هم | تاكيد قصر |
| نَبِّئْ عِبَادِيْ أَنِّيْ أَنَا الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ (الحجر ٤٩) | هو | تاكيد قصر |
| فَاللهُ هُوَ الْوَلِيُّ ( الشورى ٩) | هو | تاكيد قصر |
| أَلَا إِنَّ اللهَ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ( الشورى ٥) | هو | تاكيد قصر |
| إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِيْنَ ( الانعام ١١٩) | هو | تاكيد قصر |
| أَنَّ اللهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ ( التوبة ١٠٤) | هو | تاكيد قصر |

## پنځه شپيتم سبق تقديمه

(واما تقديمه فلكون ذكره اهم اما لانه الاصل ولا مقتضى للعدول عنه) :

پوښتنه: شيخ عبدالقاهر وايی نكته ويل كيږي للمزال يعنی نكته د هغه چا دپاره ويل كيږي چي هغه دخپل محل څخه زائل وي دمسند اليه مقدم والی پر مسند باندي دا دمسند اليه خپل محل دئ خپل مقام دئ يعنی نكته دمبقا دپاره نه ويل كيږي ؟

جواب: زموږ مراد دتقديم څخه ابتداء مسند اليه ذكر كول دئ واما تقديمه فلكون ذكرا اهم تقديم دمسند اليه ددې دپاره وي چي ذكر دمسند اليه اهم دئ څكه مسند اليه

محکوم علیه دئ چي تر څو پوري محکوم علیه نه وي ته حکم پر چا لګوي مسند الیه موضوع ده موضوع په مثل دحیوان وي مسند محمول دئ محمول په مثل دبار وي چي حیوان نه وي بار نه وربانديي باریږی چي موضوع نه وي محمول نه وربانديي حمل کیږی نو ځکه موږ ذکر دمسند الیه اهم بولو خالص ذکر داهتمام په تقدیم کي کافی نه دئ ددې دپاره به جلا نکته ویل کیږی **اما لانه الاصل** (او له نکته) تقدیم دمسند الیه اصل دئ ځکه مسند الیه غالبا په درجه کي دذات وي ذات جوهر وي مسند غالبا په د رجه کي دعرض وی عرض وصف وي ، ذات محل وی وصف حال وي ذات مقدم وي پر وصف باندي محل مقدم وي پر حال باندي ځکه چي محل نه وي حال نه راځي مثال ته جدار ته توریا سپین وایي تور او سپین دواړه عرض دي وصفونه دي تور او سپین دا به ته هغه وخت ورته وایي چي یو وار به دیوال موجود وي **ولا مقتضی للعدول عنه** په داسي حال کي چي مقتضی دعدول به نه وي داصل څخه یعنی نفس اصالت نکته دتقدیم نه ده مقتضی به نه وي مقتضی دې ته وایي چي یو شي مخکي وی مقتضی ورته وایي راوروسته سه زه مخ ته کیږمه مثال ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ﴾ دلته اِیّاکَ په دریمه مرتبه کي دئ اول مرتبه :فعل ده دویمه مرتبه دفاعل ده دریمه مرتبه دمفعول ده خو دلته ایاک مقتضی ده وایي زه مخ ته کیږمه قصر فائده کومه نو قصر هغه وخت راځي چي مفعول مخ ته سي بل مثال ضَربَ زَیْدٌ ضَرَبَ مسند دئ زید مسند الیه دئ نو مسند الیه مقدم وي پر مسند باندي خو دلته مسند مخ ته دئ پر مسند الیه باندي ځکه ضَرب عامل دئ زید معمول دئ نو عامل مقدم وي پر معمول باندي (**واما لتمکین الخبر فی ذهن السامع لان فی المبتدا تشویقا الیه**) دویم علت داهمیت کله ذکر دمسند الیه اهم وي له دې وجي چي خبر په ذهن دسامع کي ښه قرار ونیسي یعنی که ته غواړي چي خبر دئ دسامع په ذهن کي ښه قرار ونیسي نو ته به تقدیم کوي ولي دمبتدا په ذکر کیدو سره دخبر وحاصلیدو ته مخاطب باقاعده منتظر او متشوق وي وکوم شي ته چي انتظار او تشویق وي هغه شی په ذهن کی ښه قرار نیسي **لان فی المبتداء تشویقا الیه** ځکه په مبتداء کي تشویق وي وخبر ته (**کقوله شعر والذی حارت البریة فیه**، دا مبتداء ده **حیوانٌ مستحدث من جمادٍ**: دا خبر

دی حیوان مستحدث من جمادٍ ، په دې شعر کي الذی **حارت البریة فیه** الذی هغه شي،
حارت البريّة فيه چی خلک حیران دي په هغه کي اوس هر سړی چی دغه عبارت واوريدي
نو تشويق او انتظار پکښي پیدا سو چی خلک په څه شي کی حیران دي نو ده چي ورته
وويل **حیوان مستحدث من جماد** اوس دې خبري ښه قرار ونیولی دده په دماغ کي اوس
راسه خلک چي پکښي حیران دي هغه څه شي دئ **حیوان** هغه انسان دئ یا مطلق حیوان
دي **مستحدث** راپيدا کيږي به رولاړيږي به من جماد دخاورو او دډبرو څخه قبر ښيي
یعنی دقبر څخه انسان ژوندي را پورته کيدل په دې کي خلک حیران دي په دې کي باقاعده
اختلاف دئ **حیوان مستحدث من جماد** بعض وايي خلک دصالح علیه السلام په اوښه
کي حيران وو دصالح علیه السلام اوښه چي دغره دډبري راووتله دوی ورته وويل که ته
واقعي دخدای پیغمبر يې ته دغه معجزه را ښکاره کړه ددغه غره (ډبري) څخه اوښه را
وباسه صالح علیه السلام ورته وويل دا اسانه کار دئ خو دا ستاسو دهلاکت سبب ګرزي
ولی کوم څوک چي په خوله معجزه وغواړي او معجزه ورکول سي نو هغه ډير قدر غواړي
ډير حفاظت غواړي ولی که ددې قدر او حفاظت ونسی بیا الله جلاجلاله عذاب راولی
څکه الله ناقة الله ورته وويل چي دا زما اوښه ده له دې وجه قوم ولاړ دئ دغه قوم تقريبا
غالبا څلور یا پنځه لکه انسانان دئ صالح علیه السلام غره (ډبری) ته په لاس اشاره وکړه
اوښه را ووته دئ اوښي تقريبا غالبا (۴۰۰۰۰) څلویښتو زرو کسانو ته شيدي ورکولي
خو دادی اوښه وه چي ټولي اوبه به دي په یوه ورځ څښلې دهغه چینی څخه چي ټولو
انسانانو اوبه ورڅخه وړلی علامه تفتازانی وايي ښه خبره داده چي دا خلک په بعث بعد
الموت کي حيران دي دليل په دې باندې مخکي شعر دئ هغه شعر دادئ **بأن امرالاله**
**واختلف الناس فداع الى ضلال وهاد** دخدای پاک امر ښکاره دئ ټولي دنیا ته چي بعث
بعدالموت سته **واختلف الناسُ** انسانانو اختلاف وکړ بعض داسي دئ خلک ګمراهي ته
رابولي بعض داسی دی خلک هدايت ته رابولي یعنی څه خلک وايي بعث بعدالموت سته
څه خلک وايي بعث بعدالموت نه سته له دې وجه دحیوان مستحدث څخه ما او تامراد يو
دصالح علیه الاسلم اوښه مراد نه ده دمبتدا په ذکر کیدو سره دخبر وحاصليدو ته تشويق

پيدا کيدل ددې علامه داده تقريبا مبتدا موصول او صله وي او صله اوږده وي او کار تعجبي وو (**واما لتعجيل المسرة او المساءة للتفاؤل او التطير نحو سعد فى دارک او السفاح فى دار صديقک**) کله به مسند اليه مقدمه وي ددې دپاره چي زه دخوشحالى دښکاره کولو تللوار کومه:

کله به مسند اليه مقدمه وي ددې دپاره چي زه دخوابدي په ښکاره کولو کي تلورا کومه **للتفاؤل** نيک پالي نيول دا داول دپاره علت دې **او التطير** بد پالي نيول دا دوهم دپاره علت دئ مثال الاول **سعد فى دارک** که څه هم په تاخير کي نيک پالي حاصليږي خو تعجيل نه حاصليږى مثال **السفاح فى دار صديقک** وينه تويونکي ستا ددوست په کور کي دئ که څه هم مساءت وروسته حاصليږي خو تعجيل نه حاصليږي (**وما لايهام انه لا يزول عن الخاطر**) کله به مسند اليه مقدمه وى ددې دپاره چي متکلم مخاطب ته په دماغ کي داورکوي دا وراچوي چي دا مسند اليه زما دزړه څخه نه زائليږي چي زه خوله پري کړم نو مسند اليه پر خوله راسي مثال **الحبيب جاءنى**:

(**اوانه يستلذبه**): کله به مسند اليه مقدمه وي او ذکر به يې اهم وي ددې دپاره چي متکلم پر مسند اليه خوند اخلى (**واما نحو ذالک**) يا ددې په مثل باندي لکه اظهار دتعظيم او دتحقير:

## ما انا قلت

(**عبدالقاهر وقد يقدم ليفيد تخصيصه بالخبر الفعلي ان ولى حرف النفى نحو ما انا قلت هذا اي لم اقله مع انه مقول لغيري**):

عبدالقاهر يوه قاعده بيا نوى عبدالقاهر وايى که چيري تقديم دمسند اليه راغلى پر مسند فعلى باندى او دا مسند اليه واقع وه وروسته دحرف نفى بلا فصل يعنى مسند اليه دحرف نفى سره متصل وه په دې صورت کي تقديم دمسند اليه مع الوَليه پر مسند فعلى باندي دوه کاره کوي يو کار دا کوي چي نفى دخبر فعلى قصر او بندي سي په مسند اليه کي

اثبات يې وغير ته وسی دويم داکار کوي که نفی په طريقي دعموم وي اثبات به وغير ته
طريقه دعموم وي که نفی په طريقه دخصوص وي اثبات به وغير ته په طريقه دخصوص
وي مثال **ما انا قلت هذا** دامعنی دا مانه دې ويلي بل که هر چا قول کړي وي ما قلت
دامعنی ما نه دئ ويلي **با الفعل** دلته باء داخله ده پر مقصور باندي يعنی دا معنی
فعلی به قصر او حصر وي په مسند اليه کي **(ولهذا لم يصح ما انا قلت هذا ولا غيري)**
داغه خو وجه ده چي دا قول نه دئ صحيح ولی ځکه دلته تناقض دئ په مابين کي دمفهوم
الاول او دمنطوق الثانی **(ولا ما انا رايت احدا)** ما يو نه دئ ليدلی بل يوه هر يو ليدلی
دئ دا محاله ده چي ده دې هر يو ليدلي وي کوم شي چي مستلزم محال لره وي هغه محال
دئ نو دا قول محال دئ **(ولا ما انا ضربتُ الا زيدا)** ما يو نه دئ وهلی بل يوه قول وهلی دي
دا محال کوم شي چي مستلزم محال لره وي هغه محال دئ نو دا قول محال دئ :
قاعده: په مستثنی مفرّغه کي مستثنی منه محذوفه وی خو دغه مستثنی منه به عامه وي
مثال **ما انا ضربت الا زيدا** اي ما انا ضربت احدا الا زيدا.

## شپږشپيتم سبق په مسند اليه کي درې صورتونه دي

**(والا فقد ياتي للتخصيص ردًا علی من زعم انفراد غيره به او مشارکته فيه نحو انا سعيت فی حاجتک)** که چيري دمسند اليه سره وليَه نه وه بيا درې صورتونه دي ۱-صورت
حرف نفی نه سته مثال **انا سعيت فی حاجتک** ۲-: صورت حرف نفی سته خو دغه حرف نفی
دمسند اليه وروسته دئ مثال انا ما سعيت فی حاجتک ۳ صورت دمسند اليه او دحرف
نفی به مابين کي فصل راغلی وي مثال ما حاجتک انا سعيت، که وليه نه سته بيا کله به
تقديم دمسند اليه دتخصيص دپاره وي کله به دتقوي دپاره وي مثال الاول انا سعيت فی
حاجتک مثال الثانی هو يعطي الجزيل که وليه سته بيا دتخصيص دپاره تعين سته **والا
فقد ياتي للتخصيص**، که چيري دمسند اليه سره وليَه نه وه بيا تقديم دمسند اليه راځي
دپاره دتخصيص لوړ ناکت وايي ای القصر قصر پر دوه قسمه دئ ۱- قصر القلب ۲-

قصر الافراد **ردا علی من زعم الافراد غیرہ** په دا قصر القلب دئ مثال انا سعیت فی حاجتک .

قصر القلب دې ته وايي دمخاطب دا عقيده وي مخاطب وايي زما په حاجت کي ده کوشش کړي دئ زه متکلم ورته وايم ما ستا په حاجت کي کوشش کړی دئ ده کوشش نه دئ کړي مثال انا سعيت فی حاجتک ما کوشش کړی دئ ستا په حاجت کي **او مشارکته فیه** داقصر الافراد دئ مثال انا سعيت فی حاجتک قصر الافراد دې ته وايي دمخاطب داعقيده وي مخاطب وايی زما په حاجت کي تا او ده دواړو کوشش کړی دئ زه متکلم مخاطب ته وايم يوائي ما کوشش کړی دئ ستا په حاجت کي مثال انا سعيت فی حاجتک يوائي ما کوشش کړي دئ ستا په حاجت کي **( ويؤكد على الاول بنحو لا غيري وعلى الثانی بنحو وحدي)** دا به موږ څرنګه معلومه وو چي دلته قصر القلب دئ دلته قصر الافراد دئ که داول تاکيد په لاغيري سره وو بيا قصر القلب دئ مثال انا سعيت فی حاجتک لا غيری که تاکيد په وحدی سره وي يا په منفردا يا متوحدا سره وو بيا قصر الافراد دئ مثال انا سعيت فی حاجتک وحدي **( وقد يأتي لتقوية الحكم نحو هو يعطي الجزيل)** کله کله تقديم راځي دپاره دتقوی دحکم مثال هو يعطي الجزيل دلته تقديم دمسند اليه دتقوی دپاره ده ځکه اسناد مقرر دئ؛

**(وكذا اذا كان الفعل منفيا نحو انت لا تكذب فانه اشد لنفي الكذب من لا تكذب وكذا من لا تكذب انت لانه لتأكيد المحكوم عليه لا الحكم )** په نفی دکذب کي انت لا تکذب اشد دئ تر لا تکذب او لا تکذب انت معنی دانت لا تکذب داده هيڅ کله ته دروغ نه وايي معنی دلا تکذب داده ته دروغ نه وايي معنی دلاتکذب انت داده تا يادوم ته دروغ نه وايی په لا تکذب انت کي تاکيد دمحکوم عليه دئ تاکيد دحکم نه دئ درې عبارات دي ۱: انت لا تکذب ۲ – لا تکذب ۳ –: لا تکذب انت کوم څوک چي وايي زما معانی زده دې نو ته به دادرې عبارات ورته کښيږدې بيا به ورته ووايي چي ورورہ يوازی ددادرو عباراتو ترجمه په پښتو را ته وکړه بس نور ته خلاص يې .

## اووه شپيتم سبق مسلک السکاکی فی التقديم

**(وان بني الفعل على منكر افاد تخصيص الجنس او الواحد به نحو رجل جاءني اي لا امرأة او رجلان) :**

مخکي تر دې چي سبق شروع کوو يو ه نکته واورئ دشيخ عبدالقاهر په نيز دتخصيص دار او مدار پر وليه ده تعريف او تنکير نه دئ ولو که څه هم دقزويني دعبارت څخه لږ اشارة خبره رامعلوميږي خو خبره دا رنګه نه ده دشيخ په نيز دتخصيص دار او مدار پر وليه دئ که دمسند اليه سره وليه وه بيا تقديم تخصيص فائده کوي دسکاکی په نيز دتخصيص دار او مدار پر تنکير دئ که مسند اليه نکره وه بيا مسند اليه تخصيص فائده کوي **وان بني الفعل على منكر** : که چيري فعل مبني وو پر منکر باندی **افاد تخصيص الجنس او الواحد به** نو فائده کوي دا تقديم دمسند اليه تخصيص دجنس په فعل پوري يعنی دا فعل به قصر وي په جنس کي يا دا تقديم دمسند اليه فائده کوي تخصيص دواحد په فعل پوري يعنی فعل به قصر وي په واحد کي مثال الاول رجل جاءنی لا امرأة مثال الثانی رجل جاءنی لا رجلان له دې وجه نکره دا دواړي فائدي ورکوي ځکه په نکره کي چي رجل دئ دوه شيان دئ يو اسم جنس بل وحدت، رجل سړي يو، يعنی يو سړي ګوره په رجل کی يو هم سته سړی هم سته سړی اسم جنس دئ يو چي دې هغه وحدت دئ نو که هر وخت تا تقديم دنکرې وکړي نو دا تقديم به يا جنس خاصوي يا به وحدت خاصوي چي تقديم جنس خاص کړي نو دا معنی رجل جاءنی لا امرأة سړي ما ته راغلی ښځه نه ده راغلی تقديم چي دوحدت فائده کوي نو دا معنی رجل جاءنی لا رجلان يو ما ته راغلی دوه نه دئ راغلی :

**قاعده:** دمعاني په ژبه که جنس ذکر سو نو دا جنس نوعه صنف درو سره ته شامل دئ مثال حيوان جنس دئ انسان نوعه ده رجل صنف دئ دلته چي جنس ذکر سي نوعه صنف جنس دروسره ته مشتمل دئ که نکره راغله کله به تخصيص دنوعي کوي دې ته هم جنس وايي کله به نکره تخصيص دصنف کوي هم جنس ورته وايي کله به نکره تخصيص دجنس کوي هم جنس ورته وايي **(ووافقه السكاكي على ذالك الا انه قال التقديم يفيد الاختصاص ان جاز تقدير كونه في الاصل مؤخرًا على انه فاعل معنى فقط نحو انا قمت وقدر والا فلا يفيد الا تقوى الحكم سواء جاز كما مرّ ولم يقدر او لم يجز نحو زيد قام واستثنى المنكر**

**بجعله من باب (وَأَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِينَ ظَلَمُوا) اى على القول بالابدال من الضمير لئلا ينتفى التخصيص اذ لا سبب له سواه بخلاف المعرف)** دشيخ عبدالقاهر په نيز دتخصيص داراو مدار پر وليه دئ كه وليه دمسند اليه سره وه بيا تقديم تخصيص فائده كوي كه وليه نه وه دمسند اليه سره ګوره وليه دې ته وايي چي مسنداليه دحرف نفى وروسته واقع وي متصل له دې وجه كه وليه نه وه بيا تقديم دمسند اليه كله تخصيص فائده كوي كله تقوى فائده كوي دسكاكى په نيز دار او مدار دتخصيص پر تنكير دئ كه مسند اليه نكره نه وه بيا تقديم دمسند اليه كله تخصيص فائده كوي كله تقوى فائده كوي كه مسند اليه نكره وه وليه هم ورسره وه دسكاكى او دعبدالقاهر ددواړو په نيز اتفاقا تخصيص فائده كوي لكه مارَجُلٌ جاءنى كه مسند اليه نكره وه خو وليه ورسره نسته نو دسكاكى په نيز باندي تقديم دمسند اليه ضرور تخصيص فائده كوى دعبدالقاهر په نيز تخصيص لازم نه دئ كه وليه دمسند اليه سره سته لكه ما انا قلت دلته دعبدالقاهر په نيز تخصيص ضرورى دئ دسكاكى په نيز ضروى نه دئ دعبدالقاهر او دسكاكى په يو صورت كي اتفاق دئ په دوو صورتو كى اختلاف دئ اول اتفاقي صورت كه مسند اليه نكره وه وليه هم ورسره وه ددواړو په نيز تخصيص فائده كوي اول اختلافي صورت كه مسند اليه نكره وه وليه نه وه دسكاكى په نيز باندي تخصيص لازم دئ دعبدالقاهر په نيز باندي تخصيص لازم نه دئ دويم اختلافى صورت كه مسند اليه معرفه وه وَلِيَه هم وه دشيخ عبدالقاهر په نيز تخصيص فائده كوي دسكاكى په نيز تخصيص لازم نه دئ دسكاكى په نيز درې صورتونه دي اول صورت كه مسند اليه نكره وه بيا كه وليه وي او كه نه وي تقديم تخصيص فائده كوي دويم صورت كه مسند اليه معرفه او مظهره وه بيا تقديم دمسند اليه تقوى فائده كوي دريم صورت كه مسند اليه معرفه او مضمره وه بيا تقديم دمسند اليه كله تخصيص فائده كوي كله تقوى فائده كوي:

دشيخ په نيز دوه صورتونه دي اول صورت كه وليه دمسند اليه سره وه بيا عام تر دې معرف وي كه نكره وي مظهر وي كه مضمر وي تخصيص فائده كوي دويم صورت كه وليه دمسند اليه سره نه وه بيا عام تر دې معرفه وي كه نكره وي مظهر وي كه مضمر وي كله به تخصيص فائده كوي كله به تقوي فائده كوي ټول پنځه صورتونه سوه **الا انه قال**

**التقديم يفيد الاختصاص**: سکاکی وایی تقدیم اختصاص فائده کوي خو دا افادہ داختصاص مشروطه په دوو شرطوده:

**(الا انه قال التقديم يفيد الاختصاص)**

سکاکی وايي تقدیم داختصاص فائده کوي بشرطين په دوو شرطو سره دوه شرطونه به بيان کړي نتيجه يې را وزي ونکړې ته يو شرط يې دادئ ای مؤخر والی به دمسند اليه فرض کيدای سي په اصل کي بناء پر دې چي دا مسند اليه به فاعل معنوي وي دفعل مذکور څخه فاعل لفظی به نه وي دویم شرط يې دادئ چي تا به فرض کړي وي چي دا مسند اليه په اصل کي مؤخره ده بنا پر دې چي دا مسند اليه به فاعل معنوي وي فاعل لفظی به نه وي که دا دوه شرطونه وه بيا تقديم تخصيص فائده کوي، که دا دوه شرطونه وه بيا تقديم تخصيص نه فائده کوي مثال انا قمت رجل جاءنی دلته فرض کېدل جائز دي چي دا په اصل کي قمتُ انا جاءنی رجل وو، دويم تا به فرض کړي وي چي دا په اصل کي قمت انا جاءنی رجل وو، دلته أنا فاعل معنوی دئ لفظی نه دئ ځکه تاء ضمير مؤکد أنا تاکید رجلٌ فاعل معنوی دئ لفظی نه دئ ځکه رجل بدل دئ دهغه ضمير څخه چی په جاءنی کي دئ، راځي عبارت ته.

**(انْ جاز تقدير كونه فی الاصل مؤخرا علی انه فاعل معنی فقط نحو انا قمت)** اول شرط دادئ که چيري جائز وو فرض کېدل دکون دمسند اليه چي دا په اصل کي مؤخر دئ بنا پر دې چي دا فاعل دئ معنی نه لفظا مثال انا قمت ( **وقدر**) دويم شرط دادئ فرض کړا سوی به وي چي دا په اصل کی مؤخر دئ **(والا فلا يفيد الا تقوي الحكم سواء جاز كما مر ولم يقدر او لم يجز نحو زيد قام)** که چيري دا دواړه شرطونه موجود نه وو نو بيا تقديم تخصيص نه فائده کوي مګر صرف فائده کوي تقوي دحکم برابره خبره ده جائز وي فرض کېدل دتاخير لکه په انا قمت کي يا فرض کړه سوې نه وي يا خو دسره تاخير جائز نه وي مثلازيد قام دلته مانع ولاړ دئ هغه دا که زيد مؤخر سی داسي وويل سي قام زيد نو دلته زيد فاعل لفظی دئ فاعل معنوي نه دئ لهذا زيد قام دتقوی فائده کوي دتخصيص فائده

نه کوي طالبانو سم متوجه سئ زيدٌ قامَ دا ديا مثال دئ رَجُلٌ جَاءَنِيْ دا دوو مثال دئ څه فرق يې دئ.

**پوښتنه:** په رجل جاءنی کي ته رجل وروسته کوي بيا رجل فاعل معنوي جوړوي دهو ضمير څخه په زيد قام کي چي زيد وروسته سي ته وايي دا فاعل لفظی دئ فاعل معنوي نه دئ لهذا زيد دي وروسته سي بيا دي فاعل معنوي سي دهُوَ ضمير څخه لکه څرنګه چي رجل فاعل معنوي دئ دهُوَ ضمير څخه؟

**جواب:** قزوينی دسکاکی خبره را نقل کړه سکاکی چي دئ (**واستثنی المنكر**) دمنکر صورت يی مستثنی کړي دئ وايی په منکر کي دا چم کوم په معرف کي يې نه کوم ځکه رجل مبتداء نکره ده مبتداء چي نکره واقع سی نو خامخا به تخصيص په يو وجه ما سره وي نو دلته دتخصيص بله وجه نه سته غير د دئ چي ته به رجل مؤخر فرض کوئ بيا به رجل مقدم کوي نو تخصيص به فائده کړي په زيد قام کي دزيدٌ ابتدائيت په اَوَّلُ الوهلت کي صحيح دئ تخصيص ته هيڅ ضرورت نه لري ځکه زيد معرفه دئ او حال دادئ چي مبتدا معرفه وي که زيد په زيد قام کي وروسته سي نو زيد به فاعل سي لفظا نه معنی او س که ته وايی چي زيد قام په اصل کي قام زيد وو نو په دغه صورت کي تقديم دفاعل لفظی راغلي پر فعل باندي او حال دادئ چي تقديم دفاعل لفظی پر فعل باندي ناجائز دئ.

**پوښتنه:** که ته وايي چي رجلٌ په اصل کي ته مؤخر فرض کوئ او دغه رجلٌ بدل بولي دهُو ضمير څخه چي هغه ضمير په جاء نی کي دئ نو پوښتنه داده چي په زيد قام کي يو تاوان دئ چي هغه تقديم دفاعل دئ پر فعل باندي په رجل جاءنی کي دوه تاوانه دي هغه دا چي درجلٌ تقديم پر متبوع هم راغلي دئ پر فعل هم راغلي دئ؟

**جواب:** علامه تفتازانی په قزوينی باندي ډيره خوابدوي علامه تفتازانی وايي قزوينی يواځي دا فرض کوي حقيقة نه وايی چي رجل بدل دئ دهو ضمير مبدل منه دئ بيا مي بدل را مخته کړی قزوينی دا خبره کوی فرضا چي رجل بدل دی دهُو ضمير مبدل منه دئ بيا مي بدل رامخته کړی:

**پوښتنه:** په زيد قام کي هم دفرض خبره وکړه يعنی زيد چي ورسته سي فاعل حقيقي نه دئ يو اځي ما فاعل حقيقي فرض کړی ؟

**جواب:** فاعل لفظی دومره زو رور دئ که يو وار فرض سي بيا قطعا نه سي مقدم کيدای ليکن په بدل کي دا قانون چلبدای سي چي يو شی چي دئ بدل فرض کړي بيا يې دبدل څخه را پرې کړه بل شی يې جوړ کړه لکه جرد قطيفة دا په اصل کي موصوف او صفت دئ بيا يې صفت دموصوف څخه را پرې کړ اضافت يې جوړ کړو کذالک صفات مقطعات .

واستثنى المنكر : سکاکی دمنکر صورت مستثنی کړي بجعله من باب واسرو النجوی الذين ظلموا اي على القول بالابدال من الضمير ، سکاکی رجل جاءنی ګرزوي ددې باب څخه بنا پر هغه قول باندي چي الذين بدل جوړوي دظلمُوا دواو څخه ( لئلا ينتفي التخصيص ) ددې وجي چي تخصيص منتفی نه سي اذ لا سبب له سواه ځکه تخصيص لره هيڅ سبب نه سته غير ددې چي تا به رجل په اصل کي مؤخر فرض کړې بنا پر دې چي رجل به فاعل وي معنی نه لفظا بخلاف المعرف په خلاف دمعرفې ځکه دمعرفې ابتدائيت صحيح دئ .

## اويايم سبق

ثم قال وشرطه ان لا يمنع من التخصيص مانع کقولنا رجل جاءني على ما مر دون قولهم شر اهر ذاناب اما على التقدير الاول فلا متناع ان يراد المهر شر لا خير واما على الثاني فللبوه عن مظان استعماله ) :

مخکې تر دې چي دسکاکی دمذهب شرط بيان کړو يو تمهيد واوره تخصيص پر درې قسمه دئ ١-: تخصيص الجنس ٢-: تخصيص الواحد ٣-: تخصيص النوع بيانيين چي تخصيص اخلي نو تخصيص الجنس او تخصيص الواحد اخلي اوس که يو ځای تخصيص النوع وه بيانيين ددې سره کار نه لري مصطلح دبيانيينو يو تخصيص الجنس دئ بل

تخصيص الواحد دئ ما رأيتُ الا حيوانا ما رأيتُ الا انسانًا ما رأيتُ الا رجلاً واحدا يو تخصيص الجنس دئ بل تخصيص النوع ده بل تخصيص الواحد دئ بيانيين دتخصيص الجنس تخصيص الواحد سره كار لري دتخصيص النوع سره كار نه لري سكاكى وايي تقديم دتنكير دمسند اليه تخصيص الجنس تخصيص الواحد فائده كوي په دى شرط چي تخصيص ته به مانع ولاړ نه وى كه مانع وو بيا تقديم دنكري نه تخصيص الجنس فائده كوي نه تخصيص الواحد فائده كوى مثلا شرٌ اهرّ ذا ناب په شر اهر ذاناب كي نه تخصيص الجنس جوړيږي نه تخصيص الواحد جوړيږي ځكه مانع ولاړ دئ سكاكى وايي دلته تقديم دنكرې چي شرٌ دئ نه تخصيص الجنس فائده كوي نه تخصيص الواحد فائده كوي ځكه مانع ولاړ دئ اوس راسَه تخصيص الجنس او تخصيص الواحد ته مانع څنګه ولاړ دئ تخصيص الجنس ته مانع دا رنګه ولاړ دئ داسي نه سي كېداى چي مراد دالمهر څخه شر دئ لا خيرٌ خير نه دئ ځكه مُهِر نه وي مګر شر وي تخصيص الواحد هم نه فائده كوي داسي نه سي ويلاى چي شرٌ اهر ذاناب يوه شر وغپوى دوو شرو نه دى غپولى يعنى دعربو دا مقصد نه وي چي مُهِر شر دئ لا شران دو ه شرونه نه دي يعنى په عرف دعربو كي چي دا توري استعمال سي داسي نه ويل كيږي چي يوه شر وغپوى دوو شرو نه دئ غپولى كه ته وايي مبتدا نكره څنګه واقع ده موږ وايو دلته تخصيص نوعى پكښي دئ نو دا معنى شرٌ عظيم اهر ذا ناب لا حقير شر عظيم كېدل دا دشر يوه نوعه ده شر حقير كېدل دا دشر بله نوعه ده له دې وجه دلته تخصيص نوعي دئ سكاكى وايي شرط دمنكر دادئ ان لا يمنع من التخصيص مانع تخصيص ته به مانع ولاړ نه وي كقولنا رجل جاءني على مامرّ دون قولهم شر اهر ذاناب نه دا قول ددوي چي شر اهر ذاناب دئ اما على التقدير الاول يعنى تخصيص الجنس فلامتناع ان يراد المهر شر لاخير منعه ده چي مراد دالمهر څخه شر دئ خير نه دئ ځكه مهر نه وي مګر شر وي واما على الثانى يعنى تخصيص الواحد فلنبوه عن مظان استعماله لري دئ تخصيص الواحد له ځايه داستعمال ددغه كلام ولي لانه لا يقصد به ان المهر شر لا شران (واذ قد صرّح الائمة بتخصيصه) هغه وخت چي ائمه

تصریح وکړه دده په تخصیص سره (حیث تأولوه بما اهر ذاناب الا شر) له دې وجې چې دوی تفسیر وکړي په ما اهر ذاناب الا شر سره (فالوجه تفظیع شان الشر بتنکیره) نو وجه د شر د شان لوړ والی دئ په سبب د تنکیر سره یعنی تنکیر د تعظیم دئ نو دا معنی شرٌ عظیم فظیع اهر ذاناب لا شر حقیرٌ .

## یو اویایم سبق

(وفیه نظر اذالفاعل اللفظی والمعنوي سواء في امتناع التقدیم ما بقیا علی حالهما فتجویز تقدیم المعنوي دون اللفظی تحکم)

**قاعده :** ضمیر د مخاطب دهغه چا دپاره مستعملیږي چې ته یې په سترګو وینې کله کله ضمیر د مخاطب دهغه چا دپاره مستعملیږي چې ته یې په سترګو نه وینې مثال اِیّاکَ نعبدُ ګوره الله په سترګو نه لیدل کیږي :

خبره په رجلٌ جاءنی او زید قام کي شروع وه .

**پوښتنه:** په رجل جاءنی که ته دا ترتیب کوې یو وار رجل مؤخر کوې بیا یې دهو ضمیر څخه بدل جوړوي بیا یې دبدل څخه را پرې کوئ بیا یې مقدم کوئ په زید قام کي ته دا ترتیب ولي نه کوئ ؟

**جواب:** که زه زید مؤخر کړم نو فاعل لفظی به سي او حال دا دئ چي تقدیم د فاعل لفظی پر فعل باندي نا جائز دئ .

**پوښتنه:** دا ترتیب ته په فاعل معنوي کي کوي په فاعل لفظی کي یې نه کوي دا ولي؟

**جواب:** دټولو نحاتو دا اتفاق دئ چي فاعل لفظی پرفعل باندي نه سي مقدم کیدای ما سوا دیو یا ددوو .

پوښتنه: په زید قام کي یو تاوان دئ هغه دا چي زید یو وار مؤخر فرض کړي بیا يې را مقدم کړي نو تقدیم به د فاعل راسي پر فعل باندي په رجل جاءنی که رجل یو وار مؤخر فرض کړئ بیا يې را مقدم کړي دوه تاوانه به راسي یو تاوان تقدیم د تابع به پر متبوع را سي بل تاوان تقدیم د فاعل به پر فعل راسي په رجل جاءنی کي دوه تاوانه دي او ته جواز ورکوې په زید قام کي یو تاوان دئ او ته جواز نه ورکوې دا خو تحکم دئ تحکم معنی دعوه بې له دلیله.

دا خو مکابره ده کبر دئ بل تر څو پوري چي تابع پر تابعیت پاته وي فاعل پر فاعلیت پاته وي بیا تقدیم جائز نه دئ؟

جواب: یو ملا وایي ددې دواړو فرق سته هغه دا که زیدٌ تر قام مخ ته کړم نو فعل به غیر د فاعله پاتیږي که رجلٌ تر هو مخ ته کړم نو متبوع بې تابع پاتیږی فعل بې فاعل پرېښود ل ډېر تاوان کوئ تر دې چي متبوع بې تابع پاته سي:

خلګ چي دا ترتیب کوي دا اعتبار محض دئ اعتبار حقیقي نه دئ.

وفیه نظر: په دې کي نظر دئ (اذالفاعل اللفظي والمعنوي) ځکه فاعل لفظی او معنوي یعنی د زید قام صورت او د رجل جاءنی صورت (سواء برابر دي (فی امتناع التقدیم ما بقیا علی حالهما) په منعه کېدو کي د تقدیم تر څو پوري چي باقي پاته وي پر خپل حال باندي (فتجویز تقدیم المعنوي دون اللفظي تحکم) جواز ورکول چي معنوی مقدم کولای سي لفظی نه سي مقدم کولای دا خو تحکم دئ.

(ثم لانسلم انتفاء التخصیص لولا تقدیر التقدیم لحصوله بغیره کما ذکره تقدیر التقدیم لحصوله بغیره کما ذکره):

بل اعتراض پر سکاکی باندی هغه دا چي سکاکی وویل په رجل جاءنی کي زه مجبوره سوم چي رجل به یو وار مؤخر فرض کوم بیا به يې را مقدم کوم نو به تخصیص راسي ځکه

دتخصیص دغه طریقه ده ولي دلته مبتدا نکره واقع سوې ده نو خامخا به تخصیص کوي
دتخصیص دغه طریقه ده چي یو وار به تاخیر کوي بیا به تقدیم کوي نو به تخصیص
راسي.

په زید قام کي زه مجبوره نه یم ځکه زیدٌ معرفه دئ تخصیص ته ضرورت نه لري موږ
سکاکی ته وایو هیڅ مجورتیا نه سته ځکه موږ وویل مسند الیه چي نکره سي تنوین یا
دافرادوي، یا دنوعي وي یا دتحقیر وي یا دتعظیم وي وغیر ذالک: لهذا هر تنوین چي
وي تخصیص په حاصلیږي:

راځي عبارت ته: ثم لا نسلم انتفاء التخصیص: موږ نه تسلیموو انتفاء دتخصیص (
لولا تقدیر التقدیم ) که چیري فرض نه سي تقدیم ( لحصوله بغیره ) دوجي دحصوله
دتخصیص غیر دفرض کولو دتقدیم چي هغه غیر عبارت دئ دتهویل تحقیر تکثیر تقلیل
څخه (کما ذکره) لکه دا چي سکاکی مخکي ذکر کړه ( ثم لا نسلم امتناع ان یراد المهر
شر لاخیر) ثم په عربی کي دوي معنا وي لري یوه معنی حقیقي دویمه معنی مجازي ثم
کله دتعقیب مع الفصل دپاره وي ددئ تحقیق مخته ته تیر سو مثال جاءنی زید ثم عمرو:

ثم کله د تعقیب ذکري دپاره وي : تعقیب ذکري دې ته وایي چي ددې خبري بعد دا خبره
درته کومه په واقع او نفس الامر کي دا ضروري نه ده چي دا دئ ددې وروسته وي یوازی په
تلفظ کي ضروري ده دلته ثم دتعقیب ذکري دپاره دي لا نسلم رَد دئ پر مانع باندي پر
نفس قاعده باندي رَد نه دئ یعنی دسکاکی پر یو عبارت باندي رَد دئ په رجل جاءنی
اوزید قام باندي رد نه دئ سکاکی وویل په شر اهر ذاناب کي تخصیص ته مانع ولاړ دئ نه
تخصیص الجنس سته نه تخصیص الواحد سته شیخ عبدالقاهر وایي په شر اهر ذاناب کي
تخصیص الجنس سته عرب وایي شر اهر ذاناب لا خیر، شر غپولی دي خیر نه دي غپولي
ثم لا نسلم امتناع ان یراد المهر شر لا خیر موږ نه منو امتناع چي مراد دالمهر څخه شر
دئ خیر نه دئ موږ دا نه منو سکاکی وایي په شر اهر ذاناب کي تخصیص الجنس نسته.

جمهور علماء وايي په شر اهر ذاناب کي تخصيص الجنس سته عبدالحكيم سيالكوتي ددوي دواړو په مابين کي محكمه کړې ده عبدالحكيم وايي دسپي غپا پر دوه قسمه ده يوه نباح معتاد بله نباح غير معتاد .

ليوه ذاته سپي نه غاپي کوم وغپل نو دهر خطر ناک شی ته غاپي دليوه ذاته سپي غپا نباح غير معتاده ده دليوه ذاته سپي غپا شر دئ خير نه دئ ولي دئ نه غپوي مگر شريې غپوي لـه دې وجه که ليوه ذاته سپي وغپل نو دا تخصيص النوع ده نو په دغه صورت کي داسي نه سي ويلای شر اهر ذاناب لا خير که دسپي غپا عادت وه لکه دکوچيانو سپي هر شي ته غاپي يعنی شر او خير دواړه يې غپوي نو دا تخصيص الجنس دئ که کور ته غل راغلي او سپي وغپل نو سړی داسي ويلای سي شر اهر ذاناب لا خير له دې وجه دنباح معتاد په صورت کي تخصيص الجنس دئ دنباح غير معتاد په صورت کي تخصيص النوع ده (**ثم قال ويقرب من هو قامَ زيدٌ قائمٌ فی التقوي لتضمنه الضمير وشبهه بالخالي عنه من جهة عدم تغيره فی التكلم والخطاب والغيبة**):

**قاعده:** موږ سکاکی ته وويل په زيد قام کي تقوی سته که نه سته سکاکی وايي په زيد قام کي تقوی سته ځکه اسناد دوه واره دئ يو واراسناد دقام وضمير ته دئ بيا ددواړو اسناد وزيد ته دئ په زيدٌ قائمٌ کي لږ تقوی سته يعنی په زيد قائم کي دومره تقوی نه سته لکه په زيد قام کي په زيد قائم کي تقوي سته ځکه دا محتمل دئ، دضمير لکه قامَ چي په بغله کي ضمير اخلی قائمٌ هم ضمير په بغله کي اخلی ليکن په زيد قائم کي لږ تقوی سته ځکه دا خالي عن الضمير دئ په واقع او نفس الامر کي په ده کي ضمير سته ليکن قائم دضمير په تغير سره نه مغير کيږي نو خالي عن الضمير دئ مثال **انا قائمٌ انتَ قائمٌ هوَ قائمٌ** قام دضمير په تغير سره مغير کيږي مثال **انتَ تقومُ انا اقومُ زيدٌ قامَ** . قائم داسي دي لکه رجلٌ رجل دضمير په تغير سره نه مغير کيږي مثال **هوَ رجلٌ اَنتَ رجلٌ اَنَا رجلٌ** .

(ولهذا لم يحكم بانه جملة ولا عومل معاملتها فى البناء) دا غه خو وجه ده چي په زيد قامَ کي قامَ جمله ده په زيد قائمٌ کي قائم جمله نه ده شبه جمله ده پر قائم باندي دمبنى حکم نه جاري کيږی دمعرب حکم ورباندي جاري کيږي مثال جاء لى رجلٌ قائم ورأيت رجلا قائمًا ومررتُ برجلٍ قائمٍ.

**قاعده:** که تقديم دمسند اليه سره د وليه وو خبر شبه فعل وو په دې صورت کي اختلاف دئ جارالله زمخشري وايي تخصيص فائده کوي : شيخ وايی تخصيص نه فائده کوي:

## اجراء تقديم المسند اليه

| المثال | تقديم | المراد به |
| --- | --- | --- |
| وَمَا أَنْتَ عَلَيْنَا بِعَزِيْزٍ (هود ۹۱) | انت | تخصيص |

تشريح: دلته جار الله زمخشري او صاحب المفتاح موافق دي په افاده دتخصيص کي

| المثال | تقديم | المراد به |
| --- | --- | --- |
| وَمَا أَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ (الانعام ۱۰۷) | انت | تخصيص |
| وَمَا أَنَا بِطَارِدِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا (هود ۲۹) | انا | تخصيص |
| وَمَا أَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيْظٍ (الانعام | انا | تخصيص |
| لَا الشَّمْسُ يَنْبَغِيْ لَهَا (يس ٤۰) | شمس | تقوى |

تشريح: دلته تقديم دمسند اليه فائده کوي تقوى دحکم منفي

## دوه اويايم سبق

(وما يرى تقديمه كاللازم لفظ مثل وغير فى نحو مثلك لا يبخل وغيرك لا يجود بمعنى انت لا تبخل وانت تجود من غير ايرادة تعريض لغير المخاطب لكونه اعون على المراد بهما)

دمثلک لا يبخل دوې ترجمې دي يوه ترجمه مطابقي ده بله ترجمه التزامي ده مطابقي تر جمي ته صريحی تر جمه وايي التزامي ترجمې ته کنايي ترجمه وايي دمثلک لا يبخل مطابقي تر جمه دا ده متکلم مخاطب ته وايي ستا مثل چي دغه سړی دئ بخل نه کوي دمثلک لا يبخل التزامي ترجمه داده زه متکلم يم نيک زما مخاطب دئ زه تعريض نه کومه زه مخاطب ته وايم تا ته چي څوک سوی وي هغه بخل نه کوي ته يې په طريقه اولی سره بخل نه کوي دغه معنی التزاميه او کنايه ده دغيرک لا يجوددوې معناګانی دي يوه معنی مطابقي ده بله معنی التزامي ده معنی مطابقي دا ده متکلم مخاطب ته وايي ستا غير سخا نه کوي التزامي معنی داده هيڅ څوک سخا نه کوي او حال دادئ چي سخا موجوده ده سخا يو وصف يو عرض دئ عرض بې له محله وجود نه لري عرض بې له محله نه سي را تلای له دې وجه دسخا محل مخاطب دئ مثلک غيرک په دويمه معنی چي کنايي معنی ده په دې صورت کي تقديم دمسند اليه پر مسند باندي کاللازم لکه لازم داسي دئ مثلک لا يبخل ډير زورور دئ تر لا تبخل وغيرک لا يجود ډېر زو رور دئ تر تجود يعنی کنايي معنی ډيره زوروره ابلغه ده تر صريحي معنی دوې معناګانی دې يوه معنی ستا مثل بخل نه کوي ته يې په طريقه اولی سره بخل نه کوي دا معنا کنايه ده بله معنی متکلم مخاطب ته وايي ته بخل نه کوې دا معنی صريحي ده له دې وجه کنايي معنی تر صريحي معنی ډېره زوروره ده او س ته را ولاړ سه تقديم دمسند اليه وکړه نو به تقوی فائده کړي حُکه په مثلک لا يبخل کي اسناد دوه واره دئ نو دواړه واره اسناد به تقوی فائده کړي دا تقوی به تقويه ورکړي وکنايي ته اَعْوَنُ بِه سي ډېر قوت به ورکړي علامه تفتازانی وايي دکاللازم دا ترجمه ونه کړې چي کله مقدم کيږی کله مؤخر کيږي بلکي

تقديم عين لازم دئ يعنى خا مخا به مقدم كيږي كه ته سوال وكړي چي عين لازم ولي نه ورته وايي .

جواب: دنحو قاعده ددغه تقديم تقاضا نه كوي له دې وجه كه زه لازم ورته ووايم نو ته به راته ووايي په كومه قاعده نو بيا به زه وچ ولاړ يم .

راځي عبارت ته ومما يرى تقديمه كاللازم : په هغه ځايو كي چي كتل كيږي تقديم دمسند اليه ته پر مسند باندي لكه لازم هغه لفظ دمثل او دغير دئ په دې مثا ل كي مثلك لا يبخل وغير لا يجود بمعنى انت لا تبخل وانت تجود من غير ايرادة تعريض لغير المخاطب ايراده به دتعريض نه وى وغير ته دمخاطب لكونه اعون على المراد بهما ځكه تقديم ډير اعون دئ پر هغه چي مراد دئ په دغه دواړو تركيبنو باندي .

## درواويايم سبق

(قيل وقد يقدم لانه دال على العموم نحو كل انسان لم يقم بخلاف ما لواخر نحو لم يقم كل انسان فانه يفيد نفى الحكم عن جملة الافراد لا عن كل فرد)

انسان لم يقم: لم يقم انسان په احوال دمسند اليه كى يو مشكل ځاى دادئ انسان لم يقم سلب العموم دئ رفعه دايجاب كلي كوي لم يقم انسان عموم السلب دئ اوس راسه سلب العموم څه معنى عموم السلب څه معنى سلب العموم دا معنى چي ته وايي انسان لم يقم يو انسان نه دئ ولاړ ګوره دلته نفى دبعضو انسانان راغلې نفى دټولو انسانانو نه راغلې دې ته رفعه دايجاب كلي وايي انسان يَقُومُ دا معنى ټول انسانان دريږي ، چي انسان لم يقم وويل سو نو رفعه دايجاب كلي راغله لم يقم انسان عموم السلب دئ لم يقم انسان دا معنى ټول انسانان نه دي ولاړ يعنى په لم يقم انسان كي نفى دتمامي افرادو دي دكل دراتلو وروسته انسان لم يقم اي كل انسانٍ لم يقم عموم السلب دئ كه دكل دراتللو وروسته په انسان لم يقم كي سلب العموم سي نو بيا دا تاكيد دئ هغه زړه معنى ده نوې معنى نه ده يعنى تاسيس نه دئ تاسيس دې ته وايي چي كل نوې معنى له ځانه سره راوړي په انسان

لم يقم كي سلب العموم دئ په كل انسانٍ لم يقم كي عموم السلب دئ هر ځای كه تا عموم السلب غوښتي نو پر مسند اليه باندي كل داخل كړه مسند اليه مقدمه كړه په كل انسان لم يقم كي عموم السلب دئ دعموم السلب ترجمه يو انسان په تمامي انسانانو كي ولاړ نه دئ دكل دراتللو وروسته په لم يقم انسان كي اي لم يقم كل انسانٍ سلب العموم دئ ولی كه دكل دراتللو وروسته عموم السلب سي نو بيا دا تاكيد دئ هغه زړه معنی ده تاسيس نه راغلي له دې وجه دكل دراتللو وروسته په لم يقم كل انسان كي سلب العموم دئ دسلب العموم ترجمه ټول انسانان ولاړ نه دئ بعض انسانان ولاړدي انسان لم يقم موجبه مهمله معدولة المحمول ده ځكه ده مهمله دې ته وايي چي حكم په قضيه كي پر نفر وي كَمِيّت دافرادو نه كلاً بيان وي نه بعضا بيان وي انسان لم يقم موجبه معدولة المحمول ده ځكه لم ديقم جز دئ دلته نفی رابط نه وهي نفی محمول وهي مثال زيد ليس بحجرٍ زيد ډبره نه ده دلته نفی نسبت رابط وهي زيد لا حجرٌ دا معنی زيد نه ډبره ده دلته نفی رابط نه وهي نفی محمول وهي انسان لم يقم موجبه مهمله معدولة المحمول ده په قوت دسالبه جزئيه كي ده لم يقم انسان سالبه مهمله ده په قوت كي دسالبې كليي ده ځكه نكره چي په سياق دنفی كي راسي نفی دهر فرد كوي قيل چا ويلي دي چي قائل يې ابن مالک دئ :

قد يقدم: مقدم كيږي مسند اليه داسي مسند اليه چي مُسوّر وي په كل سره دا مسند اليه مقدم كيږي پر مسند باندي داسي مسند چي مقرون وي په حرف نفی سره ( لانه ) ځكه تقديم (دال على العموم) دال دئ پر عموم السلب باندي نحو كل انسان لم يقم (بخلاف ما لواخر) په خلاف دهغه تركيب كه چيري مؤخر سي مسند اليه نحو لم يقم كل انسان ( فانه يفيد نفی الحكم عن جملة الافراد لا عن كل فرد) لم يقم كل انسان دا فائده كوي نفی دبعضو افرادو ښځه نه فائده كوي نفی دهر فرد ښځه (وذالک لئلا يلزم ترجيح التاكيد على التاسيس) داخبره چي تقديم مفيد دعموم دئ نه تاخير دا ځكه چي لازم نه سي ترجيح ده تاكيد پر تاسيس باندي (لان الموجبة المهملة المعدولة المحمول فی قوة السالبة الجزئية

المستلزمة نفي الحكم عن الجملة دون كل فرد والسالبة المهملة في قوة السالبة الكلية المقتضية للنفي عن كل فرد لورود موضعها في سياق النفي).

## څلور اویایم سبق

(وفيه نظر لان النفي عن الجملة في الصورة الاولى وعن كل فرد في الثانية انما افاده الاسناد الى ما اضيف اليه كل وقد زال ذالك بالاسناد اليها فيكون كل تأسيسا لا تأكيدا ولان الثانية اذا افادت النفي عن كل فرد افادت النفي عن الجملة فاذا حملت كل على الثاني لا تكون تأسيسا ولان النكرة المنفية اذا عمت كان قولنا لم يقم انسان سالبة كلية لا مهملة):

په مخکنی سبق کي عبدالرحمن قزوینی دابن مالک یو قاعده بیان کړه هغه دا چي په کل انسانٍ لم یقم کي تقدیم دمسند الیه عموم السلب فائده کوي په لم یقم کل انسان کي تاخیر دمسند الیه سلب العموم فائده کوي تقدیم دمسند الیه عموم السلب فائده کوي هغه وخت چي پرمسند الیه باندي کل داخل وي او مسند مقرون په حرف نفی سره وي مثال کل انسان لم یقم که پر مسند الیه باندي کل داخل نه وو بیا تقدیم دمسند الیه راغلي نو بیا سلب العموم دئ مثال انسان لم یقم تاخیر دمسند الیه سلب العموم فائده کوي هغه وخت چي پر مسند الیه باندي کل داخل وي او مسند مقرون په حرف نفی سره وي مثال لم یقم کل انسان که پر مسند الیه باندي کل داخل نه وو بیا تاخیر دمسند الیه راغلي نو بیا عموم السلب دئ مثال لم یقم انسان (وفيه نظر عبدالرحمن قزوینی پرقول دقیل باندي اعتراضونه کوي اول اعتراض دادئ ابن مالک وویل په انسان لم یقم کي نفی عن جملة الافراد دئ دکل دراتللو بعد که بیا نفی عن جملة الافراد سي نوبه تاکید سي تاسیس به نه سي په لم یقم انسان کي نفی عن کل فرد دي که دکل دراتللو بعد بیا نفی عن کل فر دسي نو به تاکید سي تاسیس به نه سي علامه قزوینی پر ده باندي اعتراز کوي هغه دا په انسان لم یقم کي نفی عن جملة الافراد دي قزویني وایي دکل دراتللو بعد بیا دا ترجمه کومه یعنی دکل دراتللو بعد بیا نفی عن جملة الافراد دي په لم یقم انسان کي نفی عن کل فرد دي لیکن تاسیس با

راغلي وي تاکید به نه وي راغلی ابن مالک خو وویل که دکل دراتللو بعد دا ترجمه وکړي نو تاکید به سي تاسیس به نه سي قزوینی وايي دکل دراتللو بعد بیا دا ترجمه کومه لیکن تاسیس به وي تاکید به نه وي وايي انسان لم یقم دلم یقم اسناد چي وانسان ته وسو نو نفی راغلي دعن جملة الافراد څخه بیا دلم یقم اسناد دانسان څخه قطعه سو ا سناد یې وکل ته وسو کل بیا نفی وکړي دعن جملة الافراد څخه نو ګوره دغه نفی عن جملة الافراد دانسان اسناد جلا راوړي دکل اسناد جلا راوړي له دې وجه دوه اسناده راغله هر اسناد جلا جلا معنی ورکړه نو دا تاسیس دئ تاکید نه دئ که څه هم ددواړو اسنادینو مفهوم یو دئ له دې وجه دا تاکید نه دئ ځکه تاکید یو لفظ دئ داسي لفظ چي فائده کوي هغه تقویه چي لفظ اخریې فائده کوي مثال جاءنی القوم کلهم ګوره لفظ دکلهم فائده کوي هغه تقویه چي قوم یې فائده کوي په کل انسان لم یقم کي دا رنګه نه دي بلکي اسناد وانسان ته باطل دئ په وخت کي داسناد وکل ته له دې وجه په کل انسان لم یقم کي تاسیس دئ ځکه هر اسناد دځانه سره جلا جلا معنی راوړه په اسنادینو کي نه په اسناد واحد کي لم یقم انسان دلم یقم اسناد چي وانسان ته وسو نو نفی عن کل فرد راغلی بیا دلم یقم اسناد دانسان څخه قطعه سو اسناد یې وکل ته وسو دغه اسناد هم نفی عن کل فرد کوي له دې وجه دا تاسیس دئ تاکید نه دئ ځکه دلته هر اسناد دځانه سره جلا جلامعنی راوړه علامه تفتازانی پر قزوینی باندي زورور رد کوي وايي یاره ته په تاکید نه پوهیږي تاکید پر دوه قسمه دئ یو تاکید اصطلاحي دئ لکه موږ چي یې په نحوه کي وایو چي هغه تکرار دلفظ دئ په تاکید لفظی کي مثال جاءنی زید زید ، بل تاکید لغوی دئ تاکید لغوی دې ته وايي چي یوه کلمه یوه معنی ورکړي ددې کلمې وروسته بله کلمه عین هغه معنی ورکړي دې ته هم تاکید وايي ابن مالک که چیري تاکید اصطلاحي اخیستي وای بیا دقزوینی اعتراض صحیح دئ کېدای سي چي دابن مالک دې تاکید لغوي مراد وي له دې وجه په دواړو مثالو کي تاکید لغوي دئ راځئ عبارت ته (وفيه نظر په دې کي نظر دئ ( لان النفی عن الجملة فی الصورة الاولی وعن کل فرد فی الصورة الثانية انما افادة الاسناد دافائده کوی اسناد هغه اسناد (الی ما اضيف اليه کل : چي مضاف دئ وهغه ته کل (وقد زال ذالک : په تحقیق سره دا زائل سوي دئ بالاسناد اليها په اسناد سره وکل ته یعنی چي تا کل ته اسناد وکړ اول اسناد

زائل سو (فيكون كل تاسيسا لا تاكيدا) نو كل تاسيس سو تاكيد نه سو (ولان الثانية الخ) دويم اعتراض پر دويم صورت مثال لم يقم انسان دلته نفی عن كل فرد دي دنفی عن كل فرد سره نفی عن جملة الافراد ضروري دي يعنی لم يقم انسان نفی عن كل فرد نفی عن جملة الافراد ددواړو وكړي دكل دراتللو بعد بيا نفی عن جملة الافراد راغلي له دې وجه دا تاكيد دئ تاسيس نه دئ ځكه دكل مخكي هم نفی عن جملة الافراد وي دكل بعد هم نفی عن جملة الافراد دي له دې وجه دا تاكيد دئ هغه زړه معنی ده يواځي ترجيع داحد التاكيدين به راغلي وي پر اخر باندي علامه تفتازانی وايي كه يو ملا را ولاړ سي او پر قزوينی باندي دا رنګه اعتراض وكړي چي وروره دلم يقم اسناد وانسان ته نفی عن كل فرد بالمطابقة كوي نفی عن جملة الافراد التزامًا كوي دكل بعد نفی عن جملة الافرادكوي مطابقة ګوره تاسيس راغلي علامه تفتازانی وايي مطابقي او التزامي مه پكښي جوړوه ځكه په اول صورت كي درته دريږي هغه اول صورت دادئ انسان لم يقم انسان لم يقم دا معنی فرد ماولاړ نه دئ ددې سره نفی عن جملة الافراد ضروري دئ له دې وجه دلته نفی عن جملة الافراد راغلي التزاما دكل بعد نفی عن جملة الافراد راځي مطابقة له دې وجه دلته مه ورته دريږه (ولان الثانية اذا فادت النفی عن كل فرد افادت النفی عن الجملة فاذا حملت كل علی الثانی لا تكون تاسيسا:

دريم اعتراض ولان النكرة المنفية الخ لم يقم انسان دلته اعتراض پر قاعده نه دئ اعتراض پر تسميه كوي تا وويل لم يقم انسان سالبه مهملة ده ولي سالبه مهمله ده دا سالبه كليه ده ځكه نكره چي تحت النفی راسي عموم فائده كوي دا دعموم فائده به يا دسوره اخلي يا به دسوره نه اخلی دلته نكره تحت النفی راغلی ده نكره چي تحت النفی راسي هلته من استغراقيه مقدر وي:

له دې وجه من استغراقيه ټول افراد را كښي باسي بلكي نكره چي تحت النفی راسي دمنطقيانو په نيز دا سور دئ (ولان النكرة المنفية اذا عمت كان قولنا لم يقم انسان سالبة كلية لا مهملة).

## پنځه اویایم سبق کله چي کلمه دکل په طرف کي راسي

( وقال عبدالقاهر ان کانت کلمة کل داخلة فی حیز النفی بان اخرت عن اداته نحو شعر ماکل ما یتمنی المرء یدرکه تجری الریاح بما لا تشتهی السفن او معمولة للفعل المنفی نحو ما جاءنی القوم کلهم او ما جاءنی کل القوم او لم اخذ کل الدراهم او کل الدراهم لم اخذ توجه النفی الی الشمول خاصة )

عبدالقاهر وایی که چیري کلمه دکل داخله وه په طرف دنفی کي پر دارنګه چي کلمه دکل وروسته وي تر نفی بیا برابره خبره ده کلمه دکل معمول دنفی وي او که نه وي برابره خبره ده خبر فعل وی او که خبر غیر فعل وي یا کلمه دکل معمول دفعل منفی وي په دا ټولو صورتو کي نفی متوجه کیږي خاص وشمول ته نه واصل فعل ته هغه مثال چي کلمه دکل معمول دنفی وي او خبر فعل وي نحو شعر ماکل ما یتمنی المرء یُدرِکهُ+ تجری الریاح بما لا تشتهی السفن + ترجمه نه دئ هر هغه شي چي سړي یی تمنی کوي بیا دي دهغه شي ادارک هم وسي یعنی دهر متمنّی ادارک نه سي کېدای باد یې جاري کوي هغه طرف ته چي دکښتی اشتهاء نه وي :

ترکیب: کل ما یتمنی المرء دا به اسم سي د(ما) یدرکه دا به خبر سي د ( ما ) هغه مثال چي کلمه دکل معمول دنفی وي او خبر غیر فعل وي نحو ما کل متمنی المرء حاصلا :

ترکیب: کل متمنی المرء دا به اسم سي د( ما ) حاصلا دا به خبر سي د( ما ) .

(ومعمولة للفعل المنفی) علامه تفتازانی وایي په ظاهره دا رامعلومیږي چي معمولة عطف دئ پر داخلة باندي خو دا عطف نه دئ صحیح ځکه دخول په حیز دنفی کي شامل دئ ور ته چي کل معمول دنفی دئ دا عطف نه دئ صحیح ځکه دلته عطف دخاص پر عام باندي په کلمه داو سره دئ وهو ممنوعٌ دغه عطف منعه دئ ولي عطف په او سره دمتقابلینو وي دلته چي تا عطف په او سره کړي نو دا معنی چي داَو ما بعد داَو په ماقبل کي دخل نه

لري او حال دا دئ چي دا َو ما بعد دا َو په ما قبل کي دخل لري عطف دخاص پر عام باندي په واو سره جائز دئ، يا خو معمولة عطف دئ پر أُخِرت باندي ·

**پوښتنه:** دا عطف نه دئ صحيح ځکه دلته عطف دمفرد راغلي دئ پر جمله باندي ؟

**جواب:** دلته اصل معطوف حذف دئ هغه معطوف دا دئ جعلت معمولة للفعل المنفى:

**پوښتنه:** دا عطف نه دئ صحيح ځکه تاخير عن اداة النفى دا شامل دئ ودې ته چي دى دي معمول دفعل منفى سي ؟

**جواب:** علامه تفتازانى جواب ورکوي سعد وايي تاخير خاص دئ يعنى موږ په تاخير کي وايو معمول به دفعل منفى نه وي وروسته وايو معمول به دفعل منفى وي اوس عطف صحيح سو يعنى کله ګل دلفظ ما وروسته سي خو معمول به دفعل منفى نه وي مثال ما کل يتمنى المرء ، دلته کل معمول دفعل منفى نه دئ:

کله به ګل معمول دفعل منفى وي مثال ما جاءنى القوم کلهم دلته کل معمول دئ دفعل منفى له دې وجه اوس عطف بلکل صحيح ده:

**پوښتنه:** موږ علامه تفتازانى ته وايو اې سعد ته ولى جواب په اللّٰهُمَّ سره ورکوي ؟

**جواب:** علامه تفتازانى وايي عبدالرحمن قزوينى پأَنْ اُخِرت عام ويلي دئ که معمول دفعل منفى وي او که معمول دحرف نفى وي لکن تامقيد کړي په دې قيد سره چي معمول به دفعل منفى نه وي ځکه سعد تعبير په اللهم سره وکړ، معمول عام دئ فاعل وي، مفعول وي، تاکيد وي او يا غير ذالک :

مثال ما جاءنى القومُ کلهم وما جاءنى کل القوم، ترجمه ټول قوم ما ته نه دئ راغلي·

**پوښتنه:** مثال دتاکيد ولي مقدم سو پر فاعل باندي ؟

جواب: ځکه کل اصل دئ په تاکید کي **او لمْ اخُذ کل الدراهم فی المفعول المتاخر او کل الدراهم فی المفعول المتقدم: توجه النفی الی الشمول خاصة** په دا ټولو صورتو کي نفی متوجه کیږي وشمول ته خاصة نه واصل فعل ته ( **وافاد الکلام ثبوت الفعل او الوصف لبعض**) کلام فعل یا وصف ثابت کړي وبعض هغه ته چي کل ورته مضاف وي ( **او افاد تعلقه به**) یا کلام فائده کوي تعلق دفعل یا دوصف په بعض پوري (**والاعمّ النفی کل فرد کقول النبي صلی الله علیه وسلم لما قال له ذوالیدین اَقصرت الصلاةُ اَمْ نَسیتَ یا رسول الله کل ذالک لم یکن**) که چیري ګُل تر نفی مقدم وو معمول دفعل منفی نه وو بیا کل نفی عن کل فرد را ولي مثال **کلُّ الدارهم لم اخذ** ترجمه یو درهم مي نه دئ اخیستي :

فائده: د**کلَّ الدراهم لم اخُذ** او **کُلُّ الدراهم لم اخُذ** فرق دادئ د**کلَّ الدراهم لم اخذ** ترجمه ما ټول دراهم نه دي اخیستي بعض مي اخیستي دي د**کلُّ الدراهم لم اخُذ** ترجمه یو درهم مي والله که اخیستي وي **کلَّ الداهم** په ترکیب کي مفعول مقدم دئ **لم اخذ کلُّ الدراهم** په ترکیب کي مبتداء، نبي علیه السلام په لمانځه کي خطاء سو یو صحابي چي لقب یې ذوالیدین دئ ( ذوالیدین ځکه ورته وایي چي لاسونه یې اوږده وه) ذوالیدین نبي علیه السلام ته وویل **اقصرت الصلوة ام نسیتَ یا رسول الله**، دالله ﷻ له طرفه لمونځ کم سوي دئ او که ستا هیر سو یا رسول الله نبي علیه السلام ورته وویل **کلُّ ذالک لم یکن** په دا دوو کي یو نه دئ واقع سوي یعنی نه قصر واقع دئ نه نسیان واقع دئ بیا دذوالیدین تائید وسو ټولو اصحابو وویل چي په دا دوو کي یو واقع سو .

بیا نبي علیه السلام وویل واقع په دا دواړو کي یو واقع سو، طالبانو دا ځای په مختصر المعانی کي مشکل دئ ذوالیدین پوښتنه کړې ده په ام سره کوم سړی چي **مُستَفهم** وي په ام سره دهغه په دوو غرضو کي یو غرض وي یو غرض یې داوي چي دا په دادوو کي دیوه تعین را ته وکړه دویم غرض یې دا وي چي دا راته ووایه چي دواړه نه دي سوي

دمستَفهِم دا غرض نه دئ چي دواړه جمعه کړه چي هم صلوة کم دئ هم هیر ه ده ځکه مستفهم خبر دئ په دې باندي چي یو کائن دئ (وعلیه قوله قد اصبحت امّ الخیار تدّعی، عليّ ذنباً کلُّهُ لم اصنع) شاعر وایي په تحقیق سره سهار کړي ام الخیار او دا ام الخیار پرما باندي دعوه دګناهونو کوي چي ته دا ګناه کوې دا ګناه کوې دا ګناه کوي کلُّه لم اصنع، یو ګناه مي والله که کړې وي .

قاعده: علامه تفتازانی وایي شیخ عبدالقاهر چي کومه قاعده بیان کړه هغه قاعده اکثریه ده کلیه نه ده الله فرمایی ﴿ والله لا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ﴾، خدای پاک دهر مختال او فخور سره مُحبت نه کوئ که چرې دا قاعده کلیه سي نو بیا دا معنی چي خدای پاک دیو مختال او فخور سره محبت نه کوي دبل مختال او فخور سره محبت کوي دا معنی غلطه ده بلکي دلته نفی عن کل فرد دئ والله ﴿لا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ﴾، خدای پاک هر کافر او ګناه ګار سره محبت نه کوی نفی عن کل فردٍ دي که چیری دیو کافر او اثیم سره محبت وي دبل سره یې نه کوي دا معنی غلطه ده دلته نفی عن کل فرد دي یعنی بلکل دکافر او اثیم سره محبت نه کوي ، ﴿وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِينٍ﴾، بلکل ته دحلاف او مهین اطاعت مه کوه که چیري دا قاعده کلیه سي نو بیا دا معنی دیو حلاف او مهین اطاعت کوه دبل حلاف او مهین اطاعت مه کوه دا معنی غلطه ده دلته نفی عن کل فردٍ دي .

قاعده: ضمیر المخاطب: په ضمیر دمخاطب سره خطاب وهغه چا ته کیږي چي هغه مشاهد وي یعنی په سترګو لیدل کیږي یعنی په مشاهده کي مستعملیږي کله کله په غیر مشاهد کي مستعملیږي مثال ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ﴾ دلته مخاطب الله دئ لیکن الله مشاهد نه دئ.

## شپږاویا یم سبق وضع المضمر موضع المظهر

(واما تأخیره فلا قتضاء المقام تقدیم المسند)

وروسته والی دمسند اليه دا له وجي دتقاضا دمقام تقديم لره دمسند يعنی مقام داتقاضا کوي چي مسند دي پر مسند اليه مقدم سي (**هذا كله مقتضى الظاهر**) دا ټول چي ذکر دئ حذف دي تقديم دئ تاخير دئ وغير ذالک مقتضی دظاهر الحال دي (**وقد يخرج الكلام على خلافه**) کله کله کلام خارج سي پر خلاف دمقتضی ظاهر الحال باندي يعنی کله کله کلام دخفی الحال موافق وي .

**قاعده:** هر ځای که دظاهر الحال او خفی الحال مقابله راغله خفی الحال غالبا تر ظاهر الحال زورور وي ځکه خفی الحال په ګېږه کي لويه معنی را اخلي که هر ځای خفی الحال وو معنی خيز به وي که معنی خيز نه وو دا بليغ نه دئ دخبري خلاصه داده هر ځای که کلام دظاهر الحال مخالف سو نو دمعانی اصول دادي چي دا کلام به زرور په ګېږه کي يو لويه معنی را اخلی مقتضی دظاهر الحال دي ته وايي چي يو ځای مقام تقاضا د ظاهر کوي ته را ولاړ سي اسم ظاهر راوړي که يو ځای مقام تقاضا داسم ظاهر کوله ته را ولاړ سي داسم ظاهر پر ځای باندي ضمير را وړي دي ته خفی الحال وايي مثال ﴿**قُلْ هُوَ اللهُ اَحَدٌ اللهُ الصَّمَدُ**﴾ دلته دهُوَ ضمير دغائب دئ ضمير دغائب هلته راځي چي يو وار مرجع مخکي تيره سوي وي او حال دادئ چي مخکي مرجع نه سته نو په کار داده چي دضمير پر ځای باندي اسم ظاهر راسي ليکن دلته داسم ظاهر پر ځای باندي ضمير راوړل سوی دئ نو دا کلام دخفی الحال مطابق دئ (**فيوضع المضمر موضع المظهر كقولهم نعم رجلا مكان نعم الرجل فى احد القولين**) وضع دمضمر پر ځای دمظهر کيږي مثال نعم رجلا په نعم کي دهُوَ ضمير دئ ضمير غائب دئ ضمير دغائب مرجع غواړي او مرجع به مخکي وي له دي وجه دلته مرجع مخکي نه سته نو دا مقام داسم ظاهر دئ داسي عبارت په کار دئ نعم الرجل خو دلته وضع دمضمر پر ځای دمظهر وسوه نو دا کلام دخفی الحال مطابق دئ خفی الحال دا رنګه جوړيږي يو وار به ته ابهام وکړې بيا به يې تفسير وکړي چي تا کي اوقع فی النفس سي يعنی خفی الحال دي ته وايي چي په تا کي دننه يو کيفيت پيدا سی هغه کيفيت تا ته وايی ابهام جوړ کړه وروسته يې تفسير وکړه چي تا کي اوقع فی النفس سي او دا قانون

دئ چي ابهام بعد التفسير اوقع فی الذهن وي په نعم رجلا زيد کيِ دوه قوله دي يو قول
دادئ نعم رجلا دا جلا جمله ده زيد خبر دئ دمبتداء محذوفي أي هُوَ زيد داجلا جمله ده
مثا ل دمانحن فيه دئ ځکه په نعمَ کي ضمير دغائب دئ او دا ضمير دمظهر پر ځای راغلي
دئ ځکه مخکی مرجع نه ستهٔ دويم قول دادئ نعم رجلا خبر مقدم زيدٌ مبتداء مؤخره
مثال دما نحن فيه نه دئ ځکه زيد لفظا مؤخر دئ رتبتا مقدم دئ لهذا دنعم ضمير راجع دئ
وزيد ته .

**پوښتنه:** پر دويم قول باندي نعمَ رجلا خبر مقدم زَيدٌ مبتداء مؤخره دلته انشاء خبر واقع
ده اوحال دا چي انشاء خبرنه واقع کيږي ځکه خبر حمل غواړي په انشاء کي حمل نه ستهٔ
ځکه په انشاء کي حکايت نه سته انشاء متصفه په صدق او کذب سره نه ده .

**قاعده:** انشاء څلور جملي نه سي واقع کيدای ۱-: انشاء صله نه سي واقع کيدای ۲-
انشاء صفت نه سي واقع کېدای ۳- انشاء حال نه سي واقع کېدای ۴-: انشاء خبر نه سي
واقع کيدای ځکه دا څلور سره حمل غواړي او په انشاء کي حمل نه سته ځکه په انشاء کي
حکايت نه سته :

انشاء چي هر ځای خبر واقع سي نو تأويل به داسي کوو زيد مقول فی حقه نعم رجلا نه
رجلا بدل دئ دمقول څخه مقول خبر دئ که يو څوک پوښتنه وکړي چي دنعم رجلا ضمير
چا ته راجع دئ نو ته به ورته ووايي دنعم ضمير مُتعَقّل ته راجع دئ داسي متعقل چي هغه
معهود دئ په ذهن کي يعنی تا چي په ذهن کي کوم شی نيولي دئ دنعم ضمير هغه ته
راجع دئ که ته ووايي چي تا په ذهن کي کوم شی نيولي دئ نو ته به ورته ووايي چي دهو مه
بعد کوم شي تفسير واقع کيدی هغه به په ذهن کي وي يو وار به تا په ذهن کي رجلا نيولي
وي بيا درجلا تفسيريت صحيح دئ که تا رجلا په ذهن کي نيولي نه وي بيا رجلا تفسير نه

سي جوړېدای مثال الله فرمايی ﴿ بِئْسَ لِلظَّلِمِينَ بَدَلًا ﴾ دلته په بئس کي دهو ضمير دئ
الله سبحانه هو تعبير جوړ کړئ دئ دبدلا څخه بيا يې مذکور بدَلا تفسير واقع سو يعنی
دبئس دضمير څخه بدلا مراد دئ ځکه وروسته بدلا تفسير واقع دئ علامه تفتازانی په
دويم قول باندي اعتراض کوي مثال نعم رجلا زيد دلته که مخصوص بالمدح تثنيه سي يا

جمعه سي مثال نعم رجلا زيدان وزيدون نعم رجلا خبر مقدم زيدان او زيدون مبتداء مؤخره لەدې وجه دلته مطابقت دراجع او مرجع نه راغلی ځکه مرجع تثنيه يا جمعه ده راجع دهُوَ ضمير دئ دهو ضمير دمفرد دئ عرب په نعم کي تغير نه کوي داسي نه وايي نعما نعموا نو ددئ څخه دارا معلوميږي چي ددويم قول تر کيب نه دئ صحيح ځکه مطابَقت دراجع او مرجع نه راځي :

جواب افعال پرد وه قسمه دي ١- افعال متصرفه ٢-: افعال جوامده دا افعال جوامده دئ په دې افعالو کی تغير نه راځي افعال جوامده دادي ١- نعم ٢- عصی ٣- بئس ۴- ساء ( **وقولهم هو او هي زيد عالم مكان الشان او القصة ليتمكن ما يعقبه فی ذهن السامع لانه اذا لم يفهم منه معنى انتظره)** ضمير شان دې ته وايي چي دجملې اول جز مستقل مذکر وي مثال هو زيد عالم ضمير قصه دې ته وايي چي دجملې اول جز مستقل مؤنث وي مثلا هي هند مليحة :

**پوښتنه:** چي زيد عالم وايي زيد قائم ولی نه وايي؟

**جواب:** ضمير شان او ضمير قصه په نادر مهتم بالشان کي مستعمليږي مثال هو زيد عالم ترجمه خبره خو داسي ده زيد عالم دئ علم مهتم بالشان او امر عظيم شی دئ قائم امر عظيم شي نه دئ.

**پوښتنه:** زيد عالم دهو تفسير کوي دهې تفسير نه کوی ؟

**جواب:** دا مُجرّدِ تمثيل دئ دتفسير يعنی نفس موږ ته دار ابنکاره کوي چي دضمير شان او ضمير قصه ما بعد مستقله جمله تفسيريه وي.

**فائده:** دضمير شان او ضمير قصه ترجمه خبره خو داسي ده، قصه خو داسي ده .

**ليتمكن ما يعقبه فی ذهن السامع** ضمير شان او ضمير قصه ددې دپاره وي چي ښه قرار ونيسي په ذهن دسامع کي هغه شي چي دده وروسته واقع کيږی **لانه اذا لم يفهم منه**

معنی، سامع چي هر كله دضمير څخه معنی فهم نه كړي انتظره نو سامع انتظار وكړي دهغه شی چي دضمير وروسته راځي دپاره دفهم دمعنی

## اجراء وضع المضمر موضع المظهر

فائده : ١-: كله جمله تفسير واقع وي ٢-: كله مفرد تفسير واقع وي :

| المثال | الضمير | الجملة المفسرة | المفرد المفسر |
|---|---|---|---|
| قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ ( الاخلاص١) | هو | الله احد | |
| فَاِنَّهَا لَا تَعْمَى الْاَبْصَارُ | ها | اتعمى الابصار | |
| لٰكِنَّا هُوَ اللّٰهُ رَبِّيْ ( الكهف٣٨) | هو | الله ربي | |
| يَابُنَيَّ اِنَّهَا اِنْ تَكُ (لقمان١٦) | ها | ان تک | |
| بِئْسَ لِلظّٰلِمِيْنَ بَدَلًا ( الكهف ٥٠) | هو | | بدلا |
| نِعْمَ رَجُلًا زيد | هو | | رجلا |

## وضع المظهر موضع المضمر

(وقد يعكس) كله كله عكس وي يعنی كله كله مظهر پر ځای دمضمر راسي (فان كان اسم اشارة فلكمال العنايه بتميزه لاختصاصه بحكم بديع كقوله شعر كم عاقل عاقل اعيت مذاهبه وجاهل جاهل تلقاه مرزوقا، هذاالذی ترک الاوهام حائرة ، وصير العالم النحرير زنديقا) كه چيري دمضمر پر ځای مظهر اسم اشاره وه دادد‌ئ دپاره چي دا مشار اليه ته ګوره مابعد نادره عجيبه حكم وربانديي لګومه كه څه هم مشار اليه غير محسوس ده فان كان اسم اشارة كه چيري مظهر اسم اشاره وه فلكمال العناية داله وجي دپوره قصده دمتكلم بتميزه په تميز سره دمسند اليه لاختصاصه بحكم بديع ددې دپاره چي مسند اليه خاص سي په حكم بديع سره .

قاعده:هر ځای چي مصدر یامشتقي راسي بیا په دغه رنګ مصدر یا مشتقي موصوف سي مقصد دعربو مبالغه وي کم عاقلٍ ډیرپوه خلګ کم عاقل عاقل بیخی ډیرپوه خلګ ،

اَعیَت ستړي به وي مذاهبه تګ لاري ددوي په معاش کی یعنی پوهان درزق په ګټلو کي ستړي وي وجاهل جاهل بیخی ډیر ناپوه خلګ تلقاه مرزوقا، ملاقي به سي په داسي حال کي چي ډیر رزق به الله پاک ورکړي وي هذا الذی ترک الاوهام حائرة دغه عقل مند سړي چي په روزي ګټلو کي ستړي وي او دغه جاهل سړی چي په رزق کټلو کي ستړي نه وي دا هغه څوک دئ چي ګرځولي یې دي وهمونه حیران کوونکي دلته ترک په معنی دصیّرَ دئ وصيَّرَ العالم النحریر زندیقا او لوی غټ عالم یې زندیق ګرځولي .

## اوه اویایم سبق

(اوالتهکم بالسامع اذا کان فاقد البصر)

کله به ځای دضمیر وي لیکن دضمیر پر ځای اسم اشاره را وړل سي مقصد دمتکلم یوازی مسخرې کول دي په سامع باندي، استهزاء په اسم اشاره سره پر دوه قسمه ده ١- یو قسم استهزاء په اسم اشاره داده ستا سامع ړوند دئ او دا ړوند تا ته واي مَنْ ضَرَبَنِي چا زه ووهلمه ته ړانده ته وایي هذا ضَرَبَکَ مقتضی دظاهر دا وه چي داسي ویل سوي وای هُوَ زید ځکه مرجع مخکي ده په پوښتنه کي لیکن دضمیر پر ځای اسم اشاره راوړل سوه مقصد تهکم او استهزاء ده په سامع باندي ٢- دوهم قسم استهزاء په اسم اشاره سره داده ستا سامع اعمی (ړوند) دئ ړوند تا ته وایي مَنْ ضَرَبَنِي ته ړانده ته وایي هذا ضَرَبَکَ مشیرا للخلاء ده وهلي یې په داسي حال کي چي ته به اشاره کوونکي یې وخالی ځای ته اوالتهکم مسخري کول دي، بالسامع، په سامع باندي اذا کان فاقد البصر هغه وخت چي سامع فاقد البصر وي یعنی (ړوند وي) کما :

فائده : تر کما لاندي کله ناکت تمثیلیه لیکلي وي کله ناکت تر کما لاندي استقصائیه لیکلي وي په کوم ځای کي که تر کما لاندي استقصائیه لیکل سوي وه نود دې دامعنی چي ددې تمامي صورتونه هم دادي په کوم ځای کي که تر کما لاندي تمثیلیه لیکل سوي وه نو ددې دا معنی چي دا یو مثال دئ له دې وجه راندده ته اشاره کول دا یو مثال دې دتهکم ځکه دتهکم یو بل صورت هم سته ( او الندا على كمال بلا دته ) کله متکلم مسند الیه په اسم اشاره سره پر ځای دضمیر ذکر کړي مقصد دمتکلم تنبیه ورکول وي چي زما مخاطب انتهایی خَر دئ یعنی زما سامع انتهایی غبي دئ چي تر څو پوري یو شي محسوس بالبصر نه وي هغه دئ نه وینی یعنی زما سامع دغیر محسوس ادراک نه سی کولای (او فطانته) یا متکلم سامعینو ته وایي چي زما سامع دومره ذکي دي چي غیر محسوس دده په نیز په منزله دمحسوس وي ( او ادعاء کمال ظهوره ) یو شي ښکاره نه دئ لیکن دئ دا دعوه کوي چي دامسند الیه پوره ښکاره ده محسوس بالبصر ده ادعاء دې ته وایي په واقع کي یو شي نه سته ته وایي سته کمال ظهور نه سته ته وایي کمال ظهور سته دغه ادعاء ده (وعليه) پر دغه قاعده باندی چلیږی را روان مثال (من غیر هذ الباب) غیر ددغه بابه یعنی دمسند الیه باب به نه وي یعنی مجرور به دجار وي لیکن اشاره ده ادعاء دکمال ظهور پکښي سوي ده شعر ( تَعَالَلْتِ کَیْ اَشْجیٰ وما بکِ علةٌ . تریدین قتلي قد ظفرتِ بذالک) سړی خپلي ښځی ته وایي تعاللت، تا ځان پر ناجوړي اچولی دئ کَی: ددې دپاره اشجیٰ چي ما غمجن کړي ومابکِ علةٌ په تاباندي هیڅ نه دي سوي، تریدین قتلي، ته اراده لري زما دقتل، قد ظفرتِ بذالک په تحقیق سره ته کامیابه یې په قتل زما کي دبذالک مشار الیه قتلي دئ مقتضي دظاهر دا وه چي داسي ویل سوي واي بِهِ ځکه قتل غیر محسوس دئ لیکن دضمیر پر ځای اسم اشاره راوړل سوه دا اسم اشاري مشار الیه قتل دئ قتل په سترگو نه لیدل کیږي لیکن دي یی دکمال ظهور دعوه کوي (وان کان غیره) که چیري اسم ظاهر غیر داشاري وي علم وو یا معرفه په اضافت وو ( فلزيادة التمكين)

دادډ دپاره چې ښه قرار ونيسي مسند اليه دخبري خلاصه داده ځای به دضمير وي ليکن دي علم راوړي ددې دپاره چې ښه قرار ونيسي مسند اليه په ذهن سامع کي ﴿قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ اللهُ الصَّمَدُ﴾ لم يقل هُوَالصمد لزيادة التمکين، دضمير پر ځای يې علم وويل ددې دپاره چې ښه قرار ونيسی په دماغ کي چي دغه الله ښې پورا دئ ښې نيازه دئ الصمد صمد هغه ذات دئ چي ده ته په مهما تو کښي رجوع کيږي.

## اته اويايم سبق

(ونظيره من غيره ﴿وَبِالْحَقِّ أَنْزَلْنَاهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ﴾ نظير دقل هو الله احد غير دبابه دمسند اليه وبالحق انزلناه وباحق نزل دئ، په کار داسي عبارت وو بالحق انزالناه وبه نزل ځکه مخکي مرجع ستة هغه مرجع بالحق دئ ليکن دضمير پر ځای اسم ظاهر راغلی دپاره دزيادة التمکين علامه تفتازانی دبالحق تفسير داسي کوي بالحکمة المقتضية للانزال حکمت داسي حکمت چي تقاضي کوي دانزال دهغه مطابق قران موږ نازل کړي ددويم بالحق ترجمه به داسي کوي بالحکمة المقتضية للانزال که ددويم بالحق ترجمه داسي سي نو دا دمانحن فيه مثال دئ که چيري ددويم بالحق تفسير داول بالحق تفسير نه سي بلکي ددويم بالحق تفسير په اوامروا نواهي وسي بيا دما نحن فيه مثال نه دئ.

ځکه دهر يوه جلا جلا معنی ده له دې وجه دويم بالحق داسم ظاهر ځای دئ دضمير ځای نه دئ ځکه مرجع مخکي نه ستة (او ادخال الروع فی ضمير السامع وتربية المهابة او تقوية داعي المامور ومثالهما قول الخلفاء اميرالمؤمنين يأمرک بکذا) وينا کوونکي چي وينا کوي له تاسره ګډ وي نو دی به تعبير په اسم ظاهر سره نه کوي دی به دخپل ځان تعبير په اسم ضمير سره کوي ما داسي وکړل ما داسي وکړل بيا مي داسي وکړل آنا آنا به استعمالوي نوم به نه اخلی ځکه دهغه به داخيال وي چي دابل څوک يا دوی له دې وجه ځای دضمير وي ليکن دی اسم ظاهر راوړي مقصد يې دا وي چي روعب داخل سي په زړه

دسامع کي که ضمير استعمال سي بيا روعب نه راځی په زړه دسامع کي، وتربية المهابة مهابة معنی دَبْدَبَه، تربية معنی سوکه سوکه لوړېدل يعنی لوړېدل ددبدبې .

دادخال الروع سره تربية المهابة لازم دئ يعنی چي ادخال الروع راسي تربية المهابة خامخا راځي ادخال الروع او تربية المهابة تقريبا غالبا لازم او ملزوم دي ادخال الروع ملزوم تربية المهابة لازم ، لازم او ملزوم ذاسي وي لکه تاکيد تربية المهابة دادخال الروع دپاره داسي دئ لکه تاکيد ، مؤکد او تاکيد يو شي وي لازم او ملزوم هم يو شي وي له دې وجه دا يوه نکته ده دوې نکتې نه دي ځکه لاندي ناکت وايي عطف تفسير مثال امير المؤمنين يأمرک بکذا: امير المؤمنين تا په دغه کار امر کوي او تقوية داعی المامور، زه امير المؤمنين يم عبد الاحد مأمور دئ ما چي مأمور ته امر وکړ په مأمور کي دننه يو کيفيت پيدا سو دا کيفيت مامور ته وايي دا کار وکړه که دا کار ونه کړې بيا آمير زما څخه انتقام اخلي وهي مي بندي کوي مي زما څخه انتقام اخلی وهي مي بندي کوي مي دا په ده کی دننه يو داعی دئ ته را ولاړ سي ده ته اسم ظاهر ذکرکړې ورته ووايی امير المؤمنين يأمرک بکذا دغه اسم ظاهر ودغه داعي ته تقويه ورکوي ومثالهما اي مثال القتوية وادخال الورع مع التربية قول الخلفاء امير المؤمين يأمرک بکذا مکان انا امرک.

(وعليه من غيره﴿ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ﴾ : وعليه پر دغه قاعده باندي چي وضع دمظهر ده پر ځای دمضمر دپاره دتقويه ورکول وداعي ته دمامور ، من غيره غير دبابه دمسند اليه فأذا عزمت فتوکل علی الله دئ فأذا عَزمتَ کله چي ته عزم وکړي ديوشي فتوکّل علی الله نو ته اعتماد وکړه پر الله تعالی باندي ځای دي دضمير داسي عبارت په کار دئ فتوَکّل عليّ ليکن دضمير پر ځای اسم ظاهر وويل سو ای علی الله فتوکّل، توکل وکړه په ده کي يو داعي پيدا سو چي اعتماد وکړه پر الله باندي ځکه دا دخداي حکم دئ بيا چي دالله نوم ذکر سو نور دا داعي قوي سو ولی لدلاته علی ذات موصوفة بصفات کاملة من القدرة وغيرها ( اوالا ستعطاف کقوله الهی عبدک العاصی اتاکا).

کله اسم ظاهر پر ځای دضمیر ذکر کیږي ددې دپاره چې دمخاطب په ماباندي زړه نرم سيي او مهربان سي شاعر خدای پاک ته خواست کوې الهي اي زما ربه ، عبدک ستا بنده، العاصي گناه گاره، اتاکا، تا ته راغلي دئ، مُقِرٌّ بالذنوب، اقرار کونکی دئ په گناهونو، وقد دعاکا، اوله تا څخه دعاء غوښتونکي دئ عبدک، مضاف او مضاف اليه مبتداء ده، اتاکا، خبر دئ دا ځای دآنا دئ ځکه دئ متکلم دئ ليکن دآنا پر ځای اسم ظاهر راغلي ځکه په اسم ظاهر کي تخضع او تخشع ده طالبانو په انا کي تخشع نه سته په انا کي تکبر دئ بي ادبي ده

فائده کله وضع دمظهر پر ځای دمضمر وي دپاره دقصد دتعظيم

| المثال | المظهر |
|---|---|
| لٰكِنَّا هُوَ اللّٰهُ رَبِّيْ وَلَآ اُشْرِكُ بِرَبِّيْٓ اَحَدًا ( الكهف ٣٨) | بربي |
| قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ اللّٰهُ الصَّمَدُ ( الاخلاص ٢) | الله |
| اُولٰٓئِكَ حِزْبُ اللّٰهِ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ( المجادلة ٢٢) | الله |
| وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ اِنَّ قُرْاٰنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُوْدًا ( الاسراء ٧٨) | |
| بَلْ كَذَّبُوْا بِالسَّاعَةِ وَاَعْتَدْنَا لِمَنْ كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيْرًا ( الفرقان ١١) | |

فائده: کله وضع دمظهر پر ځای دمضمر وي دپاره داهانت او تحقير :

| المثال | المظهر |
|---|---|
| اُولٰٓئِكَ حِزْبُ الشَّيْطٰنِ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطٰنِ (المجادلة ١٩) | الشيطان |
| اِنَّ الشَّيْطٰنَ يَنْزَغُ بَيْنَهُمْ اِنَّ الشَّيْطٰنَ كَانَ لِلْاِنْسَانِ عَدُوًّا مُّبِيْنًا (الاسراء ٥٣) | الشيطان |
| وَكَذٰلِكَ زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ سُوْٓءُ عَمَلِهٖ وَصُدَّ عَنِ السَّبِيْلِ وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ ( غافر ٣٧) | |

فائده: کله وضع دمظهر پر ځای دمضمر وي دپاره دخوند اخيستلو په ذکر دده :

| المثال | المظهر |
|---|---|
| وَبِالْحَقِّ اَنْزَلْنٰهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ ( الاسراء ١٠٥) | بالحق ٠ |

کهچيري مراد دحق ثاني څخه اول سي

| | |
|---|---|
| مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعِزَّةَ فَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ جَمِيْعًا ( فاطر ۱۰) | العزة |
| وَاَوْرَثَنَا الْاَرْضَ نَتَبَوَّاُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَاءُ (الزمر ۷۴) | الجنة |

ولم يقل منها : كه چیر مراد دارض ځخه جنت سي :

**فائده:** كله وضع دمظهر پرځای دمضمر وي ددې دپاره چي ښه قرار ونيسي په ذه

دسامع کي :

| المثال | المظهر |
|---|---|
| قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ اللّٰهُ الصَّمَدُ ( الاخلاص ۱/۲) | الله |
| وَبِالْحَقِّ اَنْزَلْنَاهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ ( الاسراء ۱۰۵) | بالحق |

اِنْ تَسْأَلُوا الْحَقَّ نُعْطِ الْحَقَّ سَائِلَهُ :

## الالتفات

(**السكاكى هذا غير مختص بالمسند اليه**) سكاكى وايي دتكلم ځخه تلل وغائب ته دا ن مسند اليه پوري خاص نه دئ ( التفات) التفات لغة يمينا او شمالا كتلو ته وايي (**وا بهذا القدر**) نقل نه دئ مطلقا په دغه اندازه سره (**بل كل من التكلم والخطاب والغيب مطلقاً ينقل الى الاخر**) بلكى هر يو دتكلم او خطاب او غيبت ځخه مطلقا نقل كيږي وا خ ته دالتفات ۶-: صورته دي ۱- دتكلم ځخه ومخاطب ته ۲-: دتكلم ځخه وغائب ته ۳- دمخاطب ځخه وتكلم ته ۴-: دمخاطب ځخه وغائب ته ۵-: دغائب ځخه وتكلم ته ۶- دغائب ځخه ومخاطب ته مطلقًا :

مطلقا دا معنا كان فى المسند اليه او غيره (**ويسمى هذا النقل عند علماء المعانى التفاتا**) دغه نقل مسمي كړل سو په نزد دعلماء المعانى ازرئى التفات (**كقوله تطاول ليلك**

بالاثمد) اوږده سوه شپه ستا په اثمد کي دلته خطاب دئ وخپل ځان ته ځای دلیلي دئ لیلکِ وایي دلته التفات دتکلم څخه وخطاب ته دئ .

## نه اویایم سبق

(هذا غیر مختص بالمسند الیه)

سکاکی وایي دتکلم څخه تلل وغائب ته داتر مسند الیه پوري خاص نه دي ولا بهذالقدر نقل دتکلم څخه وغائب ته په دغه مقدار نه دئ یعنی ددې څخه علاوه نور صورتونه هم جوړیږي ولا بهذالقدر نقل دتکلم څخه وغائب ته په دغه اندازه نه دئ ددغه عبارت دغه معنی ده څه معنی یعنی دتکلم څخه وغائب ته تلل په دی پوري خاص نه دی یعنی بل ځای هم موجودیږي چی دخطاب څخه وغائب ته تلل هلته دتکلم څخه وغائب ته تلل سته علامه تفتزانی دلا او دبهذا القدر تر مینځ دمطلقا قید ږدي مطلق التفات تر دغه اندازې پوري خاص نه دئ ولی التفات ددغه مادې څخه ماسوا په پنځو نورو مادو کي هم راځي اوس نو داپوښتنه نه کیږی چي وجود دشي دخپله ځانه ما سوای په بل ځای کی څرنګه پیدا سي (والمشهور ان الالتفات هو التعبیر عن معنی بطریق من الطرق الثلثة بعد التعبیر عنه باخر منها) التفات یو عند الجمهور دئ بل التفات عندالسکاکی دئ هر وخت که دشی تعبیر په تعبیرینو سره وسو او دویم تعبیر مخالفۇ دمقتضی ظاهر الحال څخه دې ته التفات عند الجمهور وایي که دشی تعبیر په یو تعبیر باندي وسو او دا تعبیر مخالف وو دمقتضی ظاهر الحال څخه دې ته التفات عند السکاکی وایي (وهذا اخص) هر ځای چي التفات عند الجمهور وي هغه به التفات عندالسکاکی وي هر ځای چي التفات عندالسکاکی وي هغه به التفات عند الجمهور نه وي مثال لیلکِ ځای دلیلي دئ ته لیلکِ راوړي ځای دتکلم دئ ته تعبیر په خطاب ورڅخه کوي له دې وجه لیلکِ التفات دئ عندالسکاکی لیلکِ التفات نه دئ عندالجمهور ځکه دلته دشی تعبیر په یو تعبیر باندي سوی دئ دشی تعبیر په تعبیرینو نه دئ دجمهور علماء په نیز التفات دارنګه

جوړېږي يو عبارت تېر سو به غائب باندي ما بيا انتظار کوی دغائب ته راولاړسوې تکل
دی راوړي بس هم دغه التفات دئ خلاف دمقتضی ظاهر الحال دئ مطلق اړونه دې ته
التفات نه وايي باقاعده به ته ديو شی انتظار کوې ستا مخ ته به بل شی راځي بيا التفا
دئ مثال الحمدلله رب العلمين الرحمن الرحيم ملک يوم الدين اياک نعبد تمامې
حمدونه الله لره دي داسي الله چي پالونکی دټول عالم دئ داسی الله چي رحمن دئ داسي
الله چي رحيم دئ داسي الله چي ملک يوم الدين دئ خالصة موږ ستا عبادت کوو الحمد
لله اسم ظاهر دئ اسم ظاهر په حکم کي دغائب دئ په اياک نعبد کي التفات دئ ځک
مخکي الله په اسم ظاهر باندي ذکر سو اوس الله په خطاب باندي ذکر سو له دې وج
التفات دغائب څخه وخطاب ته دئ په اياک نستعين کي التفات نه سته ځکه موږ ووي
مطلق اړونه التفات نه دئ په التفات کي به مخاطب باقاعده ديو شی انتظار کوي ته ب
يې په بل شی ورته اړوي څه وخت چي موږ دالله نومونه واخيسته ده انتظار کوی چي ت
پايه به دغيبت خبره شروع وي موږ په خطاب واړوی نو التفات راغلی اوس دد
وروسته دی انتظار دخطاب کوی او موږ ټول خطابونه ذکر کوو اياک نستعين اهد
صراط المستقيم انعمت له دې وجه په اياک نعبد کی التفات سته په اياک نستعين ک
التفات نه سته ځکه التفات دې ته وايي چي انتظار دغيبت کيږي ته خطاب راو
انتظار دخطاب کيږي ته تکلم راوړي أَنَا زَيْدٌ ما دخپل ځان تعبير يو وار په تکلم وکړ
مي په اسم ظاهر وکړ دا التفات نه دئ ځکه زما مخاطب انتظار داسم ظاهر کو
والمشهور ان الالتفات مشهوره په نيز دجمهور علماء التفات دادئ هو التعبير عن مع
بطريق من الطرق الثلثة تعبير کول ديو معنی څخه په يو طريقه دطرق الثلثة بعد التعب
عنه وروسته دتعبير دهغه معنی څخه باخرمنها په بله طريقه خو شرط يې دائ
تعبير ثانی به پر خلاف دمقتضی ظاهر الحال وي وهذا اخص منه دغه التفا
عندالجمهور خاص دئ تر هغه التفات چي په نيز دسکاکی دئ مثال ( الالتفات م
التکلم الی الخطاب ) مثال دالتفات دتکلم څخه وخطاب ته ( وَمَالِيَ لَا اَعْبُدُ الَّذِيْ فَطَ

وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ) طالبانو دغه ځای سخت دئ سم متوجه سئ په دنیا کي هغه بیان اثر کوی چي دهغه بیان ته خپل ځان محتاج بولی او ځان ملامت بولی سړی به بل ته گوته نه نیسي ځکه دځینو مقررینو بیان دسړي په زړه کي اثر کوی دځینو مقررینو بیان دسړي په زړه کي اثر نه کوی ښه نصیحت دادئ چي ځان ته مخاطب سه خو تعریضا څه وخت چي دعیسی علیه السلام ملگري دعوت او تبلیغ ته ولاړه دعوت او تبلیغ یې ورته وکړ خو هغوی خبره وه نه منله نو دی وایی ومالی لا اعبدالذی څه سوی دي په ما چي زه عبادت نه کوم دهغه ذات فطرني چي زه یې پیدا کړي یمه والیه ترجعون او خاص دغه ذات ته به تاسو رجوع کوي:

پوښتنه: که ته پوښتنه وکړې چي دلته التفات نه سته ځکه په مالی لا اعبدالذی فطرني کي ده خبره ده والیه ترجعون کي ددوي خبره ده له دې وجه دا التفات نه دئ ځکه التفات دې ته وایي چي یو شی تعبیر کړي په تعبیرینو ؟

جواب: علامه تفتازانی دلته دالتفات دپاره ډیره غټه خواري کښلي ده التفات دارنگه جوړیږي په مالی لا اعبدالذی فطرني والیه ترجعون کي اصل خبره دوی ته ده خپل ځان ته خبره نه ده ځای ددې دئ مالکم لا تعبدون څه درسوی دي چي تاسو دخدای عبادت نه کوئ زه خو دخدای عبادت کوم له دې وجه په مالی لا اعبدالذی فطرنی کی دوی یادوی خو ددوی څخه تعبیر په تکلم وسو بیا دتکلم څخه تعبیر وسو په خطاب هغه دا دئ والیه ترجعون که چا ستا څخه پوښتنه وکړه چي دلته التفات څرنگه پیدا کیږی نو ته به ورته روایي په مالی لا اعبدالذی فطرني کی هم دوی یادوی په الیه ترجعون کي هم دوی یادوي خو ددوی څخه یو ځای تعبیر په تکلم سوی دئ بل ځای تعبیر په خطاب ور څخه سوی او تعبیر ثانی مخالفه دئ دمقتضی ظاهر الحال څخه ځکه مقتضی دظاهر الحال دا وه ارجِعُ :

په مالی لا اعبد الذی فطرنی والیه ترجعون کي دسکاکی په نیزدوه التفات دي یو التفات په مالی لا اعبد الذی فطرنی کي ځکه دمالکم لا تعبدون څخه تعبیر وسو په تکلم سره دویم التفات په الیه ترجعون کي دئ ځکه دتکلم څخه چي ارجع دئ التفات وسو وخطاب ته چي الیه ترجعون دئ دجمهور علماء په نیز یو التفات دئ (والی الغیبة) مثلا دالتفات دتکلم څخه وغائب ته ﴿إِنَّآ أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ﴾ یو ځای الله دخپل ځان تعبیر په تکلم کړي چي انّا دئ بل ځای الله دخپل ځان تعبیر کړئ په غائب چي لربک دئ مقتضی دظاهر الحال دا وه (لنا) :

ومن الخطاب الی التکلم) مثال دالتفات دخطاب څخه وتکلم ته شعر طحابک قلبٌ فی الحسان طَرُوبٌ . بُعید الشباب عصر حان مشیب . یکلفنی لیلیٰ وقد شطّ ولیها، وعادت عواد بیننا وخطوب) دوړ انجونی دي یوه لیلی ده بله حسانه ده ، شاعر وایي تر ځوانی تر ختمیدو لږ وروسته په حسانی پسي لیونی وم، په سپین ږیرتوب کي په لیلی پسي لیونی سوم ، طحابک قلب هلاک یې کړ په تاباندي زړه طروب داسي زړه چي لیونی وو فی الحسان دحسانی په باره کي فی الحسان تعلق تر طروب پوري نیسي بعید الشباب لږ وروسته تر ځوانی بعید الشباب دا مبدل منه دئ عصر حان مشیب دابدل دئ لږ وروسته تر ځواني یعنی عصر په زمانه کي حان قریب وو مشیب سپین ږیرتوب یکلفنی لیلي وترلم زه لیلي وقد شط ولیها په تحقیق سره لیري وو قرب دلیلي وعادت عواد، ګرزي او راګرزي حوادث بیننا زموږ په مابین کي ، وخطوب غټه واقعه اول وار دځان تعبیر په بک سره کوي مقتضی دظاهر الحال دا تقاضی کوي یکلفُکَ خو دخطاب څخه التفات وسو وتکلم ته (والی الغیبة) مثال دالتفات دخطاب څخه وغیبت ته (لعه ﴿حتّی إِذَا كُنتُمْ فِي الْفُلْكِ وَجَرَيْنَ بِهِم﴾ قیاس بکم دئ خو التفات دخطاب څخه وسو وغیبت ته :

(ومن الغيبة الى التكلم) مثال دالتفات دغيبت څخه وتكلم ته ﴿والله الذی أرسل الرياح فتثير سحابا فسقناه﴾ والله الذی الله هغه ذات دئ ارسل الرياح چي بادونه را ليږي فتثير سحابا پورته کوي باد وريځ فسقناه الى بلد ميت: الله وايي موږ چلوو وريځي وبلد ميت ته يو ځای الله دخپل ځان تعبير په والله الذی سره کوی په ارسل کي بيا غائب دئ فسقناه کي دخپل ځان تعبير په تكلم سره کوی (والى الخطاب) مثال دالتفات دغائب څخه وخطاب ته (ملک يوم الدين اياک نعبد) دالحمد لله څخه بيا تر ملک يوم الدين پوري په غيبت کي چليږي په اياک نعبد کی خطاب چليږی مقتضی دظاهر اياه وو (ووجهه) علامه تفتازانی رحمه الله دوجهٔ او دهُوَ ضمير په مينځ کي دحسن تړکي اړدي ای وجه حسن الالتفات التفات دڅه دپاره کيږي چي دتكلم څخه وغيبت دغيبت څخه وخطاب ته ولی کلام په يوه اسلوب په يوه طرز نه چليږی علامه قزوينی دالتفات حسن بيانوي چي په التفات کي حسن سته بنايست سته خوند سته (ان الكلام اذا نقل من اسلوب الى اسلوب اخر كان احسن تطرية لنشاط السامع واكثر ايقاضا للاصغاء) يشکه کلام هر کله چي نقل سي ديو طرز څخه وبل طرز ته نو دغه کلام احسن سي از رويی نوی والی :

قاعده هر کلام چي دمقتضی ظاهر الحال مخالف سي بس دغه کلام خوند ور دئ، التفات هم خلاف دئ دمقتضی ظاهر الحال څخه ځکه چي تا کلام يو وار په غائب ذکر کړی نو زه دغائب انتظار کومه خو ته ولاړي وخطاب ته نو کلام نوی سو کل جديد لذيذ هر نوی شی خوند ور وي دالتفات اصل وجه داده هر ځای چي متكلم التفات کوی غالبا مقصد ئی داوي چي مخاطبه ويښ سه بيداره سه څه وخت چي متكلم کلام واوروي مخاطب پريشانه سي چي دا څه وايي چي ته يې پريشانه کړي بس دغه بيداري ده :

تطرية: په اصل کي طريت الثوب ته وايي تو کر زوړ وي ته يی پاک کړې دې ته تطرية وايي يوه خبره واوره په هر التفات کي يو خاص نکته وي لنشاط السامع تطريه وي دپاره

دطبیعت دبرابریدو دسامع تطریه په عربي کي طبیعت برابریدو ته وایي کرّة په عربي کي طبیعت خراب بیدو ته وایی واکثر ایقاظا دغه کلام به زیات سي ازروئی تنبیه للاصغاء الیه دپاره دغوږ ښودلو ودغه کلام ته علامه قزوینی موږ ته دنمونی په شکل دالتفات یو خاص وجه بیانوي لکه الله پاک په الحمد لله کي التفات کړی دئ الحمد لله تمام حمدونه خاص الله لره دي لفظ الله چي سره خلاص کړی چي دا الله واجب الوجود دئ مستجمع دټولو صفاتو دئ مستحق دټولو عباداتو دئ نو په انسان کی یو مُحَرِّک پیدا سي چي کاشکي ما الله لیدلی وای څه وخت چي رب العلمین وویل سو نو دا محرک چي دانسان په زړه کي پیدا سوی دا محرک نور قوی سي چي الرحمن الرحیم وویل سو نو دا محرک نور قوی سو چي ملک یوم الدین وویل سو نو دامحرک نور قوی سو هر کله چي الله واجب الوجود دئ مستجمع دټولو صفاتو دئ مستحق للعبودیة دئ پالونکی دټول عالم دئ رحمن او رحیم دئ ملک یوم الدین دئ نو دا محرک انهتاء ته ورسیږي دارنګه سي لکه دی چي الله وینی نو ورته وي ویل ایاک نعبد وایاک نستعین الله سبحانه په دې التفات کي ما او تا ته دا راښووي چي آی دخدای بنده ته دا لمونځ په غافله زړه مه کوه ته لمونځ په اخلاص او صداقت سره کوه ته چي څه وخت ملک یوم الدین ته را ورسیږي نو ستا محرک به انتهاء ته رسیدلی وي الله وایي اې بنده زه به تاته مستحضریم ته به داسې یې لکه ته چي ما وینی او ماته وایی ایاک نعبد وایاک نستعین (وقد تختص مواقعه بلطائف کما فی الفاتحة) کله کله خاص سي ځایونه دالتفات په لطائفو باندي لکه په سورة الفاتحة کی (فأن العبد اذا ذکر الحقیق بالحمد عن قلب حاضر) بنده چي هر کله ذکر کړي حقیق بالحمد چي الله سبحانه دئ په جاضر زړه )( یجد من نفسه محرکا للاقبال علیه) نو دغه بنده به په خپل نفس کي پیدا کړی یو محرک ددې دپاره چي مخامخ سه ودغه حقیق بالحمد ته ( وکلما اجری علیه صفة من تلک الصفات العظام) هر کله چي پر حقیق بالحمد باندي یو صفت ددغه صفاتو عظامو څخه جاري سي چي هغه رب العلمین دئ الرحمن الرحیم دئ ملک یوم الدین دئ ( قوی ذالک المحرک الی ان یؤل

الامر الی خاتمها المفیدة انه مالک لامر کله فی یوم الجزاء )هغه محرک قوی سي تر دې حده پورې چي ورسیږی امر وخاتمي ددغه صفاتو ته چي مفید دئ ودې ته چي دغه حقیق بالحمد مالک دئ دټولو کارو دقیامت په ورځ په ملک یوم الدین کي یوم الدین مفعول فیه دئ خو ملک متعدی دئ مفعول به حذف دئ:

**قاعده:** هر وخت که تا په مفعول به کی عموم غوښتي نو حذف یې کړه الله مالک دئ دقیامت دورځي دڅه شی مالک دئ هغه څه شی حذف سو ځکه داتر شمار لاندي نه راځي (**فحینئذ یوجب الاقبال علیه**) په دې وخت کي واجبیږی اقبال پر حقیق بالحمد باندي (**والخطاب بتخصیصه بغایة الخضوع والاستعانة فی المهمات**) خطاب ثابت دئ چي ته خاص یې په غایت خضوع غایة الخضوع دنعبد ترجمه ده خطاب داایاک ترجمه ده تخصیص دتقدیم المفعول ترجمه ده ایاک نعبد خالصةً تاته عاجزي ښکاره کومه خالصةً ستا څخه کومک غواړم زما چي څومره مقاصد دئ نستعین فعل متعدي دئ مفعول ثانی حذف دئ یعنی دتمامي اشیاء مدد ستا څخه غواړم

## اجراء الالتفات من الغیبة الی الخطاب

المثال غیبت خطاب

الحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ مٰلِکِ یَوْمِ الدِّیْنِ اِیَّاکَ نَعْبُدُ (الفاتحة ۱/۵)

مکان ایاه ایاک

فائده دالتفات: الحمدلله تمام حمدونه خاص الله لره دي لفظ الله چي سره خلاص کړي چي دا الله واجب الوجود دئ مستجمیع دټولو صفاتو دئ مستحق دټولو عباداتو دئ نو په انسان کي یو مُحرِّک پیدا سي چي کاشکي ما الله لیدلې وای څه وخت چي رب العالمین وویل سو نو دا محرک چي دانسان په زړه کي پیدا سوي دا محرک نور قوی سي چي الرحمن الرحیم وویل سو نو دا محرک نور قوی سو چي ملک یوم الدین وویل سو نو دا محرک نورقوی سو هرکله چي الله واجب الوجود دئ مستجمیع دټولو صفاتو دئ مستحق للعبودیة دئ پالونکی دټول عالم دئ رحمن

او رحيم دئ مالک يوم الدين دئ نو دا محرک انتهاء ته ورسيږي دارنګه سي لکه
دئ چي الله ويني نو ورته وي ويل اياک نعبد واياک نستعين الله سبحانه په دي
التفات کي ما او تاته دا راښوي چي اې دخداى بنده ته دا لمونځ په غافله زړه مه
کوه ته لمونځ په اخلاص اوصداقت سره کوه ته چي څه وخت ملک يوم الدين ته
راورسيږي نو ستا محرک به انتهاء ته رسيدلې وي الله وايي اې بنده زه به تاته
متسحضريم ته به داسي يې لکه ته چي ما ويني او ماته وايي اياک نعبد واياک
نستعين :

قَالُوا الرَّحمٰنُ وَلَدًا لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا إِدًّا (مريم ۸۸/۸۹) : (مکان لجاءوا) لقد جئتم:

إِنْ أَرَادَ النَّبِيُّ أَنْ يَّسْتَنْكِحَهَا خَالِصَةً لَّكَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ (الاحزاب ۵۰) مکان به لک

مَالَمْ نُمَكِّنْ لَّكُمْ (الانعام ۶) مکان لهم لکم

وَمَا أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ (سبأ ۳۷) مکان اموالهم اموالکم

## الالتفات من الغيبة الى التكلم

| المثال | غيبت | تکلم |
|---|---|---|
| وَاللهُ أَرْسَلَ الرِّيَاحَ فَتُثِيْرُ سَحَابًا فَسُقْنٰهُ (فاطر ۹) | مکان ساقه | فسقنه |

فائده دالتفات: مثل ددغه ايات داسي قوى او غالبه دي نو مثل ددغه قوى ايات
دال دئ پر قدرت داسي قدرت چي رباني دئ پر دې هيڅ څوک قدرت نه لري سيوا
دخاوند دقدرت کامله:

سُبْحَانَ الَّذِيْ أَسْرٰى بِعَبْدِهٖ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى الَّذِيْ بٰرَكْنَا
حَوْلَهٗ (الاسراء ۱) مکان بارک برکنا حوله

وَأَوْحٰى فِيْ كُلِّ سَمَاءٍ أَمْرَهَا وَزَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ (فصلت ۱۲) مکان زين زيّنا

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللهَ أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجْنَا بِهٖ (فاطر ۲۷) ( مکان فاخرج) فاخرجنا به

## الالتفات من التكلم الى الغيبة

المثال

تكلم الى الغيبة

حمٓ وَالْكِتَابِ الْمُبِيْنِ الى قوله اِنَّا كُنَّا مُرْسِلِيْنَ رَحْمَةً مِنْ رَبِّكَ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ (الدخان ٦)

مكان مِنَّا من ربک

اِنَّا اَعْطَيْنٰكَ الْكَوْثَرَ فَصَلِّ لِرَبِّكَ (الكوثر ٢١) مكان لنا لربک

يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ جَمِيْعًا فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ (الاعراف ١٥٨) مكان بی) رسوله

قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ (الزمر ٥٣) (مكان من رحمتی) من رحمة الله:

## الالتفات من الخطاب الى الغيبة

المثال

خطاب غيبت

حَتّٰٓى اِذَا كُنْتُمْ فِي الْفُلْكِ وَجَرَيْنَ بِهِمْ (يونس ٢٢) مكان بكم بهم

وَتَقَطَّعُوْٓا اَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ (الانبياء ٩٣) مكان تقطعتم تقطعوا

(ومن خلاف المقتضى تلقي المخاطب بغير ما يترقبه بحمل كلامه على خلاف مراده تنبيها على انه هو الاولى بالقصد كقول القبعثري للحجاج وقد قال له متوعدًا لاَحملنّك على الادهم مثل الامير يحمل على الادهم والاشهب على كان مثل الامير في السلطان وبسطة اليد فجدير بأن يصفد لا ان يصفد)

خبره له خبري زيږي: دخلاف متقتضى ظاهر الحال يو څو صورتونه وو، يو صورت دادئ زه متكلم يم ته مخاطب يې، ما تاته خبره وكړه ما انتظار شروع كړى چي ددې خبرى به دا جواب راكړې؛ خو تا دخبرى بل طرز جواب راكړ، بس داهم خلاف دمقتضى ظاهر الحال دئ، يو حجاج بن يوسف بل چنگيز خان دا دواړه ظالمان باچاهان وو، څه وخت چي دوي دوه پيدا سو موټان يې بندوو، څه وخت چي يې موټان ورخلاص كړل دوينو ډك

وو، ددوی دواړو میندو خوب لیدلي و، دچنګیز خان مور خوب لیدلي و: چي زما زوی پیدا سوی وي توري ورسره وي په وينو سري وي، دحجاج بن يوسف مور هم خوب ليدلی وو چي زما زوی پیدا سوي وي توري ورسره وي په وينو سرې وي، کله چي دوی دوه پیدا سو څلويښت (۴۰) شپې دهيڅ شي شيدې نه ورباندي لګيدې، دواړو ته يې دليوې شيدې ورکولې، حجاج بن يوسف شاعر ته وايي: **لاحملنك** سپور به دې کړم، **على الادهم** پر کړۍ باندي ادهم له **دُهمَتْ** څخه دئ **دُهمَتْ** په عربي کي توروالي ته وايي کړي ته ادهم ځکه وايي چي دچا په پښو کي وي ور څخه وکښل سي نو پښه يې تکه توره وي، او هغه تورآس چي ټول توروي لړ(معمولي) سپين وي ودې ته هم په عربي کي ادهم وايي، حجاج قبعثري ته وويل :خامخا به زه تا پر ادهم لوړ سپور کړم، اوس حجاج بن يوسف ددې جواب انتظار کوي چي ما ته عجز وکړه چي بيا والله که وکړم، قبعثري شاعر ورته وايي هوکه، ستا رنګه باچا سړی پر تورآس يا پر اشهب ( قمر اس ) سپره وي، ګوره حجاج دادهم څخه کړۍ اخيستي وه نو جواب دکړۍ په کار وو خو قبعثري دآس جواب ورکړ ودې ته هم خلاف دمقتضى ظاهر الحال وايي، قبعثري حجاج تنبيه کړ چي واقعي ستا رنګه باچا سړی پر آس سپره وي نه پر کړۍ باندی:

**تلقى المخاطب**: چي ملاقي سي متكلم دمخاطب سره **بغير مايترقبه** غير دهغه حكم چې دی يې انتظار كوی **بحمل كلامه على خلاف مراده** په سبب دحمل كولو دكلام دده پر خلاف دمراد دده **تنبيها على انه هو الاولى بالقصد** تنبيه وركوي متكلم ومخاطب ته پر دې باندي چي دغه غير اولی دئ په ارادی سره **كقول القبعثري للحجاج وقد قال له متوعدًا** په تحقيق سره وويل حجاج وقبعثرى ته په داسي حال كي چي وعده كوونكی وو **لاحملنك على الادهم** زه به خامخا تا حمل كړم پر كړې باندي **مثل الامير يحمل على الادهم والاشهب** قبعثري ورته وويل ستا په مثل حكم كوي پر تورآس او كمرآس باندي ای من كان مثل الامير فی السلطان هغه څوک چي ستا په توګه امير وي په سلطنت كي وبسط اليد اوبل

لاسونه يې وي **فجدير،** لائق دئ **بأن يصفد** چي سړي حمل کړي پر آس باندي **لا ان يصفد،** نه دا چي سړی حمل کړي پر قيد باندي.

## اته اويايم سبق او السائل بغير ما يتطلب بتنزيل سواله

(او السائل بغير ما يتطلب بتنزيل سواله منزلة غيره تنبيها على انه الاولى بحاله اوالمهم له كقوله تعالى ﴿يسئلونك عن الاهلة قل هي مواقيت للناس والحج ويسئلونك ماذا ينفقون قل ما انفقتم من خير فللوالدين والاقربين واليتمى والمسكين وابن السبيل﴾

محمد علی سائل دئ زه موجب يم. دمحمد علی مثلا سوال دادئ خو ددې سوال مثلا دا جواب راځي زه راولاړ سم دده سوال په منزله دبل وسوال وګرزومه دهغه سوال جواب ورکړم دا هم مخالف دئ دمتضي ظاهر الحال څخه:

**فائده:** يو سوال جدلی دئ بل سوال تعليمي دئ سوال جدلي دې ته وايي چي ددوو کسانو منظاره وي يو سوال وکړي پر بل هغه بل به دده دسوال موافق جواب ورکوي که موافق جواب ور نه کړي بيا مناظره ورڅخه وړي يعنی په سوال جدلي کی دسوال موافق جواب ورکول واجب دئ سوال تعليمي دې ته وايي چي کشر دمشر څخه سوال وکړي مشر بنا پر شفقت ورته ووايي چي تا به دا رنګه سوال کړي وای جواب به يې دا رنګه وای صحابه راغله نبي عليه السلام څخه يې سوال وکړ چي سپوږمی کله غټه سي کله کوچنی سي سيانسي سوال يې وکړ نو داساينسي جواب غواړي ﷺ دا سوال په منزله دبل سوال وګرزيدي هغه سوال دا چي سپوږمی دڅه غرض دپاره غټيږي او کوچنی کيږي الله نبي عليه السلام ته وويل ته ورته ووايه په دې باندي خلګي وختونه پيژنی حج وربانديي پيژنی روژه ورباندي پيژنی نور اشياء وربانديي پيژنی بل سوال يې وکړي **ماذا ينفقون** موږ څه شی نفقه کو اوس ددې سوال جواب دارنګه راځي لس روپی نفقه کړه شل ړوپي نفقه کړه مقصود دا سوال نه دئ مقصود دا سوال دئ چي چا ته يې ورکړو الله نبي عليه السلام ته

وویل ته ورته وو ایه والدینو ته یې ورکړي مساکینو ته یې ورکړي وغیر ذالک یعنې سوال دعین صرف وو جواب دمصارفو ورکړل سو **اوالسائل** سائل ته جواب ورکول سي **بغیر ما یتطلب** غیر دهغه کلامه چې دی یې طلب کوي **بتنزیل سواله منزلة غیره** په سبب دنازلولو دسوال دده په منزله دبل سوال **تنبیها علی انه الاولی بحاله او المهم له :**

تنبیه ورکوي په دې چې دا اولی دئ ستا دحال سره یا دا مهم دئ دسائل سره .

## التعبیر عن المستقبل بلفظ الماضی

## اجراء دهغه تعبیر چې دمستقبل څخه په لفظ دماضي وي

| المثال | القیاس |
|---|---|
| وَيَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ فَفَزِعَ مَنْ فِي السَّموٰاتِ ( النمل ۸۷ ) | فَيَفْزَعُ |
| وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَصَعِقَ ( الزمر ۶۸ ) | فَيَصْعَقُ |
| وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ جَمِيْعًا ( ابراهیم ۲۱ ) | يبرزون |
| وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ وَتَرَى الْاَرْضَ بَارِزَةً وَحَشَرْنٰهُمْ ( الکهف ۴۷ ) | نحشرهم |

## التعبیر عن المستقبل بلفظ اسم الفاعل واسم المفعول

## اجراء دهغه تعبیر چې دمستقبل څخه په لفظ داسم فاعل او اسم مفعول وي

| المثال | القیاس |
|---|---|
| اِنَّ الدِّيْنَ لَوَاقِعٌ ( الذاریات ۶ ) | لَيَقَعُ |
| ذٰلِكَ يَوْمٌ مَجْمُوْعٌ لَهُ النَّاسُ ( هود ۱۰۳ ) | يُجْمَعُ |

## يو اتيايم سبق التعبير عن المستقبل بلفظ الماضي

(ومنه التعبير عن المستقبل بلفظ الماضي تنبيها على تحقق وقوعه نحو وَيَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ فَفَزِعَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ)

كله به تعبير دمستقبل دمعنى څخه په لفظ ماضى سوى وي مقصد دمتكلم دا وي چي داكار سوي وبوله ومنه بعض دخلاف دمقتضى ظاهر الحال التعبير عن المستقبل تعبير كول دئ دمستقبل څخه بلفظ الماضي په لفظ دماضى سره تنبيها على تحقق وقوعه اګاهي وركول دي پر ثبوت دوقوع دده يعنى دا كار ثابت دئ متحقق دئ مثال ﴿وَيُوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ﴾ په هغه ورځ چي پوكړل سي په شپلۍ كي فَصَعِقَ وبه بيربږي قياس يصعق دي ځكه دقيامت بيره راروانه ده (ومثله ﴿وَاِنَّ الدِّيْنَ لَوَاقِعٌ وَذَالِكَ يَوْمٌ مَجْمُوْعٌ لَهُ النَّاسُ﴾ كله به تعبير دمستقبل دمعنى څخه په لفظ داسم فاعل وي مثا ل لكه لواقع پر ځاى ديَقَعُ كله به تعبير دمستقبل دمعنى څخه په لفظ داسم مفعول وي لكه مَجْمُوْعٌ پر ځاى ديُجْمَعُ:

پوښتنه: اسم فاعل او اسم مفعول مشتركان دي دحال او استقبال له دې وجه اوس چي تعبير دمستقبل څخه په لفظ داسم فاعل او مفعول وسي نو دا كلام مطابق دئ دمقتضى ظاهر الحال سره علامه جواب وركوي اسم فاعل او مفعول داره حقيقت دي په يتحقق فيه كي يعنى دوى دواړه موضوعان دي دحال او دماضى له دې وجه دوي دواړه مشتركان دي په اصل وضع كي دحال او دماضى اوس چي تعبير دمستقبل څخه په اسم فاعل او مفعول وسى نو دا كلام مطابق دئ دخفى الحال سره:

(ومنه القلب دخلاف دمقتضى الظاهر قلب دئ نحو عَرَضْتُ النَّاقَةَ على الحوض) علامه تفتازانى دعرضت تفسير په اظهرت كړي يعنى اظهرتُ الحوضَ على النَّاقةِ دلته قلب سوى ځكه حوض ناقي ته ښكاره كيږى ناقة حوض ته نه ښكاره كيږى ځكه حوض

غیرذوي الروح دئ بلکي غیر ذوي الروح ښکاره کیږي وذوي الروح ته (وقبلهٔ السکاکی مطلقا) قلب دسکاکی په نیز مقبول دئ مطلقا ځکه ملاحت پکښي دئ خوندور والی پکښي دئ بیا عام تر دئ متحمل دنکتې وي او که نه وي اعتبار لطیف پکښي وي او که نه وي (ورده غیره مطلقا) قلب غیر دسکاکی رد کړي دئ مطلقا ځکه قلب خلاف دمقتضی ظاهر الحال دئ نو خامخا به متحمل دیونکتې وي (والحق انه ان تضمن اعتبارا لطیفا قُبِلَ) حق دادئ که چیري متضمن اعتبار لطیف لره وو نو قلب مقبول دئ (شعر مَهْمَهٍ مُغْبَرَّةٍ ارجاؤه کانّ لَوْنَ ارضهٖ سماؤه) ډیر ځنګلونه دوړه ناکه ذي اطراف دده ګویا رنګ دځمکي رنګ داسمان دَئ دلته قلب دئ یعنی لَوْنَ سماؤه لَوْنَ ارضه رنګ داسمان په دوړو کي دځمکي رنګ دئ دلته نکته مبالغه ده دځمکي تشبیه یې ورکړې داسمان سره یعنی دځمکي څخه دوړه دومره پورته وه دځمکي نس شین وو لکه ځمکه چي پورته سوي وي اسمان راکښته سوي وي علامه تفتازانی وایي لَوْنَ ارضه مشبه سماؤه مشبه به اوقانون دادئ مشبه به په وجه دشبه کی قوی وي تر مشبه مثال زید کالاسد زید مشبه اسد مشبه به وجه دشبه شجاعت دئ له دې وجه اسد په شجاعت کي قوی دئ تر زید دلته هم دځمکي تشبیه داسمان سره په غبار کي ده یعنی په غبار کي اسمان اصل دئ تر ځمکي یعنی په اسمان کی دومره دوړي دي چي دځمکي ددوړي تشبیه ورکوو داسمان ددوړي سره (والاردّ) که چري متضمن نه وو اعتبار لطیف لره بیا رد کړه سي (کقوله ع کما طَیَّنْتَ بالفدن السیاعا) یو ګل دئ بل ګوبَرَی دئ بله ګلماله ده ګوبري دې ته وایي چي پوره مَیْدہ خاوره وي او مَیده پرور په ګډ وي بیا نو خونی په ګلوي دې ته په عربي کی سیاعا وایي کما طَیَّنْتَ لکه ته چي یې وویلي بالفدن السیاعا: ښګله وویلی ګوبري ته وایي زما اوښه دومره چاغه سوی لکه دیوال ته چي تا ګوبري ورکړي وي یعنی زما په اوښه کي کډي کډي ځایونه نه سته اصل عبارت دا سي وو کما طَیَّنْتَ بالسیاعا الفدن علامه تفتازانی وایي ته دا مثال دهغه چا ورکوې چي قلب وي اعتبار لطیف نه وي دا

غلطه خبره ده دلته مبالغه سته هغه دا داوښي غوښي دومره ډيري دئ هډوکي لږ دئ دغو ښو تشبيه يې ورکړې دګوبري سره دهډوکي تشبه يې ورکړې دديواله سره مبالغه دا رنګه ده زما داوښي غوښه دومره ډيره ده چي هډوکی مي ورته ويشتي وغوښو ته يعنی دومره چاغه ده چي جانټه مي ورته ويشتي له دې وجه دونه غټه مبالغه ده :

محشي جواب ورکړي دسياعا دوې معنا ګانی دي يوه ترجمه دسياعا ګوبري بله ترجمه دسياعا ګلماله که دسياعا معنی دګلمالي وکړي نو بيا اعتبار لطيف نه سته او که دسياعا معنی دګوبري وکړي لکه علامه تفتازانی چی کړې ده بيا مبالغه پکښي ده اعتبار لطيف پکښی سته نو کيدای سي چي قزوينی هغه مثال ورکوي چي سياعا په معنی دګلمالي ده نو بيا مبالغه نه سته نو ترجمه داسوه کما طينت لکه ته چي وويلی بالفدن السياعا بنګله وګلمالې ته له دې وجه دلته مبالغه نه سته که دګوبري ترجمه وسي بيا مبالغه سته کما طينت بالفدن السياعا لکه ته چي وويلي بنګله وګوبرې ته .

## دوه‌اتيايم سبق احوال المسند اما ترکه

اهل معانی دمطلق احوال المسند څخه بحث نه کوي بلکي اهل معانی بحث کوي دهغه امور څخه چي ده ته ور عارض وي په دې حيث چي ته به مسند يې بل په دې حيث چي کلام به ددې احوالو په ذريعه مطابق وي دمقتضی الحال سره (أَمَّا تَرْكُهُ) په مسند اليه کي تعبير په حذفه سره وسو په مسند کي تعبير په تَرْكُهُ سره وسو دا ددې دپاره چي مسند اليه رکن اعظم دکلام دئ کلام زيات احتياج لري ومسند اليه ته بل المحذوف کالمذکور) مسند ته کلام دومره زيات احتياج نه لري لکه مسند اليه ته اما ترکه فلما مرّ )ترک دمسند دهغه وجي چي تير سو هغه احتراز عن العبث او تخييل العدول الی اقوی الدليلين من العقل واللفظ وو (شعر مَنْ يَكُ امسی بِالْمَدِينَةِ رحلهُ فانی وَقَيَّارٌ بها لَغَرِيبٌ)

ترجمه هر هغه څوک چي وی امسی بالمدينة شپه تيره وي په ښار کي زحله منزل دده بار دده پړاو دده فانی بيشکه زه وقيّار اوښ زما يا آس زما بها په دا ښار کي لغريبٌ مسافر يو يَكُ فعل نا قص دئ دفعل ناقص نون حذف کيږي په درو شرائطو اول شرط دنون

وروسته به ساكن حرف نه وی احترازي مثال لَمْ يَكُنِ الذِيْنَ دويم شرط ضمير متصل به نه وی احترازي مثال كُنْتَ دريم شرط كلمه دجوازم به پر داخله وی اتفاقي مثال وَلَمْ اَكُ بَغِيًّا اِنْ تَكُ :

تركيب: مَنْ شرطيه مبتداء يَكُن فعل ناقص ضمير اسم ديكن امسى كه فعل ناقص سي ضمير اسم دامسى بالمدينة خبر مقدم رحله مبتداء مؤخره دا ټوله جمله خبر دامسى يا به دا ټوله جمله حال سي دامسى ان كانت تامةً كه دامسى اسناد ورحله ته وسي بيا مجازدئ بالمدينة په اعتبار دمتعلق خبر دئ ان كانت ناقصة يا بالمدينة په اعتبار دمتعلق حال درحلهٔ څخه اِنْ كانتْ تامة امسى به خبر سي دَيكُ يك به خبر سي دمن دا به شرط سي فاني وقيار الخ دا به جزاء سي دا تركيب محشى كړي فاني وقيار بها لغريب لغريب په تركيب كي خبر دئ داِنّ دپاره قيارٌ به غير دخبره پاته سو نو دلته مسند حذف قرينه ورباندي لغريب دئ .تقدير دكلام دادئ فاني بها لغريب وقيار بها غريب دغه غريب مسند دئ حذف دئ قرينه ورباندي لغريب دئ قيار عطف دئ پر اسم داِنّ :

پوښتنه دا عطف نه دئ صحيح ځكه اسم دان منصوب دئ قيار مرفوع دئ؟

جواب: قيار عطف دئ پر محل داسم داِنّ محل يې مرفوع دئ ځكه دا په اصل كي مبتداء ده نو معطوف عليه او معطوف دا به اسم داِنّ سي لغريب به خبر سي په دغه صورت كي دا دحذف مثال نه دئ ځكه مسند ذكر دئ علامه تفتازانى وايي دا رنګه تركيب نه سي كولاى چي قيار عطف كړي پر محل داسم داِنّ ولى قانون دا دئ حمل پر محل داسم داِنّ هغه وخت جائز دئ چي خبر يا لفظا مخكى وي مثال اِنَّ زيدًا لقائِمٌ وعمرٌو يا خبر تقديرا مخكي وى تقديرا دا معنى چي ته مخكي دده دپاره خبر فرض كړي بيا يې حمل كړې پر محل داسم داِنّ بيا نو دا تركيب هم جائز دئ ځكه خبر مقدم دئ پر معطوف باندي

تقديرا كه ته وايي قيار بها مبتداء كړه لغريب يې خبر كړه داِنّي خبر محذوف كړه قانون واوره په لام مُذْهَلِقَه كي قانون دادئ چي دئ داخليږي په اسم داِنّ باندي يا پر خبر داِنّ باندي له دې وجه لام مذهلقه خبر دهغه چا دپاره وي چي هغه مدخول داِنّ وي قيارٌ مدخول داِنّ نه دئ نو لغريبٌ خبر اِنَّ نه دئ، كه قيارٌ مبتداء سي خبر يې محذوف سي نو بيا عطف بلكل صحيح دئ ځكه عطف دجملې پر جمله راځي نو تقدير دعبارت داسو فانّي بها لغريب وقيارٌ بها لغريبٌ خو كه ته دا تركيب وكړئ چي ياء المتكلم اسم داِنّ لغريب خبر داِنّ قيّارٌ راواخله دياء المتكلم پر محل يې ورعطف كړه كه ته وايي تقديم دخبر پر اسم داِنّ راغلى نو دى وايي تقديم خو جائز دئ موږ وايو تقديم هلته جائز دئ چي خبر ظرف وي دلته خبر ظرف نه دئ له دې وجه دارنګه تركيب كول ناجائز دئ ( وكقوله شعر نَحْنُ بِمَا عِنْدَنَا وَاَنْتَ بِمَا عِنْدَکَ رَاضٍ وَالرأی مختلف ﴿كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ﴾ الله جل جلاله وايي هر جماعت هر ګروف چي دده سره څه ورسره وي بس دئ په هغه باندي خوشحاله دئ دى وايي نحن بما عندنا موږ راضي يو په هغه څه باندي چي زموږ سره دئ او ته راضي يې په هغه چي له تا سره دي دنحن بما عندنا مسند حذف دئ اَیْ نَحْنُ بِمَا عِنْدَنَا رَاضُونَ وَاَنْتَ بِمَا عِنْدَکَ رَاضٍ، موږ مصنف ته وويل كله دومره بخل كوي ډير اشد ضرورت به وي مثال نه راوړي ولى خو متن دئ دلته دويم مثال ته څه ضرورت دئ دا خو متن دئ:

جواب داول مثال او ددويم مثال فرق سته اول مثال هغه وو چي دوى جملى راغلى وي داولى جملى خبر دديمى جملى پر خبر محذوف باندي قرينه وه دوهم هغه مثال دئ چي دوې جملې راغلې وي ددويمي جملې خبر داولى جملې پر خبر محذوف باندي قرينه ( وقولك زيد منطلق وعمرٌو ) زيد منطلق دئ تلونكي دئ وعمرٌو دلته مسند حذف دئ تقدير دعبارت دادئ زيد منطلق وعمرٌو منطلق :

پوښتنه: موږ مصنف ته وويل چي داريم مثال دئ دڅه دپاره راوړي دا مثال فاني وقيار بها لغريب کي تير سوي دئ ؟

جواب: ددريم مثال او دا ول مثال فرق سته اول هغه مثال وو چي پر محل باندي عطف وو په دريم مثال کی عطف پر لفظ دئ مصنف موږ ته دا ښکاره کوي که عطف پر محل وي او که عطف پر لفظ وي ددواړو خبر حذف کيږي (**وقولک خَرَجْتُ فَاِذَا زيدٌ**) دلته مسند حذف دئ **اَیْ فَاِذَا زَیْدٌ موجودٌ** موږ مصنف ته وويل دا څلورم مثال دڅه دپاره راوړي مصنف وايي اول وار چي ما مثالونه درکړه هغه دسماع سره تعلق لري خاص قياس قاعده نه وه اتباع داستعمال وارده نه وه دغه مثال چي درکومه دا قاعده ده دا ښکاره کومه چي اتباع داستعمال وارده کيږي يو احتراز عن العبث دئ بل تخييل العدول الی اقوی الدليلين دئ بل اتباع داستعمال وارده دئ دا درې سره فَلَمَا مَرّ کي راغله دغه مثال داتباع داستعمال وارد دئ فاذا مفاجه کي قانون دا دئ که داذا مفاجه وروسته اسم راغلی هغه مبتداء وي دمبتداء مابعد چي کوم څوک راځي هغه به خبر وي خو دغه خبر په سلو کي ۹۵ دافعال عامه څخه وي هغه افعال عامه دادي **گون حصول ثبوت وجود** په دې څلورو کي خاص بيا وُجود وي ولی اذا مفاجه پر وجود دلالت کوي مطلقا که اذا مفاجه استعمال سوه نو پر وجود به دلالت کوي کله کله دقريني څخه کله کله دسياق او سباق څخه يو خاص خبر **وفَهْمَوْلْ**سی **خَرَجْتُ** زه راوه وتلم فاذا زيد نا څاپه زيد ولاړ وو ای زيد واقف بالباب: دغه واقف بالباب ديو خاص قريني څخه به وفهمول سي خو زيات وخت خبر دافعال عامه څخه وي دافعال عامه حذف کول واجب دي استعمال وارده په اذا مفاجه کي دادي چي مبتداء به ذکر کوي خبر به نه ذکر کوي :

**فائده :** کلاخبر دافعال عامه څخه وو بيا يې حذف کول واجب دي که خبر دافعال خاصه څخه وو بيا يې حذف کول واجب نه دي (**وقوله ع إنَّ محلا وإنَّ مرتحال ، ای انَّ لنا فی الدنيا ولنا عنها**) موږ مصنف ته وويل دا متن دي دا دونه مثالونه څه کوي مصنف وايي قانون دادئ هر هغه ځای چي إنَّ سره دخپله اسمه مکرر راسي او خبر ظرف وي تقريبا

غالبا هلته خبر حذف کېږي دې ته اتباع داستعمال وارده وايي ليکن اول دا اذاځای وو دوهم دا انّ ځای دئ امام سبويه ددې دپاره باقاعده باب وضع کړي دئ انّ مالًا وانّ ولدًا انّ محلًا وانّ مرتحلًا بېشکه زموږ دپاره حلول سته په دنيا کی بيشکه زموږ دپاره کوچ سته ددنيا څخه ای ان لنا فی الدنيا ولنا عنها :

(وقوله تعالى﴿ قُلْ لَوْ اَنْتُمْ تَمْلِكُوْنَ خَزَائِنَ رَحْمَةِ رَبِّيْ﴾ بيا اتباع داستعمال وارده بيانوي قانون دادئ حرف شرط پر فعل داخلېږي پر اسم نه داخلېږي هر ځای که حرف شرط پر اسم باندي داخل وو هلته به فعل حذف وي دلته مسند حذف دئ تقديرلو تملکون تملکون بيا فعل مسند حذف سو ځکه مفسّر او تفسير نه جمع کېږي ضمير متصل په منفصل بدل سو (وقوله تعالى﴿ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ﴾ يحتمل الامرين اي اجمل او فامري) دا هغه مثال دئ چي دوه احتمال لري يو احتمال دالري چي مسند اليه دئ حذف سي ای فَاَمْرِيْ صَبْرٌ جَمِيْلٌ دوهم دا احتمال لری چي مسند دي حذف سي اي صَبْرٌ جميلٌ اَجْمَلُ پر دوهم احتمال باندي زموږ دقاعدي مثال دئ:

فائده که پر تا تکليف راغلی او تا کر سره چا ته بيان نه کړي دې ته صبر جميل وايي او که پر تا تکليف راغلی او تابيان کړي خو تا شکايت ونه کړي تا ګيله ونه کړه دې ته صبر وايي صبر جميل نه ورته وايی خو که پرتا تکليف راغلی او شکايت دي شروع کړ ګيله دي شروع کړه دې ته بي صبری وايي .

## اجراء حذف المسند

| المثال | حذف المسند | الغرض |
|---|---|---|
| اِنَّ اللهَ بَرِيْءٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَرَسُوْلُهٗ (التوبة ٣) | ورسوله برئ منهم | احتراض عن العبث |

تشريح: که چيري دغه محذوف ذکر سي نو ذکر به ددې محذوف عبث سي فی الظاهر ځکه حاجت ورته نسته ولی اول خبر ورباندي دال دئ :

| احتراض عن العبث | دائم | اُكُلُهَا دائمٌ وَظِلُّهَا (الرعد ۳۵) |
|---|---|---|

تشريح: خبر حذف سو ځکه ماقبل ورباندي دال دئ :

وَاللهُ وَرَسُوْلُهُ اَحَقُّ اَنْ يُّرْضُوْهُ (التوبة ۶۲) الله احق ان يرضوه ورسوله كذالک) احتراض عن العبث فی الظاهر

تشريح: جائز ده چي دا يوه جمله سي توحيد دضمير ددې وجي دئ چي تفاوت نسته بين رضي الله ورضی رسوله :

ترکيب: اللهُ مبتداء ورسوله، عطف پر الله احقُّ: خبر مقدم ان يرضو: مبتداء مؤخره خبر مقد سره دمبتداء مؤخره دابه خبرسي دالله زيد:

منطلق وعمرو ( عمرو منطلق)·

وعليه قوله تعالی ﴿ والّٰئِى يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ مِنْ نِّسَآئِكُمْ اِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ وَالّٰئِى لَمْ يَحِضْنَ ﴾:

تشريح والئی لم يحضن: مبتداء ، خبر يې محذوف دئ تقدير ده خبر فكذالک (اي ﴿فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ﴾ اكمال الدين البابرتی

قُلْ لَوْ اَنْتُمْ تَمْلِكُوْنَ( الاسراء ۱۰۰) (لوتملكون تملكون):

فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ (يوسف ۱۸) ( فامری صبر جميل ) صبر جميل اجمل :

وَلَا تَقُوْلُوْا ثَلٰثَةٌ ( النساء ۱۷۱) (لنا اِلٰهَةٌ ثلثة) ( الالهة ثلثة) :

## دروّاتيايم سبق سوال محقق ومقدر

( ولابد من قرينة كوقوع الكلام جوابا لسوال محقق نحو ولَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السموات والارض لَيَقُوْلُنَّ اللهُ ) خامخا به حذف لره قرينه وي داسي قرينه چي دال وي پر محذوف باندي لكه كلام چي جواب دسوال واقع سي سوال پر دوه قسمه دئ ۱-: سوال محقق ۲-: سوال مقدر :

۱.: سوال محقق دې ته وايي چي په عبارت کی ذکر وي ۲ سوال مقدر ديته وايي چي په عبارت کي ذکر نه وی مثال الاول ﴿ولئن سألتهم من خلق السموات والارض ليقولن الله﴾ دلته مسند حذف دئ اى خلقهن الله قرينه ورباندي داسوال محقق دئ سوال محقق ولئن سألتهم من خلق السموات والارض دې پوښتنه: دلته سوال محقق نه دئ ځکه الله پاک نبي عليه السلام ته فرمايی که ته سوال وکړې چي ځمکه او اسمان چا پيدا کړي نو به دوی درته ووايي چي الله پيدا کړي دي سوال نه دئ سوي ځکه که نبي عليه السلام دغه سوال وکړ نو دوی به دغه جواب ورکړي :

جواب علامه تفتازانی وايي کله به کلمه دإنْ دفرضيت معنی ورکوي لهذا سوال محقق دئ علي سبيل الفرض سوال په واقع او نفس الامر کي محقق نه دئ.

پوښتنه: ته الله فاعل بولي مسند فعلی حذف بولي ولی الله مبتداء کړه خبريې حذف کړه ای الله خلقهن جواب: موږ وايو الله فاعل دئ مسند فعلی حذف دئ دليل ورباندي دادئ په وخت کي دعدم حذف هم دارکم تک سوي مثال ﴿ولئن سألتهم من خلق السموات والارض ليقولن خلقهن العزيز الاالعليم﴾ دلته گوره العزيز العليم فاعل دئ دخلقهن مبتداء نه دئ وقوله تعالی ﴿قال من يحي العظام وهي رميم قل يحييها الذي انشأها اول مرة﴾ دلته الذى انشأها فاعل دئ ديحييها دخبري خلاصه داده ددغه حذف کيدل واجب نه دي دفعل حذف کيدل جائز دي څه وخت چي فعل ذکر سي نو لفظ الله په ترکيب کي فاعل وي دفعل مذکور لفظ الله په ترکيب کی مبتداء نه وي دفعل مذکور دپاره (او مقدر نحوع ليبك يزيد ضارع لخصومة) يو وررور دبل وررور په مرگ باندي مرثيه کوي مرثيه دجلال اباد په خلکو کي اوس هم سته مرثيه دې ته وايي څه وخت چي به په کور کی مړی وسو ښځي او نران به راتلل ښځي به دښځي سره کښيناستې نران به دنرانو سره کښيناستو بيا به يې لندي جوړه کړې وه پر مړي به يې ويلې يو سړی مړ سو يزيد بن نهشل دده وررور پر ده مرثيه وويله په دې مرثيه کي دده داشعر وويل داشعر زموږ

دقاعدې مثال دئ شعر لِيُبْكَ يَزِيدُ ديزيد دوه اعرابه دي يو اعراب يزيدُ دئ بل
اعراب يزيدَ دئ په لِيُبكَ كي دوی صيغې دي فعل معروف فعل مجهول كه مجهول
وويل سي يَزيدُ به نائب فاعل سي زموږ دقاعدې به مطابق سي كه فعل معروف وويل
سي يَزِيدَ به مفعول به سي زموږ دقاعدې سره موافقه نه لري ځكه وروسته فاعل ذكر
دئ كه فعل معروف سي نو ترجمه يې داده لِيَبْكِ يَزِيدَ وه دې ژاړي پر يزيد باندي څوک
وژا ړي ضارعٌ ضارع دی وژاړي ومختبطٌ مختبطَ دي وژاړي ضارع هغه سوال گرته
وايي چي له تا څخه سوال كوي ليكن له تاسره شناخ هم لري مختبط هغه سوال گرته وايي
چي له تا څخه سوال كوی لكين له تاسره هيڅ شناخ نه لری شاعر وايي زما ورور داسې
سړي وُ كه به ضارع راغلی يعنی شناخته ملنگ به راغلی هم به ده مدد ورسره كوی كه به
مختبط راغلی يعنی ناشاخته ملنگ به راغلی هم به ده مدد ورسره كوی ضارعٌ او مختبط
دادواړه مرفوع دي فاعل دي دليبک دپاره يَزيدَ مفعول به دئ زموږ دقاعدې سره هيڅ
تعلق نه لري كه فعل مجهول وويل سی بيا زموږ دقاعدې سره تعلق لری لِيُبْكَ يَزِيدُ پر
يزيد دی وژړل سي پوښتنه وسو مَنْ يَبْكِيهِ څوک وژاړي پر يزيد باندي داسوال مقدر دئ
په عبارت كي نسته سوال مقدر دادئ څوک وژاړي پر يزيد باندي نو ده وويل يبكيه
ضَارعٌ ومختبطٌ ضارع دي وژاړي او مختبط دي وژاړي دلته مسند فعلی حذف دئ هغه
مسند فعلی يبكيه دی قرنيه ورباندي سوال مقدر دي ضارع او مختبط دادواړه فاعل
دي ديَبكيه محذوف دپاره ضارع دئ وژاړي لِخَصومَة له وجي دخصومت مخكي چي
يزيد ژوندي وو نو دضارع چي دچاسره جگړه كوله يزيد به يې پر سر ولاړ وو اوس ضارع
ژاړي ځكه يزيد نسته مختبط دي وژاړي مِمَّا دهغه اشياء تطيحُ چي هلاک كړي دي
الطوائح حوادث دزمانی مخكي چي يزيد ژوندي وو ستا مال به هلاک سو نو دي به ورته
ولاړ وو اوس دی مختبط ژاړي ځكه يزيد نسته تُطيحُ تطيح مضارع ده ليكن په معنی
دماضی ده:

**قاعده : هر ځای که ماضی وه تا په شکل کي دمضارع استعمال کړه دمعانیو قاعده** داده چي ته مضارع دماضی په ځای کي استعمالوي هغه به دردناکه ځای وي عجیب امر به وي دځه دپاره معانی وایي لاحضار صورة البدیعة مضارع پرحال او استقبال زمانه دلالت کوي ماضی پر تیره سوي زمانه دلالت کوي معانی والا ماضی را واخلي دحال په شکل یي پیش کړي چي ورته وګوره سم ماضی ته خو سړی سم نسي کتلای دغه معنی داحضار صورة ده چی مضارع دماضی پر ځای ددغه دپاره راوړي چي دغه صورت دده په دماغ کي ورحاضر کړي دغه کار په ماضی نسي کیدای ولی هغه پر تیره سوي زمانه دلالت کوي داکارپه مضارع کیدای سي ولی په مضارع کی دحال معنی ده چي ورته وګوره (**وفضله علی خلافه بتکرر الاسناد اجمالا ثم تفصیلا وبوقوع نحو یزید غیر فضلة ویکون معرفة الفاعل کحصول نعمة غیر مترقبة لان اول الکلام غیر مطمع فی ذکره**) دوی ضیغي وي یوه فعل معروف **ایْ لِیَبْکِ** بله فعل مجهول **اَیْ لِیُبْکَ** موږ قزوینی ته وویل کمه صیغه خوندوره ده زموږ په نیز خو لِیَبْکِ یَزِیدَ ترکیب خوندور دئ ځکه ستړیا پکښي نسته قزوینی وایي دمعانی په اصطلاح **لِیُبْکَ یَزِیدُ** ترکیب خوندور دئ ځکه په دې ترکیب کی یو څو معنوي ګټي دي **وفضلهُ علی خلافه بتکرر الاسناد اجمالا ثم تفصیلا** ترجیع دمجهول **اَیْ لِیُبْکَ یزیدُ** پر معروف باندي **اَیْ لِیَبْکِ یزیدَ** په سبب دمکرر والی داسناد په **لِیُبْکَ** یزیدُ کي یو وار اجمالا نسبت وسو، په یبکیه ضارع ومختبط کي بل وار اسناد وسو تفصیلا لهذا اجمال بعد التفسیر اوقع فی النفس وی لهذا دمجهول په عبارت کي دوه واره ژړا راځي پر یزید باندی **وبوقوع نحو یزیدُ غیر فضلة:**

**قاعده دمعانی** دیو چا چي ته تعریف کوي نو تاته پکار داده چي ته دی په عبارت کي عمده ذکر کړي نه فضله په **لِیَبْکِ یَزِیدَ** کي یزید فضله جوړیږي په **لِیُبْکَ یزیدُ** کي یزید نائب فاعل جوړیږي او نائب فاعل عمده دئ دریم فضیلت که یو نعمت به غیره دانتظاره

حاصل سي نو دا ښه خوند کوی تر هغه نعمت چي سره د انتظاره حاصل سي الانتظار اشد من القتل که لِیُبْکِ یزیدَ وویل سي نو دستي د مخاطب په دماغ کي دا را ګرځي چي یزید خو مفعول به دئ فاعل به څوک یي لږ انتظار راغلی چي ضارع ومختبطٌ ووایي بیا انتظار ختم سي چي لِیُبک یَزِیدُ وویل سو بس خبره پر یزیدُ خلاصه سوه یعنی پر نائب فاعل خبره خلاصه سوه چي ضارعٌ ومختبط وویل سي نو فاعل به مخکي تر فعل معلوم سي ځکه هغه فعل چي یبکیه دئ هغه نه دئ ذکر .

## اجراء حذف المسند

| المثال | حذف المسند | السوال | القسم |
|---|---|---|---|
| وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السموت وَالْاَرْضَ لَيَقُولُنَّ اللهُ (لقمان ٢٥) | (خلقهن الله) | (ولئن سألتهم من خلق) | محقق |
| وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السموت وَالْاَرْضَ لَيَقُولُنَّ اللهُ (الزمر ٣٨) | (خلقهن الله) | (ولئن سألتهم من خلق) | محقق |

كُونُوا هُودًا اَوْ نَصرىٰ قُلْ بَلْ مِلَّةَ اِبْرَاهِيْمَ حَنِيْفًا : اى بل نَتَّبِعُ:

تشریح: وقال الیهود لهذه الامة :

کونو یهودًا تسلکوا سبیل الهدایة، وقال النصاری: کونوا نصاری تسلکوا سبیل الهدایة قل ایها النبی مجیبا ایاهم: بل نتبع بن ابراهیم

لِیُبْکِ یزیدُ ضَارِعٌ لخصومةٍ : (یبکیه ضارع) (من یُبکیه) مقدرة

یُسَبِّحُ لَهُ فِیْهَا بِالْغُدُوِّ والاصال رِجَالٌ (النور ٣٦) (یُسَبِّحُهُ رجالٌ) (من یُسَبِّحُهُ) مقدر

وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَاءَ الْجِنَّ (الانعام ١٠٠) :

تشریح : که چیري لِلّٰه شُرکاءَ مفعولان سي د جعلوا نو بیا الجِنَّ محتمل دئ دوجهینو یوه وجه داده چي الجن منصوب سي د محذوف دپاره سوال مقدره دلالت ورباندي کوي ګویا کي وویل سوه من جعلوا لله شرکاءَ فقیل الجنّ .

## څلور اتیایم سبق اما ذکره

(واما ذکره فلما مرّ او ان یتعیّن کونه اسما او فعلا) دمسند الیه دذکر کیدو چي کم اغراض دي دمسند دذکر کیدو هم هغه اغراض دي ذکر دمسند دده وجی چي ذکریی اصل دئ تر حذف په داسي حال کی چی مقتضی دعدول به نه وي دذکر څخه ۲-: دوهم مسند ذکر کومه له وجي دضعف اعتماد پر قرینه باندي ۳-: دریم مسند ذکر کومه دده دپاره چي متکلم حاضرینو ته تنبیه ورکوي چي زما مخاطب دومره غبي دئ که مسند ذکر نسي نیا یې فهم نسي کولای مثال مخاطب سوال وکړی مَنْ نَبِیُّکُمْ متکلم جواب ورکړی محمد نَبِیُّنَا صلی الله علیه وسلم دلته دمسند دذکر کیدو ضرورت نسته ځکه مسند په سوال کي ذکر دئ لیکن دی مسند ذکر کوي دپاره دتنبیه ورکولو پر غباوت دسامع او ان یتعین کونه الخ مسند ذکر کیږی ددي دپاره چی متکلم مخاطب ته وایي دلته مسند اسم دئ دوام او ثبات فائده کوي یا دلته مسند فعل دئ تجدد فائده کوی که مسند ذکر نسي نیا دانه معلومیږی چی دلته دوام دئ که تجدد دئ (واما افراده فلکونه غیر سببي مع عدم افادة تقوی الحکم والمراد بالسببي نحو زید ابوه منطلق) کله به متکلم مسند مفرد راوړی مقصد دمتکلم داوي چي دلته زما مقصد سببیت نه دئ تقوی دحکم نه ده مثال زید قائم دلته مسند ما مفرد راوړي ځکه زما مقصد نه سببیت دئ نه تقوی ده پوښتنه: په قائم کي تقوی سته ځکه دقائم یو وار اسناد وضمیر ته دئ بل وار ددواړو اسناد ومبتداء ته دئ ؟

جواب شبه جمله دوه حیثیته لري یو حیثیت په اعتبار دنفس الامر او دواقع په قائم کي تقوی سته ځکه دی متحمل دضمیر دئ دوهم حیثیت قائم دضمیر په تغیر سره په ده کی تبدّل نه راځي نو خالی عن الضمیر سو لکه اسم جامد مثال انا قائم انت قائم هو قائم انا رجل انت رجل هو رجل ګوره دضمیر په تغیر سره په ده کي تغیر نه راغلی دا نه تغیر پر دې دلیل دئ چي دی محتمل دضمیر نه دئ لهذا په قائم کی عینِ تقوی نسته شیئ مِنَ

التقوی سته ستا دخبري څخه دارا معلومیږی چي په کم ځای کي افراد وي هلته به سببیت او تقوی نه وی:

پوښتنه: زه به دروښیم مفرد به وي بیا به هم تقوی وي عِرفتُ عَرِفتُ اِنَّ زَیْدًا لَعارِفٌ په عرفت عرفت کي عرفان مسند دئ تاء ضمیر مسند الیه دئ عرفان مکرر راغلی دئ مفرد دئ تقوی پکښي سته په انّ زیدا لعارف کي تقوی سته؟

جواب علامه تفتازانی وایي زموږ مراد تقوی لغوي نه ده زموږ مراد تقوی اصطلاحي ده تقوی اصطلاحي دې ته وایي چي اسناد مکرر وي دضمیر په زور مثال زید قام په عرفت عرفت کي تقوی سته په واسطي دتکرار دعرفت په ان زیدا لعارف کي تقوی سته په واسطی دحرف:

پوښتنه: ددې خبري څخه یو خبره رامعلومیږي هغه دا هرځای که جمله راغله خامخا به سببیت وي یا به تقوی فائده کوی زه به دروښیم تخصیص به فائده کوي تقوی به نه فائده کوي مثلا اَنَا سَعَیْتُ فِی حاجتک دلته تخصیص فائده کوی تقوی نسته؟

جواب: علامه تفتازانی ددي ډیر خوندور جواب ورکوي تفتازانی وایي په دنیا کی داسي جمله نسته چي تخصیص فائده کوي تقوی نه فائده کوي چي هر ځای تخصیص وو تقوی به خامخا وي:

دوهم جواب ما چي دا خبره وکړه چي مسند مفرد راوړم مقصد مي سببیت نه دي تقوي نه ده تا ته چا وویل چی ته زما دخبري څخه دافهم وکړه که جمله وه خامخا به سببیت او تقوی وي لهذا دا ته اخلی ما خو نه دي ویلی چي خامخا به سببیت وي یا به تقوی وي

والمراد بالسببي نحو زید ابوه منطلق سببی علامه تفتازنی وایي دغه اصطلاح تر سکاکی مخکی هیڅ چا استعمال کړی نه ده دا اصطلاح دسکاکی ده سکاکی دسببی تعریف نه دي کړي لیکن دسکاکی پر عباراتو به نظر وکړو چي سببیت دې ته وایي لیکن دا دارکم اصطلاح ده لکه په نحو کي صفت پر دوه قسمه دئ یو صفت بحال الموصوف

دې ته صفت فعلی وايي دوهم صفت بحال متعلق الموصوف دې ته صفت سببي وايي مثال الاول جاءنی رجل عالم مثال الثانی جاءنی رجل عالم ابوه دا هم يو اصطلاح ده يو نسبت سببې دئ بل نسبت غير سببي دئ دسببيت دپاره دري شرطونه دي ١-: شرط مسند به جمله وي احترازي مثلا زيد قائم ٢ شرط په مسند كي به ضمير وي هغه ضمير به مبتداء ته راجع وي احترازی مثال قل هوالله احد ٣-: شرط په مسند كي به ضمير مسند اليه نه وي احترازي مثلا زَيْدٌ هُوَ قَائِمٌ اتفاقي مثال زيد ابوه منطلق زيدا بوه قائم زيد قام ابوه .

## پنځه اتيايم سبق واماكونه فعلا

(واما كونه فعلًا فلتقييده باحدالازمنة الثلثة على اخصر وجه مع افادة التجدد كقوله شعر او كلما وردتْ عكاظ قَبِيْلَةٌ . بَعثُوا اليَّ عريفهُم يَتَوَسَّمُ) مسند فعل راوړل كيږي ددوغرضو دپاره يو غرض او مقصد فلتقييده باحدالازمنة الثلثة ، مسند مقيد كومه په درو زمانو كي په يوه زمانه باندی مع افادة التجدد دوهم غرض مسند فعل راوړمه دپاره ددې چي افاده وكړي دتجدد على اخصر وجه پر اخصره طريقه باندي اخصر وجهٍ دې ته وايي چي دزمانی دپاره باقاعده لفظ استعمال نه كړي احترازي مثال زيدٌ قائمٌ آلئنَ اَمْسِ غَدًا گوره دلته اسم فاعل پر زمانه باندي دلالت كوي ليكن موږ داسم فاعل سره دزمانی لفظ ايبني دئ اتفاقي مثال ضَرَبَ ضَرَبَ پر اَمْسِ دلالت كوي ليكن موږ دضَرَبَ سره باقاعده لفظ داَمْسِ نه دئ ايبنی يَضْرِبُ پر آلئنَ او غدا باندي دلالت كوي ليكن موږ ديضربُ سره باقاعده لفظ دالئن او لفظ دغدا نه دئ ايبني مع افادة التجدد سم متوجه سي ددنيا په شيانو نه پوهيدل دا صفت نقصان نه دئ مثلا په مبايل نه پوهيدل په فيسبوک نه پوهيدل په نيټ نه پوهيدل داصفت نقصان نه دئ داخيرت په امورو نه پوهيدل دا دمؤمن دپاره صفت نقصان دئ الله ج دكافر په باره كي فرمايي ﴿يَعْلَمُوْنَ

﴿ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ﴾ ددنيا په ظاهري زندگي ډير ښه پوهيږي ليکن داخيرت په باره کي مطلقا غافله دي الله ج دکافر دوه خويه بيانوي په دنيا پوهيدل او داخيرت څخه غافله کيدل نن په مسلمان کي دکافر داخوئ راتلل صفت کمال دئ چي کم مسلمان په دنيا ښه پوهيږي او داخيرت څخه غافله وي ودغه سړي ته خلک ويښار وايي که يو سړي ښه انجنير وي ښه ډاکټر وي که څه هم داخيرت څخه غافله وي نو خلک ودغه سړي ته پوه وايي که يو سړي طالب وي ددنيا په کارو ډير نه پوهيږي ليکن داخيرت څخه غافله نه وي دئ ځلور ويشت گانټي داخيرت سوچ په مخ اخيستي وي نن خلک ودغه سړي ته بې عقل نا پوه وايي ولي دمسلمان عقيده عقيده نه ده کفري عقيده لري ځکه وده ته کفري عقيده خوندور کوي دمؤمن عقيده خوند نه ورکوي موږ مسلمانان دا نه وايو چي ډاکټر جوړيدل نعوذ بالله کفر دئ يا انجينر جوړيدل کفر دئ بلکي ډاکټر يا انجنير جوړيدل ښه کار دئ ليکن ډاکټر جوړيدل يا انجنير جوړيدل او داخيرت څخه غافله کيدل دا ښه کار نه دئ الله ج دکافر دوه خويه بيانوي يو خوئ دجملې فعلى په شکل بيانوي بل خوئ دجملې اسمي په شکل بيانوي دالله ج مطلب دادئ چي دوى به ددنيا گئ په دا ظاهرى زندگي وقتا فوقتا تجدد پيدا کوي يوه ورځ به انجنير وي بله ورځ به ډاکټر وي بله ورځ به پلوټ وي بله ورځ به موټر جوړه وي ليکن داخيرت په باره کي ټول عمر غافله وي که الله مضارع ذکر کړي نه واى بيا تجدد نه معلومدى:

**فائده** تجدد دې ته وايي وقتا فوقتا نوى نوى کيدل بس په تجدد کي داخبره وي بار بار شاعر وايي **او كلما وردت عكاظ قبيلة بعثوا الي عريفهم يتوسم** په عربو کي قوم فرستي ډيره وه ليکن دالله رسول چي راغلى داقوم فرستي يې ختم کړه ليکن نن مسلمان هغه قوم فرستى کوى عربو دا خويى درلودى يو ځاى به يې ميله جوړه کړه تناشد به يې کوې يوه به ويل زما نيکه دى ؤ بل به ويل زما نيکه دى ؤ هر يوه به په خپل نيکه فخر کوى عکاظ ديوښار نوم دئ وديته قبلي راشوه کيدى باقاعده به يې تناشد کوي په دغه قبيله کي يو عريف ؤ عريف وهغه چا ته ويل کيدل چي هغه به دخپلي قبيلى په امورو پوهيدى دقبيلى عريف چي زموږ وقبيلى ته وکتل **يتوسم** په ما کي به يې بار بار علامات دسړي

توب کتلی تَوَسُّم دِوَسْمَ څخه دئ وِسم په شي کي علامات ښکاره کول يتوسم بار بار به يې ماته کتل گوره په فعل کي تجدد راغلی بار بار به يې ماته کتل او کلما وردت داسي نه وه هر وخت چي راغله عكاظ وعکاظ ته را شوه سوه قبيلة يوه قبيله بعثو را وابه ستول سوه الیَّ وماته عريفهم هغه پوه ددوي يتوسم بار بار به يي په ماکي علامات دسړي توب کتلي چی دايو قيمتي انسان دئ (واما كونه اسما فلا فادة عدمها كقوله شعر لا يألف الدرهم المضروب صرتنا لكن يمرُّ عليها وهو منطلق) واما كونه اسما مسند اسم راوړل فلافادة عدمهما دا دپاره دافادې دعدم ددوي دواړو يعنی نه مي زمانه مقصد ده نه مي تجدد مقصد دي لا يألف الدرهم المضروب صرتنا لكن يمر عليها وهو منطلق وايي ډير سخي يم زموږ کورنی ډيره سخي ده وايي موږ چي کمه تيلي خلته دروپو ډکه کړي ده وايي روپي والله ورسره شناخته سوي نه دي چي روپی راسي تيلي ته بېرته ولاړي سي يعنی راځي بيرته ځي دا کله کله که هميشه دي وايي وهو منطلق دا هميشه ځي او راځي لا يألف الدرهم شناخت يی نه دي پيدا کړي هغه درهم مضروب صرتنا زموږ دتيلي سره لكن يمر عليها لكن تيريږي پر تيلی وهو منطلق په داسي حال کي چي رواني وي

فائده: اسم مسند راوړل کيږي دپاره دثبوت او دوام فعل مسند راوړل کيږي دپاره دتجدد:

## اجراء ذكر المسند

| المثال | المسند |
|---|---|
| أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صَافَّاتٍ وَيَقْبِضْنَ (الملک ۱۹) | حال |

ترجمه ايانه گوري دوی مرغانو ته له پاسه دسرونو ددوی حال دا چي مرغان خلاصوی وزرونه او ټولوي وزرونه:

تشريح: مرغه چي والوزي په الوتلو کي وزر هميشه خلاص وي کله کله چي مرغه بال ووهی نو وزر را ټول کړي وزر را ټولول يې ډير کم دي او غوړول يې هميشه وي

الله سبحانه دطير دوه صفته بيانوي يو صفت وزرغوړول ۲ دوهم صفت وزرتړول الله دمرغه هغه صفت چي هميشه کيږي هغه په اسم ذکر کوي او هغه صفت چي کله کله کيږي هغه په فعل ذکر کوي که څه هم دواړه صفتونه په ترکيب کي مسند نه دئ بلکي حال دئ هغه دواړه صفتونه ذادي صَٰٓفّٰتٍ وَّيَقْبِضْنَ دلته فعل (يقبضن) عطف دئ پر اسم (صفّت) :

**خلاصه:** دقول داده بسط غالبه دئ نو ګويا کي بسط ثابت دئ نو تعبير په اسم ورڅخه وسو قبض متجدد دئ نو تعبير ورڅخه په فعل وسو :

**وَاِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَالُوْٓا اٰمَنَّا** (امنّا)

**قَالُوْٓا اِنَّا مَعَكُمْ** (البقرة ۱۴) **انا معكم**

**تشريح:** که يو سړی دکفر سره وسله واخلي او دکفر تنخا خوري دکفر حفاظت تمامه ورځ کوي دغه سړی چي دمؤمن سره يوځای سی او مؤمن ورته ووايي چي دا څه کوی د خدای بنده چي ټول وخت دکفر حفاظت کوي نو منافق ورته وايی زه ستاسو سره يم زه صرف تنخا اخلم :

نو ګوره دغه سړی زيات وخت دکفر سره تيروي کله کله دمؤمن سره مخامخ سي :

الله سبحانه دمنافق يو صفت په جمله فعليه ذکر کوي ( امنا ) ددې دپاره تجدد چي فائده کړي بل صفت يې په جمله اسميه ذکر کوي اِنّا معکم ددې دپاره چي دوام او ثبوت فائده کړي :

**يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ** (النساء ۱۴۲) **(يخادعون) (خادعهم)**

**ترجمه:** ټګي کوي له الله سره او الله سزا ورکو ونکي دئ ددوی دټګي :

دلته يُخادعون فعل مسند دئ تجدد فائده کوي مرة بعد اخری او مقيد دئ په زمانی سره دلته الله دمنافقينو صفت په فعل مسند (يخادعون ذکر کوي له دې وجي چي منافقين الله ته دوکه ورکوي کله کله دلته خادعهم اسم مسند دئ ثبوت فائده کوي مطلقا غير دنظره وزماني ته يعني الله منافقينو ته سزا ورکوي په طريقي ددوام او ثبوت:

إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ (ص ١٨) (يسبّحن)

ترجمه واقع موږ تابع کړي موږ غرونه له دغه (داؤد) سره چي تسبيح يې ورسره ويلې هر ماښام او سهار هر ماښام او سهار :

دلته دغرونو صفت په يسبحن ذکر کړي دي دپاره چي استمراد تجددي فائده کړي يعني غرونه تسبيح وسره ويلې هرماښام لو سهار :

اللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ (البقرة ١٥) يستهزئ

ترجمه: الله سزا ورکوي ودوی ته (منافقينو) ته دټوکو وقتا فوقتا حالا فحالا

دلته الله يستهزئ فعل مسند راوړي دي دپاره تجدد فائده کړي ځکه سزا دالله دوی ته وقتا بعد وقتا حالا بعد حالا وي :

وَهُمْ عَنْ آيَاتِهَا مُعْرِضُونَ (الانبياء ٣٢) معرضون

ترجمه: او دغه کفار له علائمو داسمانونو څخه مخ ګرځونکي دي هميشه دلته معرضون اسم مسند راوړل سو دي دپاره چي ثبوت او دوام فائده کړي :

كُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ (الانبياء ٣٣) يسبحون

ترجمه هريوله دغو (شپه، ورځ، لمر، سپوږمۍ) په فلک کښي ګرځي او راګرځي :

دلته الله يسبحون فعل مسند ذکر کړي دپاره دي چي استمرار تجددي فائده کړي :

هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللّٰهِ يَرْزُقُكُمْ (فاطر ٣) يرزقکم

إِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا (الزمر ٥٣) يغفر

## اما تقيد الفعل بمفعول

(واما تقييد الفعل بمفعول ونحوه فللتربية الفائدة)

عجيبه زبردسته قاعده ده که په پوه سي هرفعل درجه داجمال لري مثال تا چي وويل ضَرَبَ وهل کړي چا وهل کړي ۲-: څوک يې وهلی دئ ۳-: چيري يې وهلی دئ ۴-: څنګه يې وهلی دئ ۵-: ولی يې ووهلی دئ ۶-: په څه شي وهلی دئ ۷-: پرڅه شي وهلی

دئ چي دا يوه يوه خبره ميدان ته راشوه كيږي تا ته به دومره خبر زياتيږي مثال ضرب
زيدٌ عمرا ، يومَ الجمعةِ، امامَ الاميرِ، ضربًا شديدًا، والخشبةَ مشدودًا، تاديبًا. فلتربية
الفائدة: دپاره دزيادت دفائدي يعني د اقيودات تا ته په فعل كي فائده زياتوى وايي
ضَرَبَ وهل كړي چا وهل كړي وايي زيد لړ فائده حاصله سوه څوک يې وهلى دي وايي
عمرا يې وهلى دئ كله يې وهلى دئ وايي يوم الجمعة دجمعې په ورځ وايي چيري يې
وهلى دئ امام الامير دامير په مخ كي يې وهلى دئ وايي څنګه يې وهلى دئ ضربا
شديدا په ضرب شديد سره يې وهلى دئ وايي په څه شي وهلى دئ والخشبة په لرګي
يې وهلى دئ وايي په څه حال كى يې وهلى دئ مشدودا دتړلي په حالت كي يې وهلى
دئ وايي ولي يې وهلى دئ تاديبا دادب دوجي يې وهلى دئ لهذا څومره چي متعلقات
زياتيږى دومره تا ته فائده زياتيږي .

## شپږ اتيايم سبق والمقيد فی كان

(والمقيد في كان زيد منطلقا هو منطلقا لاكان)

پوښتنه : تاويل په نفس فعل كي فائده سته په نورو متعلقاتو سره فعل مقيد كول لكه
مفعول مطلق وبه ولَهُ ومَعَهُ فلتربية الفائدة دادپاره دزيادت دفائدي يعني څومره چي
متعلقات قيودات زياتيږي دومره تاته فائده زياتيږى :

پوښتنه: زه به دروښيم په فعل كي به نفس فائده نه وي به غير دقيده مثال كان زيد
منطلقا دلته په كان كي هيڅ فائده نسته منطلقا قيد دئ دكان اوس نفس فائده راغله
ليكن تربية الفائده نسته تا خو وويل په قيوداتو سره تربية الفائده راځي؟

جواب په كان زيد منطلقا كي مسند منطلقا دئ كان نه دئ زموږ خبره په هغه مسند
فعلى كي ده چي دده دپاره قيودات وي مثال﴿ وَجَآءُوا أَبَاهُمْ عِشَاءً يَبْكُونَ﴾ دلته
اباءهُم. عشاءً. يبكون. دادرى سره دجاءوا فعل قيودات دي لهذا دلته تربية الفائدة سته

دخبری خلاصه داده زموږ خبره په هغه مسند کي نه ده چي دي دبل دپاره قيد وي لهذا دلته کان قيد دمنطلقا دپاره دئ منطلقا دکان قيد نه دئ منطلقا مقيد دئ (واما ترکه للمانع منها) ترک دتقييد داوي دوجي ديو مانع دتربية الفائدة څخه يعنی ترک دتقييد ددې وجي وي چي تربية الفائدة ته يو مانع ولاړوي لکه متکلم داغواړي چي مخاطب ته نفس فعل ذکر کړي نور ورڅخه پټ کړي که متکلم يې ذکر کړي نو بيا خو ښکاره سوه پټ نه سوه او متکلم ښکاره کيدل نه غواړي يا خو وخت تنګ وي يا دمتکلم زړه نه غواړي چي ذکريې کړي مثال په قران کی څه وخت چي دمتکلم مقصد داوی چي زه دنفس فعل خبرورکومه نو که فعل متعدي وو په منزله دفعل لازمي به يې ګرځوي اوس که مفعول به ذکر کړي نو بيا خو تنزيل نه راغلی لهذ دغه تنزيل مانع دئ دمن تربية الفائدة څخه

﴿قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾: ته ورته ووايه اي پيغمبره هغه کسان چي پوهيږي او هغه کسان چي نه پوهيږئ دا برابر دي که ته ووايي په څه شي کي دوي يادوې نو متکلم وايي دهغه سره ستا کار نسته .

فائده واما تقييد الفعل بمفعول ونحوه فلتبرية الفائدة تربية الفائدة يعني تفصيل دفعل تفصيل دفعل ددوو غرضو دپاره کيږي يو دا چي مقصود فوت نه سي بل دا چي کذب لازم نسي :

## اجراء تقيد المسند بمفعول ونحوه

المثال

جَعَلَ اللهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيَامًا لِلنَّاسِ (المائدة ٩٧)

الله جل جلاله الکعبة مقيد کړي په البيت الحرام سره دالله جل جلاله دخبر اصل مقصود دادئ چی داښکاره کړي چي کعبه بيت حرام ده جنګ په کښي بنده فسق بنده زنا بنده ، لهذا الله کعبه مقيده کړه دپاره ددې چي مقصود فوت نسي :

وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَاعِبِينَ (الانبياء ١٦)

ترجمه: موږ نه دئ پيدا کړي اسمان او نه ځمکه او نه هرهغه چي په مينځ ددوی کي دئ په داسي حال کښي چي موږ لوبي کوونکی وو، لعبين په ترکيب کي حال دئ

دخلقنا دفاعل څخه اوس دلته که فاعل مقید نسي په لعبین باندي نو کذب راځي خو
دلته فاعل مقید سو په لعبین باندي ددې دپاره چي کذب رانسي :

## اوه اتیایم سبق واما تقییده بالشرط

(واما تقییده بالشرط فلاعتبارات لا تعرف الا بمعرفة ما بین ادواته من التفصیل)

فعل مقید کول په ادواتو دشرط باندي ادوات عام دي که حرف وي لکه اِنْ لَوْ لَوْلَا که
اسماء وي لکه مَنْ مَا اَیْنَ متی اِذْمَا حیثُما الخ فعل مقید کول په کلماتو دشرط باندي
ددې چي په فعل کي کم اغراض دي په معانی کي هم هغه اغراض دي واما تقییده
بالشرط فعل مقید کول په شرط باندي فلاعتبارات دا دوجي دنکاتو لا تعرف دا نکات نه
پیژندل کیږی الا بمعرفة مابین ادواته من التفصیل مګر پژندل کیږي په معرفت دهغه
تفصیل چي بیان کړي دي ادواتو دهغه (قد بُیِّنَ ذالک فی علم النحو) په تحقیق سره
بیان سوي دئ دا په علم نحو کي واما تقییده بالشرط الخ

پوښتنه عبدالرحمن قزوینی داسي عبارت ولی نه وایي واما دخول ادوات الشرط علی
الفعل؟

جواب عبدالرحمن قزوینی داعبارت وایي واما تقییده بالشرط دلته اشاره ده
واصطلاحینو ته یوه اصطلاح دمعانی ده بله اصطلاح دمنطقینو ده مثال اِنْ دخلتِ الدار
فَاَنْتِ حُرَّةٌ اهل معانی والا وایي حکم په جزاء کي دئ اصل جمله جزاء ده دانشاء او دخبر
دار او مدار پر جزاء دئ که جزاء انشاء وه نوله جمله انشاء ده که جزاء خبر وه نوله جمله
خبریه ده شرط قید دئ دحکم جزاء لکه ظرف دِاِنْ جِئْتَنِيْ اُکْرِمْکَ ترجمه داده اکرمک
وقت مجیئک ایای: اهل معانی والا وایي په جزاء کي چي کم شي مسند الیه دئ بس هغه
محکوم علیه دئ په جزاء کي چي کم شي مسند دئ بس هغه محکوم به دئ اهل منطق والا

وايي حكم نه په شرط كي دئ نه په جزاء كي دئ حكم په مينځ كي دئ ځه وخت چي كلمات دشرط پر شرط باندي داخلی سي نو شرط دكلام څخه خارج سي جزاء دكلام څخه خارج سي او حكم په كلام كي ژاځي چي دواړه سره يو ځای سي بيا حكم ورڅخه معلوميږي لهذا شرط او جزاء چي دواړه سره يو ځای سي بيا حكم پيدا كيږي يوازي په شرط كي حكم نسته يوازي په جزاء كي حكم نسته چي دواړه سره يو ځای سي بيا حكم پيدا كيږي داهل منطق په نيز باندي محكوم عليه او محكوم به دواړه په جزاء كي نسته دمنطق په نيز محكوم عليه په شرط كي ده محكوم به په جزاء كي ده دمناطقه په نيز دشرط او جزاء يوه ترجمه كيږي داهل معانی په نيز دشرط او جزاء بله ترجمه كيږي مثال اِنْ دخلتِ الدار فانت حرة اهل معانی والا داسي ترجمه كوي ته ازاده يې په وخت كي ددخول ستا كور ته اهل منطق والا داسي ترجمه كوي ستا ددخول دار سره حُرِيَتْ لازم دئ (ولكن لا بد من النظر ههنا فی اِنْ واِذَا ولَو) ليكن خامخا به په دې مقام كي نظر كيږی په اِن ، او اِذَا، او لَو، كي كه ته ووايي چي ولی ددادرو څخه بحث كيږي ددانورو څخه بحث نه كيږي نو ته ورته ووايه دمعانی اغراض زيات تعلق لري ددادرو سره هغه دريږ دادي اِن اِذَا لَو (فَاِنْ واِذَا للشرط فی الاستقبال) اِنْ او اذا شرط جوړوي په استقبال كي په خلاف دلَوْ ،لَوْ شرط جوړوي په ماضی كي يعنی اِنْ او اذا تعليق كوي په استقبال كی لَوْ تعليق كوي په ماضی كي (لكن اصل ان عدم الجزم بوقوع الشرط) دلته لكن دفع دتوهم كوي توهم دا كيدی چي اِنْ او اِذا دواړه مشترک دی په شرط فی الاستقبال كي نو دواړه به يو ركم وي په لكن سره دفع دتوهم وه سوه اِنْ په هغه ځای كي مستعمليږی چي دشرط وقوع يقينی نه وي (واصل اذا الجزم) اذا په هغه ځای كي مستعمليږي چي شرط وقوع يقينی وی همدا وجه ده چي الله پاک دقيامت څومره احوال بيانوي نو په اذا سره يې بيانوي مثال اِذَا السَّمَاءُ انْفَطَرَتْ اِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ دخبري خلاصه داده اِنْ په محتملاتو كي مستعمليږي اِذَا به يقينياتو كي مستعمليږي (ولذالک كان النادر موقعاً لِاِن) دا غه خو وجه ده چي اِنْ په

نادره ځایو کي مستعملیږي لهذا اِنْ په نادر ځای کي مستعملیږي ځکه نادر محا[illegible]
وي مشکوک وي یقینی نه وي علامه تفتازانی وروسته دغالبا قید لګوي ځکه کله[illegible]
یو شي نادر وي خو وقوع یې یقینی وي لکه قیامت نادر دئ لیکن وقوع یې یقنی د[illegible]

**قاعده:** الله تعالی ته ټول عمر شک او عدم الجزم نه ورپېښیږي نو ددې خو دامعنی چې الله داِنْ داستعمال څخه بند دئ ځکه دالله جل جلا له ټول کارونه جزم دي جواب: ک[illegible] دالله په کلام کي اِنْ مستعمل سو ددوو حالو به خالی نه وي یا به الله اِنْ مستعملوي علی سبیل الحکایة یعنی الله به دبل خبره په اِنْ کوی مثال دیوسف علیه السلام وروڼو وویل اِنْ یَسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ اَخٌ لَّهٗ مِنْ قَبْلُ دلته دالله په کلام کي اِنْ مستعمل دئ لیکن دا دیوسف دوروڼو حکایة دئ که الله اِنْ په خپل کلام کي مستعمل کړي ؤ حکایة نهٔ یا به ضرب من التاویل کوي یعنی الله اِنْ مستعملوي لیکن ستا په ژبه باندي (وغُلِّب لفظ الماضی مع اذا) په غالب مواد کي ماضی داِذَا سره مستعملیږي ددې دپاره چي داکار سوی وبوله (نحو فَاِذَا جَآءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ قَالُوا لَنَا هٰذِهٖ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّطَّيَّرُوْا بِمُوْسٰى وَمَنْ مَّعَهٗ) حسنه ښېګړې ته وایي سیئة سترې ته وایي دالله جل جلاله څلورویشت ساعته پر ما او تا باندي احسانات شروع او شروع دي ځکه که الله ووایي سترګو ته ړندې سي نو سترګی به ړندې سي که الله غوږو ته ووایي چي کاڼه سي نو غوږونه به کاڼه سی وغیر ذالک لهذا غوږونه سترګي لاسونه خوله پوزه ثابت پاته کیدل دا ټوله حسنه دي لهذا دحسنی راتلل یقینی دي او سترې کله کله وی مثلا موت ناجوړي دا کله کله وي نو دسترې او دسیئه راتلل محتمل دئ ځکه الله جل جلاله دبنی اسرائلو په قصه کې دحسنه سره اِذَا مستعملوي دسَیِّئَه سره اِنْ مستعملوي ﴿فَاِذَا جَآءَتْهُمُ الْحَسَنَةُ﴾ نه وخت چي دوی ته یو شیګړه راغله ﴿قَالُوْا لَنَا هٰذِهٖ﴾ نو دوی به وویل دا خاص زموږ دپاره دي ﴿وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ﴾ کله چي دوی ته ستړیا ورسیده ﴿يَّطَّيَّرُوْا بِمُوْسٰى وَمَنْ مَّعَهٗ﴾ نو

دوی به بد پالي نيول په موسی باندي او پر هغه چا چي دموسی سره به ؤ ( لان المراد الحسنة المطلقة ) ځکه مراد دحسنة څخه حسنه مطلقه ده ( ولهذا عرفت تعريف الجنس ) ددې وجی حسنه معرفه سوه په تعريف الجنس ځکه وقوع دجنس داسي ده لکه واجب ( والسيئة نادرة بالنسبة اليها سيئه نادره ده په نسبت سره وحسنې ته ( ولهذا نكرت) دا غه خووجه ده چي سيئه نکره سوه ددې دپاره چي تنکير دسيئه دلالت وکړي پر تقليل باندي .

## اوه اتيايم سبق قديستعمل اِن

(وقد يستعمل اِنْ فى الجزم تجاهلا) اِن مستعمليږی په مقام دعدم جزم کي اِن په مقام دجزم کي نه مستعمليږي زه دپالوان مزدور يم پالوان په کور کي دئ عبدالاحد راغلی در وازه يې را وه ټکول وايي پالوان چيري دئ اوس زه په دې ښه خبر يم چي پالوان په کور کي دئ نو ځای داذا دئ ليکن بيا هم زه اِن ورته مستعملومه ددې دپاره چي زه دپالوان څخه بيريږم که زه پالوان وروښيم بيا مي وَهی لهذا ما ورته وويل اِن كانَ فى الدار اُخبِرُكَ که چيري پالوان په کور کي ؤ زه به تاته خبر درکړم ګوره زما جزم دئ چي پالوان په کور کي دئ ليکن بيا هم زه اِن کان مستعملوم خو دا تنزيلي صورتونه دي وَم عالم ليکن ځان مي په زوره جاهل کړي بيا مي اِن ورته استعمال کړي اوس که زه اذا ورته استعمال کړم هغه دستی ماته وايي دا خو يقينی دئ پر کور دئ ته دا ولی وايي که دی پرکور وو زه به خبر درکړم لهذا زه اِن په دې وجه ورته استعمالومه ځان په تکلف سره جاهل جوړومه وقد يستعمل ان فى الجزم کله کله اِن مستعمليږي په ځای دجزم کي تجاهلا دوجي دتجاهل تجاهل دېته وايي ځان په زوره جاهل جوړول ( اولعدم جزم المخاطب كقولك لمن يكذب ان صدقت فما ذا تفعل ) زما يقين دئ چي داکار سوی دئ نو زما مخاطب يقين نه لري دمتکلم يقين سته دمخاطب جزم نسته متکلم اِن راوړي دمخاطب دنه جزم دوجي که

نسبت متکلم ته وسي بيا دانِ ځای نه دئ زه وايم دا خبره وسوه دی وايي نه به يې سوي کوره زه ورته وايم دا خبره دارکم وسوه ليکن دی زما په ريښتيا تصديق نه کوی زه ورته وايم إِن صَدَقْتُ که ما ريښتيا ويل فماذا تفعل بيا به ته څه کوې زما ريښتيا ويل ما ته را معلوم دي چي يقيني دي ليکن بيا هم انِ ورته استعمالوم دپاره دمخاطب اولعدم الجزم المخاطب مخاطب ته جزم نسته کقولک لمن يکذب لکه ستا وينا وهغه چا ته چي ستا تکذيب کوي انِ صدقت فما ذا تفعل (او تنزيله منزلة الجاهل لمخالفة مقتضى العلم) يا متکلم مخاطب نازل کړي په منزله دجاهل ځکه دي مخالفه دئ دعلم دتقاضی سره نو متکلم إِن مستعمل کړي مخاطب په خبروي خو متکلم دې نازل کړي په منزله دجاهل مخاطب پلار ته زړر رسوي متکلم ورته وايي إِن کَانَ اَبَاکَ فَلَا تُؤذِهِ که چيري دا ستا پلار وي نو ته زړرمه وړ رسوهٔ دلته مخاطب په دئ خبر دئ چي دا زما پلار دئ سړي زړر نه وړ رسوئ ليکن دې بيا هَمْ تکليف ورکوي نو متکلم دی په منزله دجاهل ګرځوي چئ ته نه يې خبر (او التوبيخ وتصوير ان المقام لاشتماله على ما يقلع الشرط عن اصله لا يصلح الا لفرضه کما يفرض المحال نحو اَفَنَضْرِبُ عَنْکُمُ الذِّکْرَ صَفْحًا اِنْ کُنْتُمْ قَوْمًا مُسْرِفِيْنَ فی من قَرَأَ ان بالکسر) مثلا دا يو ځای دئ شرط متحقق الوجود دئ يقيني دئ نو ځای داذا دئ ليکن بيا هم متکلم ان مستعملوي ددې دپاره چی متکلم مخاطب ته دا تصوير په دماغ کي ورکول غواړي چی داشرط دعقل مند سړي څخه نه صادريږي يعنی دا شرط ددې وړ نه دئ چي په وجود کي راسي متکلم چي داشرط په مخاطب کي ثابتوي على سبيل الفرض والمحال متکلم إِنْ مستعملوی ددې دپاره چي متکلم مخاطب ته په دماغ کي دا تصوير ورکوي چي داشرط ددې وړ نه دئ چي په وجود کي راسي وايي ولی ځکه داسي ما لها وما عَلَيْهَا په خارج کي سته چی دا شرط دبيخه باسي لهذا دا شرط ددې وړ نه دئ چي په وجود کي راسي که ته وايي تا څنګه په وجود کي را وستلي نو نه ورته ووايه ما على سبيل الفرض والمحال ثابت کړي لکه محال چي فرض کيږي ما دارکم

فرض کړي دئ لکه شريک دباري تعالی شريک دباري تعالی په وجود کي نسي راتلای تا
که دا شرط په وجود کي را وستلی دا به علی سبيل الفرض وي نه علی سبيل الحقيقت
ځکه داسي مَا لَهَا وما عَلَيْهَا په خارج کي سته چي دا شرط دبيخه باسي په وجود کي نسي
راتلای ولوکه دا شرط متحقق دئ ليکن بيا هم اِنْ ورته استعمالومه ددغه تصوير
دحصول دپاره او حال دا چي دا ځای داذا دئ او دغه کار دغه شرط دمخاطب څخه سوي
دئ متکلم عار ورکوي پيغور ورکوي چي ملا دئ ماته سه څنګه درڅخه صادر سو دغه
کار دغه شرط که سړي دسړي زوی سی نو دغه شرط نه ورڅخه صادريږي اِن دغه پيغور
دپاره راځي او دا پيغور په اِنْ هغه وخت راځي چي مُحتَمَل سي مشکوک سي ولی که جزم
سي بيا د اذا ځای دئ مثال الله فرمايي﴿ اِنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُسْرِفِيْنَ﴾ که تاسي ياست قوم
مسرف يعنی قومِ کافر داسي مَا لَهَا وما عَلَيْهَا سته که سړي عقل ولري دا دلائل پکار
واچوي امکان نه لري چي سړی دئ کافر سي امکان نه لري چي سړی دي مشرک سي
دچا څخه کفر صادريدل شرک صادريدل دا محال دي خو متکلم چي الله دئ په دوی کي
کفر شرک ثابتوي علی الفرض والمحال لهذا الله ددغه تصوير ورکولو دپاره اِنْ
مستعملوي خلاصه دخبري د اده الله پاک کافرانو ته وايي ستاسو څخه کفر يا شرک
صادريدل محال دئ ځکه داسي مَالَهَا وما عَلَيْهَا په خارج کي سته چي کفر يا شرک دبيخه
باسي ليکن الله په دوی کي کفر شرک ثابتوي علی سبيل الفرض والمحال الله پاک ددغه
تصوير ورکو دپاره اِن استعمالوي او حال دا چي ددوي کفر کيدل يقيني دي او التوبيخ
والتصوير متکلم تصوير ورکوی ومخاطب ته ان المقام لاشتماله بيشکه مقام له وجي
داشتماله علی ما يقلع الشرط عن اصله بنا پر هغه دلائلو چي شرط دبيخه باسي لا يصلح
صلاحيت دوجود نه لري الا لفرضه مګر صلاحيت دوجود لري فرضا کما يفرض المحال
لکه محال چي فرض کيږي اِن کنتم قوما مسرفين:

پوښتنه ستا دخبري څخه درامعلومیږي چي دا محال دئ دې وايي وو دا محال دئ چي په خارج کی داسي دلائل وي بيا کفر دسړي څخه صادریدل محال دي سوال دمحال عدم الجزم يقيني دئ لهذا دا داذا ځای دئ علامه تفتازانی وايي محال يقيني شي دئ ته به یو وار محال ظنی کوي وايي دڅه دپاره څه فائده کوي ګوره خبره واوره تبکیت الخصم او دارخاء العنان دپاره ډیرکارونه کیږي خصوصا په مناظره کي تبکیت الخصم او ارخاء العنان څه ته وايي تبکیت الخصم او ارخاء العنان دېته وايي ته پر اس سپوریې ته آس يوي خوا ته بيا یې لیکن آس بلي خوا ته زور وهي او تا آس ټینګ نیولي دئ نه یې یله کوي چي پر مخ ولاړسی لیکن آس زور وهي ته را ولاړسي لُوْلَدٗهٗ وریله کړی یعنی وَرْوَرُوْ یې کړي نو دآس زړه خوشحاله سي چي د غه خواته یې یله کړم خو ته یې بیرته را ټینګ کړې بلي خواته یې بُوځي تا دیو چا سره مناظره سوه ځای پر ځای دي لار ورته ونیوله نه یې یله کوې په دې صورت کي دي نه ماتیږي نو ته به ورته وايي چلو ستا رکم یې دیو ساعت دپاره چلو دغه ته ارخاء العنان وايي دتبکیت الخصم دپاره کیږي لهذ محال یقیني دئ زه یې ظنی کومه ددې دپاره چي ارخاء العنان په وکړم نسي کیدای چي سړي دې کافر سي چلو ته یې فرض کړه کفر کیدل ممکن اَفَنَضْرِبُ موږ به واړه وو عَنْكُمُ له تا سو څخه اَلذِّكْرَ قران صَفْحًا اړول علامه تفتازانی وايي دصَفْحًا درې ترکیبونه دي دنضرب صله چي عَنْ راسي داړول معنی ورکوي صَفْحًا معنی اړول دصفحا ترجمه دی داسي کوي اعراضا للاعراض معرضين که اعرضًا سي بیا مفعول مطلق دئ که للاعراض سي بيا مفعول له دئ که معرضين سي بيا حال دئ اِنْ كُنْتُمْ قَوْمًا مُسْرِفِيْنَ فی من قرء اِنْ بالكسر نبي علیه السلام دوی ته وايي نسته د خدای جل جلاله زوی لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ اِنْ كَانَ لَهٗ وَلَدٌ خدای لره زوی نه کیدل یقیني دئ ته یې فرض کړه خدای لره زوی سته فَاَنَا اَوَّلُ الْعٰبِدِيْنَ زه خو نبي یم اول دعابدينو به زه وای ما به منلای چي خدای لره زوی سته لیکن زه یې نه منم نو ښکاره خبره ده چي خدای پاک لره زوی نسته ودغه ته ارخاء العنان وايي

## اته اتیایم سبق اوتغلیب الغیر المتصف

(او تغليب غير المتصف به على المتصف به) مثلا يو شرط دئ هغه شرط مثلا قيام دئ دوه كسان پكښې شريكان دي مثلا هغه دوه كسان زيد او عمرو دي زيد في الحال په شرط پوري قطعي المتصف دئ عمر في الحال قطعي المتصف نه دئ په دې شرط پوري عمر محتمل دئ امكان لري چي متصف دي سی امكان لري چي متصف دي نه سي دمتصف خواته چي وګوري اذا غواړي دغير متصف خوا ته چي وګورې إنْ غواړي ته را ولاړسي غير المتصف ته پر متصف باندي غلبه ورکړې بيا إنْ استعمال کړې مثال إنْ قُمْتُمَا كان كذا كه چيري تاسو دوه ودريږي نو دا كار به دارکم وي په قمتما كي دوه كسان دي يو كس يقيني په قيام پوري متصف دئ دوهم كس محتمل دئ احتمال لري چي ودې دريږي احتمال لري چي نه دئ ودريږي ته را ولاړسي محتمل ته غلبه ورکړي پر يقين باندي بيا إنْ مستعمل کړې او تغليب غير المتصف بالشرط على المتصف بالشرط غلبه وركول غير متصف بالشرط ته پر متصف بالشرط باندي وقوله تعالى ﴿وَإِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِمَّا نَزَّلْنَا عَلَى عَبْدِنَا﴾ يحتملهما) بنايی چي تاسو ته په تلخيص كي داسي سخت ځای نه وي راغلی عجيبه پيچلي ځای دئ ورته متوجه سي قزوينی وايي ما دوی قاعدې تا ته دربنولې وي يوه قاعده توبيخ او تصوير بله قاعده تغليب غير المتصف به على المتصف به لهذا په دې مثال كي دواړي قاعدې جاري كيږي ﴿وَإِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِمَّا نَزَّلْنَا عَلَى عَبْدِنَا﴾ اوله قاعده په دې آيت كي خطاب وكافر ته دئ ټول كافران رَيب كونكي دي كه يې شک نه کوای بيا به كافران نه وای رَيْبٌ من الكافر قطعي الوقع دئ نو ځای دإذا دئ ليكن الله پاک إنْ ورته استعمالوي ددې دپاره چي متكلم دمخاطب په دماغ كي دا وركوي چي داسي مالها وما عليها ستهداسي دلائل سته كه دوی دا پكار باندي واچوي امكان نه لري چي دوي دي رَيبَ وكړي ليكن الله په دوی كي ريب ثابت كړي على سبيل الفرض والمحال كه ته وايي دوی په حقيقت كي شک كونكي دي ليكن الله پاک دا

تصویر په دماغ کي ورکوي چې ملا دي ماته سه څنګه شک درڅخه صادر سي عقل‌مند سړي ته پکار نه دي چي دغه کار ورڅخه وسي لیکن زه یې فرض کومه چې دا کار ستا څخه سوی دئ دا مشکل ځای دئ ستا به داخیال وي چي زه پوه سوم لیکن ته پوه نه یې ځکه دپوه غته علامه داده چي دي به تعبیر کولای سي دوهم قاعده کافر پر دوه قسمه دئ یو کافر هغه دئ چي بالکلیه رَیْبٌ نه کوي ریب کوي عناداً نو دا غیر متصف دئ قطعي الاوقوع دئ نو دااِنْ ځای دئ بل هغه کافر دئ چي هغه رَیْبٌ کوي نو دامتصف دي قطعي اللاوقوع دئ نو دااِذَا ځای دئ ته را ولاړ سي هغه کافر چي قطعي اللاوقوع دئ هغه ته غلبه ورکړي پر هغه کافر چي قطعي الوقوع دئ بیا اِنْ ورته مستعمل کړي.

پوښتنه:. هغه کافران چي ریب نه کوي دا قطعي اللاوقوع دي هغه کافران چي ریب کوي دا قطعي الوقوع دي لهذا دا دواړه قطعیان دي نو ځای دِاِذَادئ دااِنْ ځای نه دئ لهذا دلته دتغلیب قاعده نه جاري کیږي یو ملا عجیبه جواب ورکړي وایي فی الحال دغه سړی چي ریب پکښي قطعي اللاوقوع دئ لیکن اِنْ داستقبال دپاره مستعملیږي دا امکان لري ددي خبري چي بیا دي ریب ورپیش سي نو په اعتبار داستقبال محتمل او مشکوک سو په داغه اعتبار اِن ورته مستعملومه علامه تفتازانی وایي پام کوه چي دا جواب ورنه کړې ولي په اِنْ کی دا خویی دئ چي اِن هره ماضی په استقبال اړوي په کان هیڅ کار نسی درلودای مبزد او زجاج دواړو په دې تصریح کړې چې ماضی پر خپل حال پاته ده چی پر ماضی پاته سوه امر استقبالي نه سو چي امر استقبالي نسو نو احتمال نه سو پیدا نو یقینی سو کوفیون وایي داغه خو وجه ده چي ان دلته په معنی د اِذْ دئ ددغه خبري دوجي اِنْ په معنی داذ کوي چي لار نسي جوړیدای علامه تفتازانی ددې جواب ورکوي ډیر خوند په کوي تفتازانی وایي محال قطعي اللاوقوعٌ دا هم قطعي اللاوقوع دئ محال چي موږ فرض کړي نو احتمالي به‌سو بس دا هم دارکم دئ چي کافره په تا کي ریب نسته زه یې فرض کومه که په تاکي ریب پیدا سو چي فرض سو نو محتمل سو چي احتمال پیدا سو نو شک پیدا سو بس دشک صورت ته مي غلبه ورکړه دیقین پر صورت

باندي نو اِنْ مي استعمال کړي موږ علامه تفتازانی ته وویل علی سبیل الفرض ته څه ضرورت سته علامه تفتازانی وایي ما تاته مخته وویل چي دادارخاء العنان دپاره دتبیکت الخصم دپاره مثال ﴿فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنتُم بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوا﴾ توله کافران ایمان نه لری ته یې فرض کړه که ایمان راوړي لکه تاسو چي ایمان راوړي دئ نو دوی به داسي پر هدایت سي لکه تاسو چي پر هدایت یاست دا یقینی مشکل ځای ؤ

## التغليب باب واسع

(والتغليب باب واسع) تغلیب لوی باب دئ (يجري في فنون) تغلیب په ډیرو ځایو کي جاري کیږي (كقوله تعال ﴿وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ﴾ کله به تغلیب دیوې صیغې پر بلي صیغي وي مثلا مذکر او مؤنث په یوه ماده کي سره شریکان دي لکه مؤمن مسلمان او مؤمنه ښځه په قنوت کي شریکان دي دمؤمن دپاره قَانِتٌ صیغه پکار ده دمؤمنې دپاره قَانِتَةٌ صیغه پکار ده خدای پاک دمذکر صیغي ته غلبه ورکړه دمؤنث پر صیغې باندي ائ وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ ۲ کله به تغلیب معنًا وي (وقوله تعالى﴿ بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ﴾ قوم لفظا غائب دئ ځکه اسم ظاهر دئ معنًا مخاطب دئ ځکه دخطاب دپاره خبر دئ دلته معنی ته غلبه ورکول سوي پر لفظ پکار داسي عبارت ؤ بل انتم قوم یجهلون ځکه داسم ظاهر هغه فعل صفت جوړیږي چي غائب وي ۳-: تغلیب صیغة ومادة صیغة مادة دېته وایي احدالمصاحبين احد المتشابهتین یو مصاحب ته پر بل مصاحب ترجیع ورکول صیغة مادة لکه عُمَرَيْنِ ،شمسین ابوین مثلا داَب جلا ماده ده دامُ جلا ماده ده ته اَبْ ته ترجیح ورکړه پر ام صیغة ومادة اَبوین دلته دامُ ماده هم ختم سوه صیغه هَمْ ختم سوه دشمس جلا صیغه ده جلا ماده ده دقمر جلا ماده ده جلا صیغه ده ته شمس ته غلبه ورکړه پر قمر باندي صیغة مادة شمسین یو عُمر بن خطاب رضي الله عنه بل عَمْرَبن هشام ته عُمَر ته په عَمْر غلبه ورکړه صیغة مادة هر وخت چي نبي علیه السلام

دعاوکړه چي په دوو عمرينو کي په يوه داسلام تائيد وکړه هلته لا عُمر ته غلبه ورکول سوي وه پر عَمَر باندي ځکه عُمَر دکفر په حالت کی په تهوله زندګي زنا نه وه کړي بل غيرت مند وُ بل الله پاک په تَوْرات کي او انجيل کي ويلی چي عُمَر به ايمان راوړي (ومنه ابوان ونحوه).

## الاول اجراء تغليب المذكر

| المثال | القياس |
|---|---|
| وَكَانَتْ مِنَ الْقٰنِتِيْنَ (التحريم ۱۲) | كانت من القانتات |

تشريح: مونث وشمارل سو دمذکر څخه په حکم دتغليب :

اِلَّاامْرَاَتَهٗ كَانَتْ مِنَ الْغٰبِرِيْنَ (كانت من الغابرات (الاعراف ۸۳)

## الثاني تغليب المخاطب على الغائب

| المثال | القياس |
|---|---|
| بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُوْنَ (النمل ۵۵) | يجهلون |

تشريح دلته انتم ته غلبه ورکول سوه پر قوم باندي پکار يجهلون وو ځکه دا صفت دئ دقوم خو دا په معنی کي عبارت دئ دمخاطبينو څخه نو غلبه ورکول سوه خطاب ته پر غائب باندی نظير ددې دا قول دئ انا الذي سَمَّتْنِي اُمی حيدرةً دا په ياء سره حمل دئ پر (انا) ځکه (الذی) هغه انا دئ په معنی کي :

فَاسْتَقِمْ كَمَا اُمِرْتَ وَمَنْ تَابَ مَعَكَ (هود ۱۱۲)

دلته جانب دانت ته غلبه ورکول سوه پر جانب دمَنْ بيا دفعل اسناد ورته وسو تقدير فاستقيموا وو خطاب ته غلبه ورکول وسوه پر غائب باندي ځکه حرف عطف فصل دئ په مابين دفعل کی داسي فعل چي مسند دئ ودوي ته

## نه اتیایم سبق ولکونهما لتعلیق امر بغیره

(ولکونهما لتعلیق امر بغیره فی الاستقبال) اِنْ او اِذَا تړل کوي او تړل به استقبالی وي یعنی دانْ او اِذَا شرط او جزاء به دواړه استقبالي وي استقبالی به صیغة دمضارع وي که جزاء په وجود کي راغلی وي یا دتړل څه معنی که شرط په وجود کي راغلی وي یا دتړلو څه معنی خلاصه داده اِنْ او اِذَا مضمون دجزاء تړي دشرط په مضون پوري تړل به استقبالي وي یعنی شرط او جزاء به دواړه مضارع وي که چیري ماضی وه یا اسمیه وه نو دا خلاف دمقتضي ظاهر الحال دئ خامخا به نکته ورلره وي ولکونهما لتعلیق امر بغیره اِنْ او اِذَا تړي جزاء په غیر پوری چي شرط دئ فی الاستقبال علامه تفتازانی وایي فی الاستقبال تعلق نیسي تر بِغَیْرِهٖ پوري تر لتعلیق پوري یې نه نیسي ځکه تا چي ان دَخَلْتِ الدار فانت حرّةٌ وویلي او ته تعلیق په استقبال کي کوي دا خو دروغ دي ځکه تعلیق تا فی الحال وکړي لهذا دفی الاستقبال تعلق تر لتعلیق پوري ورکول جائز نه دئ فی الاستقبال تعلق نیسي تر بغیره پوري (کان کل من جملتي کل منهما) دهریوه جمله به فعلیه استقبالیه وي یعنی شرط او جزاء به فعلیه استقبالیه وي (ولا یخالف ذالک لفظا الا لنکتة) دشرط او دجزاء په خوا کي به لفظا مخالفت نه وي که چیري شرط او جزاء ماضی وه یا اسمیه وه خامخا به نکته وي:

پوښتنه دلفظ قید وویل سو دمعنی قید نه وویل سو؟

جواب معنیً مخالفت نه راځي ځکه که شرط او جزاء ماضی وي او که اسمیه وي معنی داستقبال ورکوي

پوښتنه: ستا دخبری څخه دا رامعلومیږي چي دانْ او اذا څخه شرط او جزاء جوړ سي خامخا به داستقبال معنی ورکوي داخبره غلطه ده زه به یې در وښیم دحال او دماضی

معنی به ورکوي مثال إِنْ أَكْرَمْتَنِي الْآنَ فَأَكْرَمْتُكَ أَمْسِ دلته شرط دحال معنی ورکوي جزاء دماضي معنی ورکوي علامه وايي دا په ظاهره حال او ماضي معلوميږي په حقيقت کي بيرته استقبال دئ استقبال دارکم جوړيږي زه چي تاته وايم که ته زما اوس اكرام کوې نو څه دی ما پرون ستا اکرام کړي دلته متکلم مخاطب ته په اصل کي دا ترا ويل غواړي که داراباندي شماری نو پرون والا درسره وشماره علامه تفتازانی يو قاعده بيانوي إِنْ ټول عمر ماضي په استقبال اړوي سِيُوا ددوو ځايو اول که إِنْ پر كَانَ يَكُونُ داخل سو بيا دماضي معنی ورکوي دوهم که پر إِن واو وصليه داخل سو په دې صورت کي داضروري نه ده چي داستقبال معنی دي ورکړي ځکه په سلو کي (١٠٠) نهه نوي (٩٩) ملايان وايي دا إِنْ شرطي نه دئ دا إِنْ قوت والا دئ څه معنی دامغنی دا إِنْ دماقبل دترکي دپاره راځي ماقبل ته پوک ورکوي مثال زَيْدٌ وَإِنْ كَثُرَ مَالُهُ بَخِيْلٌ زيد بخيل دئ که څه هَمْ دير دئ مال دده په وَإِنْ كثر ماله کي واو وصليه دئ دلته إِنْ بخل پخوي دإِنْ او دإِذَا شرط او جزاء به دواړه مضارع استقباليه وي خو په شرط کی چي ماضي راوړل کيږي ددې دپاره چي متکلم تا ته دا ښکاره کوي چي غير حاصل داسي وبوله لکه حاصل سوی (كابراز غير الحاصل فى معرض الحاصل) لکه ښکاره کول دغير حاصل په موضع دحاصل کی مثال دیو ښځي عادت داوي چي دبل کورو ته ديره ځي او راځي تا ورته وويل إِن دخلت الدار فانت حرّةٌ په دخلت الدار کي يې دا ورښکاره کړه چي گورا دبل کره مه ځه ليکن دادئ وبوله لکه سوی ولي داله تانسي پاتيدای (لقوة الاسباب) ابراز دغير حاصل کيږي په معرض دحاصل کي ددې علت دادي لقوة الاسباب دوجي دقوي اسبابو (او كون ما هو للواقع كالواقع) دا معطوف دئ پر قوة الاسباب باندي ابراز دغير حاصل فى معرض الحاصل کي ځکه کومه چي داشي وقوع ته ور روان دئ دا مايله دئ داسي يې وبوله لکه واقع (او التفاول) يا دمضارع پر ځاي ماضي راوړي دپاره دنيک پالي نيولو (او اظهار الرغبة فى وقوعه) که څه هَمْ داکار نه دئ سوی خو ته دا

ور ښکاره کړي چي زما په دې کيدو کي زيات رغبت دئ چي وسي نحو ان ظفرتُ بحسن العاقبة فهو المرام ) که چيري زه کامیابه سوم په ښایسته خاتمه یعنی خاتمه مي پر ایمان سوه بس دغه زما مقصد دئ دغه کار په استقبال کي کيږی ليکن دی ماضی استعمالوي دا ښکاره کوي چی په دې شي کي زما زيات رغبت دئ :

جهاد، کومه، عِلم کومه، تبليغ کومه که خدای جل جلاله ما ته داسي مرګ راکړي چي خدای زما څخه خوشحاله وي بَسْ زما دزندګي داغه تمنی ده (فان الطالب اذا عظمت رغبته فى حصول امر يكثر تصوره اياه) علامه تفتازانى وايي اظهار الرغبة يو څه تفصيل غوښتي علامه قزوينى هغه تفصيل ورکړي دا دانسان فِطرت دئ چي په کم شي کي رغبت زيات سي دهغه تصور زيات سي تصور کوي کوي کوي د ډير تصور بعد هغه شی دته دومره ښناخته سي لکه هغه چي باقاعده وجود لري او کم شي چي وجود پيدا کړي نو هغه سوی وي داظهار رغبت دا معنی چي ته چا ته مضارع دماضی په شکل وړاندي کوی نو ته دته وايي چي وروره ددې ما دومره تصورات کړي دي چي زه بل سوچ نه لرمه بس دا کار دئ وبوله لکه سوی .

يشکه طالب څه وخت چي زيات سي رغبت دده په حصول دامر کي نو زيات سي تصور دده هغه امر لره (فربما يخيل اليه حاصلا) کله کله دغه امر ودته محسوسيږي حاصل ( وعليه اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا) مشرکينو به دخپلي انډوالی دپاره خپل عزت ختم کاوئ يو مشرک به دبل مشرک انډوالۇ دمشرک به يو مينځه وه دا خپله مينځه به يې پر دې مجبوره کړه چي زما ديار سره به زنا کوې دانډوال دخوشحالي دپاره به يې خپل عزت بر باد کړی الله جل جلاله ددې څخه منعه کړه﴿ وَلَا تُكْرِهُوا فَتَيٰتِكُمْ عَلَى الْبِغَاءِ﴾ تاسو مه مجبوره کوي ستاسو مينځي پر زنا باندي﴿ اِنْ اَرَدْنَ تَحَصُّنًا﴾ که چيري هغه اراده لري دپاک دامنی اِنْ اَرَدْنَ دماضی صيغه ده ځای داستقبال دئ ليکن الله ماضی راوړي مقصد دخدای پاک اظهار رغبت ښکاره کول دي يعنی دخدای پاک مقصد دادئ الله پاک مينځو ته دا ښکاره کوي که تاسو دخپل ځان دپاک دامنی اراده لري دا ماته ډير خوند کوي موږ

علامه تفتازانی ته وويل دشرط څخه چي کوم څوک مفهوم مخالف را باسي نو بيا دإِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا څخه دا را معلوميږي که چيري ښځه برابره نه وه دپاک دا منی اراده يې نه درلوده نو بيا لَا تُكْرِهُوْا نهي نه دئ علامه تفتازانی ددې مفهوم مخالف دوه جوابه ورکوي :

**اول جواب** شوافع مطلقا دمفهوم مخالف قائل نه دي بلکي که په شرط کي دمفهوم مخالف څخه غير بله زياته فائده يې ورنه کړه بيا دوی دمفهوم مخالف قائله دي که په شرط کي دمفهوم مخالف څخه غير بله زياته فائده يې ورکړه بيا دوی دمفهوم مخالف قائله نه دي په إِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا کي الله اظهار رغبت کوي دمفهوم مخالف څخه ماسوا بله زياته فائده يې ورکړه چي زياته فائده يې ورکړه نو ضروري نه ده چي مفهوم مخالف دي راويستل سي:

**دوهم جواب** علامه تفتازانی وايي مفهوم مخالف عندالشوافع ظنی دئ قطعی نه دئ قانون دادئ چي دظنی په مقابل کي قطعی راغلی نو ظنی نړه وي دإِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا څخه که څه هَمْ مفهوم مخالف راوتلی دئ چي زنا کولای سي ليکن ددې په مقابل کي قطعي دلائل راغلی دي چي زنا کول حرام دي قطعي دليل دادئ وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَا (السکاکی اوللتعريض نحو لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ) ابراز غير الحاصل فی معرض الحاصل اما لما ذکر واما للتعريض لهذا دا دويم مستقل علت دئ سکاکی وايي په شرط کي داستقبال پرځای ماضی زاوړي مقصد يې صرف تعريض وي تعريض دېته وايي خبره يوا ته کول په وهل بل څوک الله پاک نبي عليه السلام وايي لَئِنْ أَشْرَكْتَ که چيری تا شرک وکړي لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ خامخا به ستا اعمال برباد سي دلته الله پاک تعريض کړي خبرا ونبي ته کوي يا دوی ما او تا :

**فائده:** په تعریض کي خبر پخول دي نبی څومره عظیم شخص دئ لیکن چي نبي شرک وکړي نو خدای پاک يې نه پرېږدي نو ما او تا چي شرک وکړو نو به مي څه حال وي په پښتو کي مثال ته ماته ښکنځل کوي نو زه وايم چي دبادشاه زوی ښکنځل وکړي ماته زه يې نه پرېږدم نو ته څوک يې

**پوښتنه** پر سکاکی باندي په تعرض کي دماضی دخل ستہ داخبره که دمضارع په شکل سوي وای هم تعریض حاصلیدی الله پاک نبي ته داسي ویلی وای لَئِنْ تُشْرِكْ که چیري ته شرک وکړي لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ خامخا به ستا اعمال برباد سي علامه تفتازانی د سکاکی دطرفه جواب ورکوي تعریض خلاف دمقتضي ظاهر الحال دئ بَس خلاف پر خلاف تفریع کیږي نو هر وخت که ته دانْ بعد ماضی راوړي نو هغه به درته ودرېږي چي دا ځای خو دمضارع دئ نو ته به ورته ووایي زما بل مقصد دئ هغه په ادا کومه چي تعریض دئ خلاف دمقتضي ظاهر الحال ځکه کومه چي ستا تعریض ته پام کومه اوس که زه مضارع راوړم نو بیا خو خپل ځای دئ تعریض څه کوی لهذا دغه دخل دئ دماضی په تعریض کي علامه تفتازانی وايي وفیه شئٌ يو څه پکښي ستہ قزوینی ته خوند نه ورکوي داغه خو وجه ده چي دی وایی قَالَ السكاکی له دی وجه قزويني چي وایی قال السكاکی وده ته خوند نه ورکوي .

## نوی یم سبق ونظیره فی التعریض

(ونظیره فی التعریض وَمَالِيَ لَا أَعْبُدُ الَّذِيْ فَطَرَنِيْ ای ومالکم لا تعبدون الذی فطرکم بدلیل وَإِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ) يو نظير دئ بل مثال دئ مثال که دمُمَثَّل لَهُ عين نه دئ لیکن ورته سوی دئ نظير دممثل له عين نه دئ خو ورته سوی دئ شَبِيْه عينِ ممثل له نه دئ لیکن څه ورته سوی دئ شبیه د مُمَثَّل لَهُ سره په يوشي کي په يو صفت کي وَرته وي نظير دمُمَثَّل لَهُ سره په صفاتو کي وَرته وي مثال دممثل لَهٗ سره ځوله په خوله وي که څه هَمَ عين نه وي

دمثل لهٔ دعلامه قزوینی یو عادت مُبارکه دئ چې یو شي وبل ته یوځه سوی وي نو تعبیریې په نظیر سره کوی که ډیر ورته سوي وُ تقریبا تعبیر په عَلَیْهَا یا په علیه سره کوي لکه دوی وایي عَلَیْهَا پر دا قاعده باندي قول دالله تعالی جاري دئ دلته هم په وَمَالِيَ لَا اَعْبُدُ الَّذِيْ کې تعریض سته هغه رکم تعریض نسته لکه په مخته آیت کې نو ځکه قزوینی وایي وَنَظِیْرُهٗ فِی التعریض خبره بل ته کول یادول ځان دا په نصیحت کې ډیر دخل لري قانون واوره طالبه نبي علیه السلام چې معراج ته ولاړي یو مخلوق جبرائیل ورته ښکاره کړي داُور ځچي ورسره وه انسانان به ولاړ وه فرشتو به شوندان ورپرې کوله نبي علیه السلام ورته وویل داڅوک دي جبراییل ورته وویل داستا دامَتْ واعِظِیْن دي چې بل ته نصیحت کوي خپله عمل ورباندي نه کوي ﴿ وَمَالِيَ لَا اَعْبُدُ الَّذِيْ فَطَرَنِيْ﴾ دلته متکلم تعریض کوي وایي څه سوي دئ په ماباندي چې زه عبادت نه کومه دهغه ذات چې زه یې پیدا کړي یمه اي مالکم-لا تعبدون الذی فطرکم دلیل په دې باندي داقول دالله دئ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ (ووجه حسنه اسماع المخاطبين الحق على وجه لا يزيد غضبهم وهو ترك التصريح بنسبتهم الى الباطل ويعين على قبوله لكونه ادخل في امحاض النصح حيث لا يريد لهم الاما يريد لنفسه) علامه قزوینی دتعریض فائده بیانوي ؤوجه حسنه دتعریض دحسن وجه داده اسماع المخاطبین الحق چې متکلم ور واوروي مخاطبینو ته حق وعلی وجه پر داسي طریقه حق ور واروي لایزید غضبهم چې راپورته نسیي غضب ددوي وهو ترک التصریح بنسبتهم الی الباطل هغه ښه وجه د تعریض ترک دتصریح دي په سبب ددي چې ته ددوي نسبت وکړي وباطل ته یعنی صراحة به چا ته نسبت دباطل نه کوي لهذا ته به تعریض کوی خبره به ځان ته کوي یا دوی به دوی ویعین علی قبوله تعریض مدد کوي پر قبول دحق لکونه ادخل فی امحاض النصح ځکه دا ډیر دخل لري په اخلاص دنصیحت کې حیث لا یرید لهم الا ما یرید لنفسه ) له دې وجي چې متکلم نه اراده کوي ددوي دپاره مگر هغه چې دځان دپاره اراده کوي ( ولو للشرط فی المضارع مع

القطع بانتفاء الشرط) لو دځه دپاره راځي لَوْ للشرط لَوْ راځي دپاره دتړلو يعنى لَو دجزاء دمضمون حصول تړي دشرط دمضمون په حصول باندي دجزاء مضمون به هغه وخت په وجود كي راځي چي ځه وخت دشرط مضمون په وجود كي راسي لَوْ تړل كوي په ماضى كي لو للشرط في المضارع مع القطع بانتفاء الشرط :

لو دا كار كوي جزاء تړي په شرط باندي په ماضى كي مع القطع بانتفاء الشرط دا به يقيني وي چي شرط نسته او س يې معنى دا سوه لَوْ جزاء تړي په شرط او تړي يې په ماضى كي او شرط نفى كوي:

فائده: لَوْ انتفاء دثانى كوي په سبب دانتفاء داول مثال لَوْ جِئْتَنِيْ لَاَكْرَمْتُكَ كه چيرى ته ماته راغلى واى نو ما به ستا اكرام كړي واي ما ستا اكرام نه دئ كړي ځكه ته ماته نه يې راغلى ګوره دلته انتفاء دثانى راغله په سبب دانتفاء داول په دې باندي ابن حاجب سخته اعتراض كړي ډير خوند يې په كړي دئ ابن حاجب وايي دغه قاعده چي لو امتناع دثانى كوي په سبب دامتناع داول دا تا غلطه او ريدلى ده ابن حاجب وايي دلو وروسته اول سبب دي دويم مسبب دئ اوس ته وايي چي په انتفاء دثانى چي مسبب دئ انتفاء داول راځى چي سبب دئ نو دا معنى مسبب نفى دئ ولى ځكه سبب نفى دئ ابن حاجب وايي په انتفا دسبب سره دمسبب نفى نه راځي ځكه دمسبب دپاره دئ دا سبب نه وي بل سبب دي وي ځكه دا جائز دئ چي ديو شى دپاره دي اسباب متعدد سي لهذ داخبره غلطه ده چي داول دنفى دوجي ددويم نفى راغلى بلكي دا خبره صحيح ده چي ددويم دنفى دوجي داول نفى راغلى دي ولى چي مسبب نسته نو دامعنى چي يو سبب يې نسته ځكه په انتفاء دمسبب سره انتفاء دټولو اسبابو راځي په دې باندي دليل دا دئ ﴿لَوْكَانَ فِيْهِمَا اٰلِهَةٌ اِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا﴾: فساد مسبب دئ تعدد الهه سبب دئ فساد نسته دا دليل ددې دئ چي تعدد دالهه نسته عدم فساد دلالت كوي پر عدم تعدد دالهه باندي الله جل جلاله ددې خوا دليل نه وايي الله جل جلاله دهغه خوا ځخه دليل وايي يعنى فساد نسته دا دليل ددي دئ چي تعدد دالهه نسته علامه تفتازانى وايي ابن حاجب دومره زبردسته

دليل وويلي چي قرينه ده چي تول علماء دي پر دي قاعده باندي اجماع وکړی چي لَوْ امتناع داول کوي دوجي دا متناع دثانی مو ږ علامه تفتازانی ته وويله چي ته څه وايي علامه تفتازانی وايي ابن حاجب نه پوهيږي علامه تفتازنی وايي دلته دوی خبري دي ابن حاجب چي کوم دلائل ويلي دي هغه پر يوه خبره باندي مو ږ جمهور چي کومه خبره کوو دابله خبره ده لهذا مو ږ جمهور چي کمه خبره کوو په دې باندي ابن حاجب نه دئ پوه که چيري ابن حاجب زموږ په خبره پوه سو نو ابن حاجب به ووايي چي زه هم صحيح يم تاسو هم صحيح ياست مثلا دا نسته دليل ځکه دا نسته که خبره په جدل او مناظره کي شروع وه بيا موږ دا منو چي په انتفاء دمسبب انتفاء دسبب راځي اول ملزوم اوسبب دئ دوهم لازم او مسبب دئ لهذا په انتفاء دلازم او مسبب سره اتفاء دملزوم او سبب راځي په انتفاء دملزوم او سبب سره انتفاء دلازم اومسبب نه راځي لهذا که خبره په دلائلو کي سي باقاعده ملايان بحث سره شروع کړي نو بيا قاعده داغه ده چي لَوْ لامتناع الاول لامتناع الثانی اول نسته ځکه ثانی نسته ليکن اهل العرف اهل اللغة والا دسبب او مسبب څخه خبره نه کوي لهذا اهل العرف اهل اللغة والا وايي لَوْ امتناع دثانی کوي دوجي دامتناع داول مثال قوله تعالی﴿ لَوْ شَاءَ اللّٰهُ لَهَدٰكُم﴾ که الله تعالی وغوارِي خامخا به تاسو ته هدايت وکړي هدايت نسته ځکه دخدای پاک مشيت نسته گوره دلته انتفاء دثانی راغله دوجي دانتفاء داول مع القطع بانتفاء الشرط دابه يقينی وي چي شرط نسته که ته وايي چي جزاء هم منتفی وي نو ته ولی په جزاء قول نه کوي نو ته ورته ووايه زه دلته يو نکته وينم حضرت صُهَيْب رضي الله عنه دروم ؤ ډير صالح سړي ؤ دنبي عليه السلام مقوله ده که دعمر رضي عنه مقوله ده په دا دوارو کي ديوه مقوله ده صهيب رضي الله عنه يو ځای تيرسو نو وې ويل ده نِعْمَ الْمَرْءُ صهيب ډير ښه سړي دئ لَوْلَمْ يَخِفِ اللّٰهَ لَمْ يَعْصِ که چيري دخداي څخه نه بيريدای نو صهيب به گناه نه وای کړي اوس خو دخدای څخه بيريږي نو په طريقه اولی سره گناه نه کوی لَوْ لَم يخف الله لَمْ يعصِ نفی چي پر نفی داخلي سي نو اثبات فائده کوي دلَوْ مابعد دواړه نفی دي اَیْ لَمْ يخف الله لم

یعص بیا چي لَوْ راغلی دواړه یې نفی کړه یعنی لَوْ راولاړ سو دلم یخف لَمْ یې هم وخوړي دلَمْ یعص لَمْ یې هم وخوړي پاته دا سو نعم المرء صهیب صهیب ډیر شه سړي دئ یخف الله یعص دخدای څخه هم بیریږی ګناه هم کوي نو دصُهَیْب بنه سړي ثُوْب په کوم ځای کي دئ لهذا قزوینی څکه وایي مع القطع بانتفاء الشرط دابه یقینی وي چی شرط نسته په جزاء کي نفی ضروري نه دئ لهذا لَوْ به راولاړ سي دلَمْ یَخِفِ اللهَ. لَمْ به ووهی، دلم یعصِ په لم به کار ونه لري نو دامعنی یَخِفِ الله لَم یَعْصِ دخدای څخه بیریږي ګناه نه کوي دخبري خلاصه داده دشرط نفی یقینی دي دجزاء نفی ضروردي نه دئ خو په اکثرو ځایو کي دواړه نفی کوي:

## یو نوي یم سبق فیلزم عدم الثبوت

(فیلزم عدم الثبوت والمضي فی جملیتها) په لَوْ کي دا قانون دئ چي دده سره ماضیت لازم دئ خامخا به اول او دویم ماضی وي.

لَوْكَانَ فِیْهِمَا اٰلِهَةٌ اِلَّا اللهُ لَفَسَدَتَا دلته شرط چي کَان دئ داماضی ده جزاء چي لَفَسَدَتَا ده داهم ماضی ده که هر وخت لَو پر مضارع داخل سونو خلاف دئ دمقتضي ظاهر الحال ضرور به مُتَخَیَّل دیو نکتې وي الله جل جلاله صحابه ته وایي (لَوْ یُطِیْعُکُمْ فِیْ کَثِیْرٍ مِنَ الْاَمْرِ لَعَنِتُّمْ لقصد استمرار الفعل فیما مضي وقتا فوقتا) که چیري نبی علیه السلام په ډیرو کارو کي ستا سو اطاعت کړي وای نو تاسو به واقع وای په مشقت کي په هلاکت کي اوس تاسو په مشقت کي او هلاکت کي نه یاست ولیدلي داله دي وجي چي نبي علیه السلام باربار اطاعت نه دئ کړي ستاسو الله جل جلاله لَوْ داخل کړي پر مضارع باندي دالله جل جلاله په دخول دلو پر مضارع باندي څه نکته ده نو تاسو سم ورته متوجه سي په مضارع کي استمرار تجددي سته په ماضی کي استمرار تجددي نسته طالبانو لَوْ شرط

او جزاء دواړه نفی کوي لَوْ راولاړ سو لَعَنِتُّمْ یې هم نفی کړي اطاعت یې هم نفی کړي نو دامعنی تاسو په مشقت کي نه یاست ولیدلي او نبي علیه السلام په زندګي تاسو اطاعت نه دي کړي او حال دادي چي الله جل جلاله نبي علیه السلام ته حکم کړي دئ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ ته به ددوي سره مشوره کوي په کارو کي لهذا لو راولاړ سو اطاعت یې هم ووهي لَعَنِتُّمْ یې هم ووهي نو دا معنی چي نبي ستاسو اطاعت قطعا نه کوي او دا خلاف دواقع دئ ځکه نبي علیه السلام ډیر ځایونه دخپلو اصحابو خبره یې منلې ده که چیري موږ دلته ماضی را وړي واي نو بیا دا معنی چي نبي علیه السلام کر سره اطاعت نه دئ کړي لیکن الله پاک مضارع راوړه ددې دپاره چي مضارع کي استمرار دئ نو ګویا کي مضارع مقید بقید سوه چي استمرار دئ او قانون دادئ چي نفی راسي مقید نه وهي قید وهي لهذا لو نفس اطاعت نه دي وهلی لو استمرار اطاعت وهلی دئ که چیري موږ ماضی استعمال کړي واي نو نفس اطاعت به یې وهلي واي لهذا موږ چي مضارع راوړه نو نفس ماده به پاته سي استمرار به ووهي دخبري خلاصه داده زه دی نه وایم چي نبي ستاسو اطاعت نه دي کړي نبي ستاسو اطاعت کړي دئ بیا به هم ستاسو اطاعت وکړي لکن که نبی ستاسو اطاعت همیشه همیشه کولای نو تاسو به په مشقت کی واقع واي ګوره دالله سبحانه استمرار وهل مقصود دي نه نفس اطاعت علامه تفتازانی وایي دلته بله طریقه هم جوړیږي ګوره یو صورت داؤ چي مضارع مقید کړه په استمرار باندي بیا لو پر داخل کړه نو به استمرار ووهي بله طریقه داده لَوْ نفی دئ نفی را واخله دمادې سره یې ولګوه بیا استمرار پر توئ کړه نو دامعنی که چیري استمرار دعدم اطاعت واي نو تاسو به په مشقت کي واقع واي یعنی که دالله رسول همیشه ستاسو ده نه منلای نه منلای نه منلای بیا به هم تاسو واقع واي په مشقت کی دا خو محبوب رسول دئ کله ستاسو ده منی کله یې نه منی نو تاسو په مشقت کی نه یاست واقع **لو یطیعکم فی کثیر من الامر** که بار: بار ،بار اطاعت کولای ستاسو نبي علیه السلام په ډیرو کارو کي **لَعَنِتُّمْ** تاسو به په مشقت کي واقع وای لقصد **استمرار الفعل لَوْ** پر مضارع داخلوي مقصد یې دادې چي استمرار دفعل بنکاره کړي فیما ماضی وقتا فوقتا :

قاعده: كه ته داغواړي چي دا كار مطلقا په پخوا زمانه كي سوى دئ نو ماضى ذكر كړه كه ته داغواړي چي داكار په پخوازمانه كي بار بار سوي دئ نو مضارع ذكركړه (كما في قوله تعالى ﴿اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ﴾ منافقينو به ويل ﴿إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُونَ﴾ بيشكه موږ ټوكي كوونكي يو پر مؤمنانو اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ) الله سزا وركوي دټوكو ودوي ته (منافقينو ته) الله پاک ددري شخه پاک دئ دي ته صنعت مشاكله وايي صنعت مشاكله دې ته وايي ده يو كار كړي دې ته هم يو كار كوي ليكن داكار دهغه په مقابل كي كوي ستا كار برحق دئ دده كار بر ناحق دئ يعنى باطل دئ چون كي مقابله ده ددغه مقابلي دوجي ته ددواړو كار وته يو نوم وركړي ودغه ته صنعت مشاكله وايي چي په حقيقت كي يې فرق وي الله پاک وايي ﴿وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ بِهِ﴾ كه ته بدله اخلى نو داسي بدله واخله چي ده شومره درسره كړي دئ گوره الله پاک دده كار او ستا كار دواړه په يوه نامه ياد كړي دي بدله اخيستل بدكار نه دئ لهذا منافقينو استهزاء كوله مسخرې يې كولې الله پاک داستهزاء شخه پاک دئ دليل په حديث كي راځى يو سړي به ټوله زندگي په ناجوړي كي تير كړي وي مگر صبر به يې كړي وي چي شه وخت د الله حضور ته پش سي الله په غرونه غرونه نيكي وركړي چي ولاړ سه جنت ته دي به سوچ ووهي چي ما خو لمونځ نسو كولاى دادونه نيكي دكومى خوا دي نو وايى دئ وخاندي چي الله ته زما سره ټوكي كوى نو الله به ورته ووايى دا نيكئ واخله ته ناجوړي وې په دغه وخت كي به دغه بنده وژاړي چي كاشكي يو منټ جوړ نه واي هميشه ناجوړه واى لهذا الله مسخره كوونكي ذات نه دئ اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ) الله په منافقينو باندي بار بار استهزاء كوي يعنى سزا وركوي (ونحو وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ) په ترى كي يوه هغه قاعده ده چي هر مخاطب ور شخه مراد دئ هر مخاطب به دا وينى إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ هغه وخت چي دوي به ولاړ وي واور ته دوى به واور ته داخليږي ترى، نبي عليه السلام او هر مخاطب به دا وينى طالبانو داكار راروان دئ نو ځاى دمضارع دئ لهذا ترى په خپل محل كي سو ليكن لو ته چي وگوري نو دلو مدخول ماضى وي دلته مضارع ده نو بى محله سو خلاف دمقتض ظاهر الحال سو خلاف دمقتضى ظاهر الحال ديو نكتې دپاره وي هغه نكته داده ځاى دماضى

دئ لیکن الله وایي زه دقاعدو پابنده نه یمه زه هغه ذات یمه چي زما خبره سل په سل کي یقیني ده دغلطي هیڅ احتمال پکښی نسته اوس که تعبیر په ماضی کوي که په مضارع کوي هیڅ فرق نه کوي دخبري خلاصه داده ځای دماضی دئ زه تعبیر په مضارع کومه لکن الله وایي زه هغه ذات یمه چي یو وار ما خبره وکړه بیا به خامخا ضرور کیږي بیا که تعبیر په ماضی وي که تعبیر په مضارع وي لهذا الله وایي زما خبري ته ټول کارونه علی السویه دي (لتزیله منزلة الماضی)) دلته مضارع نازله ده په منزله دماضی (لصدوره عمن) ځکه دا کلام دهغه ذات څخه صادر دئ (لاخلاف فی اخبارہ) چي هیڅ خلاف نسته دده په خبر کي.

## دوه نویم سبق کما عدل فی قوله تعالی رُبَّما

(کما عدل فی قوله تعالی رُبَمَا یَوَدُّ الَّذِیْنَ کَفَرُوا) لوی لوی نحاة وایي هر وخت که فعل واقع ؤ وروسته تر رُبَّ المکفوفة بما یعنی هغه رُبَّ چي ما کافه پر داخله وي نو بیا واجب دادئ چي تر رُبَّمَا وروسته به ماضی وي مضارع به نه وي ځکه رُبَّ المکفوفة راځي دتقلیل دپاره تقلیل ظاهره کیږی په ماضی کي اوس دلته چي مضارع واقع ده وروسته تر رُبَمَا نو داخلاف دمقتضي ظاهر الحال دئ خلاف دمقتضي ظاهر الحال دځان سره نکته راوړي په رُبَمَا یَوَدُّ کی دوی خبري کوو یوه خبره دماضی څخه عدول ومضارع ته څرنګه راغلی دوهمه خبره رُبَّ دتقلیل دپاره راځي دلته تقلیل څنګه متصور کیږي اوله خبره دیَوَدُّ کار په راروان حالت کي کیږي ځکه کافر چي داخوښوي کاشکي زه مسلمان وای نو داکار په راروان وخت کي کیږي لهذا یَوَدُّ مضارع پرخپل ځای مستعمله ده نو کلام دمقتضي ظاهر الحال مطابق دئ لیکن چي دغه ځای ته وګوري چي درُبَّما مدخول ماضی وي که څه هم داستقبال معنی ورکوی لهذا چي دغه ځای ته وګوري چي درُبَمَا مدخول ماضی نو بیا رُبَمَا یَوَدُّ خلاف دمقتضی ظاهر الحال دئ خلاف دمقتضی ظاهر الحال نکته غواړي دلته نکته څه ده په لَوْ تَرٰی کي چي کمه نکته وه په رُبَمَا یَوَدُّ کي هم هغه نکته ده لهذا رُبَمَا یَوَدُّ دا

کلام ددي ذات څخه صادر دئ چي هغه ته ماضی مضارع فرق نه ورکوي ځکه دا کلام ددې ذات څخه صادر دئ چي دده په خبره کي هيڅ خلاف نه راځي دوهم خبره په رُبَّمَا يَوَدُّ کي رُبَّ په معنی دتقليل ده او يَوَدُّ داستمرار دتجددي دپاره ده دتکثير دپاره ده لهذا رُبَّمَا او يَوَدُّ څرنګه سره جمعه سوي دي او بل دا چي کافر دا ډير خوښوي چي کاشکي زه مسلمان واي دلته به دتقليل معنی څرنګه صحيح سي درُبَّمَا دخول به څرنګه صحيح سي :

علامه تفتازانی رحمه الله دوه جوابه ورکړي دي اول رُبَّ پر خپل حقيقت پريږده بيا يې ترجمه وکړه دوهم په رُبَّ کي مجاز وکړه بيا يې ترجمه وکړه اول رُبَّ چي پر خپل حقيقت پاته سي ماته ګوره اصل کي الله جل جلا له په ﴿ رُبَّمَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ كَانُوْا مُسْلِمِيْنَ﴾ کي دا ښکاره کوي چي دا خواهشت کول چي کاشکي زه پلانکي شی وای دا هغه وخت سري کوي چي سړي يو څه وسا کښيني نو بيا خواهشات کوي که سړه په منډو او وهلو کي وي او دبيهوښي حالت کي وي نو دی سړي ته دا موکه نه پيدا کيږي چي دي تمنی وکړي ځکه تمنی هغه وخت پيدا کيږي چي سړي دتکليف څخه په امن وي دمصيبت څخه په امن وي الله پاک په رُبّ کي ښکاره کوي چي کافر ولو که څه هم ډر ددې تمنی لري چي کاشکي زه مسلمان وای خو ليکن پر ده باندي به حالات دومره سخت وي ډبول تکول به وی ده ته به دومره موکه نه پيدا کيږي چي دی په هغه کي تمنی او خواهشت وکړي کله کله به افاقة ما ورته پيدا کيږي په هغه کي به تمنی کوی نو الله پاک دکافر حالت وحشي طرف ته اشاره کوي چي دکافر حالت به ډير خراب وي ده ته به دومره وخت نه پيدا کيږی چی دي تمنی پکښي وکړي کله کله به افاقة ما ورته پيدا کيږي دتقليل معنی دارکم کيږی :

دوهم جواب علامه تفتازانی وايي مجاز وکړه ذکر دکلمه تقليليه اراده دکلمه تکثيريه دتکثير او دتقليل په مينځ کي علاقه دتضاد ده په کم چا کي چي علاقه تضاد پيدا سي هغه علاقه دمجاز ده لهذا ذکر تقليل اراده دتکثير کلمه درُبَّمَا دتقليل دپاره

مستعلمیږي لیکن موږ مجاز کوو دتکثیر معنی اخلو اوس دامعنی ډیر کرته ډیر وار به خالی دا تمنی کوي چي کاشکي زه مسلمان وای کما عدل لکه عدول چي سوي دئ دماضی څخه ومضارع ته په قول دالله تعالی کي ﴿رُبَمَا یَوَدُّ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا﴾ علامه تفتازانی ډیر زبردسته قاعده بیانوي هغه دا که دوَدَّ یَوَدُّ وروسته لَوْ راغلی نو په دي لَوْ کي دوه قوله دي یو قول دادئ چي لَوْ تمنی شرطي دئ بل قول دادئ چي لَوْ تمنی مصدري دئ که لَوْ تمنی مصدري سي بیا به لَوْ خپل مدخول په تاویل دمصدر واړه وي دا به مفعول سي دوَدَّ یَوَدُّ دپاره تقدیر دعبارت کونهم مسلمین که لَوْ تمنی شرطي سي مفعول دیوَدُّ محذوف دئ څکه لو کانو مسلمین دلالت وربانديکوي تقدیر كَوْنَهُمْ مُسْلِمِيْنَ لَوْ كَانُوْا مُسْلِمِيْنَ نجوا من العذاب ( اولا ستحضار الصورة کما قال الله تعالی فَتُثِيْرُ سَحَابًا استحضارا لتلک الصورة البدیعة الدالة علی القدرة الباهرة ) په لو تری او په رُبما یَود کي یوه دا نکته وه چي دا کلام ددا سي ذات څخه صادر دئ چي هغه دصیغو پابند نه دئ بله نکته داده چي زه دلته استحضار دصورت کومه استحضار دصورت په ماضی نه کیږي استحضار دصورت په مضارع کیږی څکه په مضارع کي دحال معنی ده استحضار دصورت مخکي تیر سوي هم دئ کما قال الله تعالی فَتُثِيْرُ سَحَابًا الله هغه ذات دئ چي بادونه را استوي فَتُثِيْرُ سَحَابًا باد بیا وریځي را پورته کوي فَتُثِيْرُ مضارع ده هر وخت که تا استحضار دصورت ومخاطب ته فی الحال وړ پیښوي نو هغه به نادر وي غریب به وي استحضارا لتلک الصورة البدیعة الدالة علی القدرة الباهرة ددې وجي چي استحضار ددغه صورت وسي داسي صورت چي بدیع دئ دال دئ پر مکمل قدرت باندي هوا او ریځ پورته کول دا واقع بدیع او نادر دي لیکن الله پاک اشاره کوي وخپل قدرت کامله ته څکه الله پاک په ایات کي یو ځای مضارع راوړي نو رځایونه یې ماضی را وړي

## دورنویم سبق واماتنکیره

(واماتنکیره فلارادة عدم الحصر والعهد کقولک زید کاتب وعمرو شاعر)

مسند نکره راوړل دادديوجي چي مااراده دقصر نه ده کړي اراده مي دمعهود نه ده کړی داسي حصر او عهد چي تعریف پر دواړو باندي دال دئ مثال زید کاتب دلته ما مسند نکره راوړي ځکه زما خاص کاتب مقصود نه دئ او نه زما مقصود کتابت بندول دي په زید کي لهذا دواړه زما مقصود نه دي ځکه ما مسند نکره را وړي بل وعمر شاعر دلته زما مقصود دشاعریت خبر ورکول دي زما مقصد قصر او معهودیت نه دي ځکه ما مسند نکره راوړي (او للتفخیم نحو هُدًى لِلْمُتَّقِيْنَ) مسند نکره راوړمه مقصد زما تعظیم دئ او تعظیم په تنوین سره راځي که چیري زه مسند معرفه کړمه نو بیا تنوین وړي او زما مقصد تعظیم فائده کول دي مثال هدًا للمتقین دا کتاب سرترپایه هدایت دئ دمتقینو دپاره ډیر غټ هدایت دئ :

هدًى یا خبر دئ دمبتدا محذوف دپاره یا خبر دئ دذالک الکتاب دپاره (او للتحقیر) کله به مسند نکره وي دپاره دتحقیر مثال ما زید شیئا زید هیڅ شي نه دئ (واما تخصیصه بالاضافة اوا لوصف فلکون الفائدة اتم) تخصیص تقلیل دشرکاء ته وايي تخصیص دمسند په اضافت سره مثال زید غلام رجل یا تخصیص دمسند په وصف سره مثال زیدٌ رجلٌ عالمٌ فلکون الفائدة اتم تخصیص دمسند په اضافت سره یا په صفت سره دادديدپاره چي تاته فائده تامه درکړمه (واماترکه فظاهر مما سبق) ترک دتخصیص دمسند باالاضافة والوصف فظاهر مماسبق دا ښکاره ده دمما سبق څخه یعنی زما مقصد تاته فائده تامه درکول نه دي (واماتعریفه فلافادة السامع حکما علی امر معلوم له باحدی طرق التعریف باخر مثله اولازم حکم کذالک نحو زید اخوک وعمرو المنطلق باعتبار تعریف العهد والجنس وعکسهما) تعریف دمسند فلافادة

**السامع حکما علی امر معلوم اولازم حکم کذالک** داددې دپاره چي سامع ته فائده ورکړي ديو حکم پر يو امر باندي داسې امر چی معلوم دئ وسامع ته باحد طرق التعريف په يو دطرقو دتعريف يعنی په وخت کي دتعريف دمسند تعريف دمسند اليه واجب دئ ځکه په کلام کي دعربو کي دانسته چي مسند اليه نکره وي مسند معرفه وي **في الجملة الخبرية بخلاف الانشايية نحو من ابوک باخر مثله** په بل امر باندي داسي امر چی دده مثل وی په دې کي چي دادي سامع ته معلومه سي په يو دطرقو دتعريف بيا برابره خبره ده دواړه په تعريف کي متحد وي مثال الراکب هو المنطلق دلته دواړه معرفه دي په الف اللام سره يادواړه په تعريف کي مختلف وي مثال زيد هو المنطلق دلته يو معرفه دي په علميت سره بل معرفه دئ په الف اللام سره او لازم حکم کذالک مراد ددې څخه لازم دفائدة الخبر دئ فائدة الخبر او لازم دفائدة الخبر ددې تحقيق په احوال داسناد الخبری کي تير سو زيد اخوک زيد ستا ورور دئ که خبر نه يې خبر سه او که خبر يې نو په دې خبر سه چي زه هم خبر يم وعمرو المنطلق باعتبار تعريف العهد والجنس وعکسها

## څلورنويم سبق

(**والثاني**) الف اللام جنسي الف اللام جنسي که پر خبر داخل سو خبر به حصر او قصر وي په مبتداء کي قصر پر دوه قسمه دئ اول قصر تحقيقا دوهم قصر مبالغة او ادعاءً اول قصر تحقيقا دې ته وايی چي په نفس الامر او په واقع کي خبر حصر او قصر وي په مبتداء کي مثال زيدٌ الاميرُ په الامير کي الف لام جنسي دئ الف اللام جنسي امارت حصر کړي په زيد کی خو امارت په نفس الامر او په واقع کي حصر دئ په زيد کي زيد امير دئ نه بل څوک قصر مبالغة دې ته واي چي خبر حصر نه وي په مبتداء کي ته يې خبر حصر قصر کړي په مبتداء کي مثال عمرٌو الشجاع دلته شجاعة حصر نه دئ په عمرو کی شجاعة په بکر او خالد کي هم سته ليکن تا شجاعة په بکر او خالد کي کلا شجاعة کړي تا شجاعة خاص کړي تر عمرو پوري علامه تفتازانی پرمخ وايی که په مبتداء الف اللام جنسي داخل سو مبتداء به حصر سي په خبر کي عام تر دې خبر معرفه وی که نکره

وي مثال الحمدُ للهِ نو خلاصه داده الف اللام جنسي كه دمسند په خوا کی وي كه دمسند اليه په خوا كي وي دقصر فائده كوي علامه تفتازانی پر مخ وایی مسند کله مقيد بقيد سي مثال کله به مقيد په حال سره وي کله به مقيد په ظرف سره وي کله به مقيد په وصف سره وي مسند په دې صورتو كي بيا هم دقصر فائده كوي مثال وهُوَ الوَاهِبُ اَلف قِنطَارٍ هغه سړي هبه كوونكي دئ ليكن هبه كوونكي نور خلک هم سته دلته الواهب قصر دئ په هُوَ كي دالف قنطار په واسطه نور خلک زر روپۍ هبه كوونكي نسته (والثانی قد يفيد قصر الجنس علی شئ) الف اللام جنسي كله كله فائده كوي قصر الجنس پر شئ (تحقيقاً نحو زيد الامير) او مبالغة (لكماله فيه) دلكماله ضمير جنس ته راجع دئ دفيه ضمير شي ته راجع دئ ترجمه لكماله فيه له وجي دكمال الجنس فی الشئ يعنی جنسن كامل دئ په شئ كي يا دكماله ضمير شي ته راجع دئ دفيه ضمير جنس ته راجع دئ ترجمه لكماله فيه شي كامل دئ په جنس كي نحو (عمرٌو الشجاعُ) علامه تفتازانی يو نكته پورته كړي هغه نكته داده وقد يفيد) ددې مفهوم مخالف داده الف اللام جنسي كله كله قصر نه فائده كوي دا خبره بلكل صحيح ده الف اللام جنسي كله كله قصر نه فائده كوي علامه تفتازانی ددې دپاره يو شعر ويلي (اذا اقْبحَ البُكَاءُ عَلَى القَتِيْلِ رَأَيْتُ بُكَائَکَ الحَسَنَ الجَمِيْلا) سړي غم څرنگند وي پر خپل ورور ژړا قبيح ده پر مطلق مړي زما ژړا پر تا زه دا بكاء جميله بولم رايت بكائک ای رايت بكايی عليک علامه تفتازانی وايی كه سړي تدبر وكړي سوچ وكړي دا سړي قصر نه كوي رايت بكائک الحسن الجميل رايتُ افعال قلوب بكائک يو مفعول الحسن الجميل دوهم مفعول افعال قلوب پر مبتداء او خبر داخليږي بكائک مبتداء الحسن خبر علامه تفتازانی وايی و ظاهري عبارت ته چي وگوري قصر معلوميږي ليكن په تدبر سره قصر نسته ولی ځكه قصر هغه وخت وي چي ستا مخاطب قائل داشتراک وي يا دقلب وي دلته خو يو شي نسته وقيل الاسم الخ مبتداء او خبر كه دواړه معرفه وه هر يو صلاحيت دابتداء لري ليكن امام رازي وايی داسي نه ده بلكي كه كوم يو دال وُ پر ذات هغه به مبتداء وي كه كوم يو دال پروصف وُ هغه به خبر وي بيا عام تر دې كه مقدم وي كه مؤخر وي مثال زيد

المنطلق المنطلق زيد په دواړو صورتو کي زيد مبتداء ده المنطلق خبر دئ ولى ځکه په مسند کي دحمل او دپاره معنى راځي په مسند کي دوصف بو ي ضرورى دئ په مسند اليه کي دذات بوى ضروردي دئ که ته المنطلق مبتداء کړي نو دذات بوى پکښى نسته که ته زيد خبر کړي دوصف بوى پکښي نسته علامه قزوينى په المنطلق کي دذات معنى پيدا کوي په زيد کي دوصف معنى پيدا کوي اوس شرائط پوره سوه لهذا اوس چي هريو مقدم سو هغه مبتداء ده دذات معنى په المنطلق کي دارکم جوړوي دالمنطلق څخه هغه سړي مراد دئ چي وصف انطلاق لري يعنى منطلق هغه سړي چي متصف وي په انطلاق

ګوره سړي ذات دئ نو دذات معنى پکښى پيدا سوه په زيد کي دوصف معنى المنطلق هغه سړي چي وصف دانطلاق لري هغه چي دئ دزيد دنوم خاوند دئ دا خاوند وصف دئ **قيل**
**الاسم متعين للابتداء لدلالته على الذات والصفة للخبرية لدلالتها على امر نسبي (ورد)**
رد کړه سوي ده **(بأن المعنى)** پر دارکم چي معنى داده **(الشخص الذى له الصفة)** هغه شخص چي ده لره صفت دانطلاق وي **(صاحب الاسم)** دلته زيد په صاحب الاسم واړول سو **(واما كونه جملة فللتقوى)** مسند به جمله وي دپاره دتقوى مثال زيد قام **(او لكونه سببيا)** يا به سببي وي مثال زيد ابوه قائم **(كمامر)** **(واسميتها)** مسند به جمله اسميه وي دپاره ددوام او استمرار **(وفعليتها)** مسند به فعلية وي دپاره دتجدد **(وشرطيتها لمامر وظرفيتها لا ختصار الفعلية)** ځکه زيد فى الدار اخصر دئ تر زيد استقرفى الدار.

**قاعده:** دتقوى دحصول طريقه څه شي ده ۱-: يو دتقوي دحصول طريقه عند الجمهور ده بل دتقوى دحصول طريقه عند الشيخ ده دجمهور او سکاکى په نيز دتقوى دحصول طريقه داده چي تا زيد ذکر کړي زيد مسند اليه مبتداء ده بيا چي تا قام ذکر کړي زيد قام کش کړي ځکه زيد مسند اليه ده دمسند تقاضى کوى بيا په قام کي ضمير دئ هغه ضمير هُوَ دئ هُو قامَ کش کړي قام دوه واره کش سو نو داعين اسناد دئ تکرار د تقرير دئ تقوى ده دجمهور او سکاکى په نيز تقوي هغه وخت راځي چي فعل دوه واره کش سي فعل دوه واره هغه وخت کش کيږي چي دفعل اسناد دمبتداء وضمير ته وي دشيخ په نيز

دتقوی دحصول طریقه داده تا یو اسم ذکر کړي داسي اسم چي خالی وي دعامل لفظی څخه لکه زید دا اسم دا تقاضی کوي زه نه راځم مګر زما وروسته به یوه کلمه وي اسناد به یې ماته وي دلته اسناد اجمالا په دماغ کي راغلی دا اسناد توطية او تمهید دئ دبعد دذکر کیدو دپاره تا چي بیا تفصیلا ذکر کړي نو اسناد مکرر سو لهذا تقوی فائده کوي ثمره داختلاف په زَيْدٌ ضَرَبْتَهُ کي رایستل کیږي دجمهور په نیز په زَيْدٌ ضَرَبْتُهُ کي تقوی نسته ځکه زید فعل نه دئ کش کړي (تا) ضمير فعل کش کړ یعنی دلته دفعل اسناد دمبتداء ضمير نه دئ لهذا یو اسناد مکرر نه دئ نو تقوی نسته دلته دوه اسناده دئ یو وار دفعل اسناد وتاضمير ته دئ بیا ددواړو اسناد ومبتداء ته دئ دشیخ په نیز تقوی سته ځکه یو وار اجمالا اسناد دئ بل وار تفصیلا دي په زید فی الدار کي دري تراکیب دي ۱- یو ترکیب دفی الدار تعلق تر ثابت پوري ۲-: دوهم ترکیب دفی الدار تعلق تر ثَبَتَ پوري ۳-: بنه ترکیب دادئ چي د ثَبَتَ ضمير ته په ظرف کي استقرار ورکړي ضمير پکښي فرض کړي اول ترکیب شبه جمله: دوهم ترکیب فعلية دریم ترکیب ظرفية ځوک واي دفی الدار تعلق تر ثابت اولی دئ ځکه ثابت مفرد دئ اصل په خبر کي افراد دئ ځوک وایی دفی الدار تعلق ترثبتَ پوري اولی دئ ځکه ثَبَتَ فعل دئ فعل په عمل کي اصل دئ تر ثابت ځکه ثابت چي عمل کوي دتشبیه دوجي (**وظرفيتها لاختصار الفعلية**) مسند جملة ظرفية راوړل له وجي داختصاره دفعليته يعنى زید فی الدار مختصر دئ دزید ثَبَتَ فی الدار څخه (**اذ هي مقدرة بالفعل على الاصح**) ځکه دجملې ظرفی سره مقدر فعل وي بناء پر اصح قول علامه تفتازانی دقزوینې پر عبارت یو اعتراض کړي علامه تفتازانی وایی د(**هي**) ضمیر جملې ظرفی ته راجع دئ نو دامعنی دظرفی سره به فعل مقدر وي دا خبره غلط ده ځکه دظرف سره فعل اینبودل کیږي دظرفیت سره نه اینبودل کیږي ځکه ظرفیت دي ته وایی چي فعل ختم سي ضمیر په ده کښي فرض سي معتبر سي علامه تفتازانی وایی قزوینی لره اَصوب داوه چي ده داسي ویلي وای (**اذهو مقدرة الخ**) ځکه دظرف سره فعل مقدر وي علامه تفتازانی اصوب وویل ددې دا معنی چي (**اذهو**) ډیر بنه دئ (اذ هی) هم صحیح دئ پروانه لري او حال دادئ دا تاوان

پیښنوي محشی جواب ورکوي په ( اذ هي کي تاویل دئ هغه تاویل د ادئ دهي ضمیر کلمة الظرف ته راجع دئ نو دا معنی **( اذ هي مقدرة بالفعل )** دکلمة الظرف سره به فعل مقدر وي **( واما تاخیره فلان ذکر المسند الیه اهم کما مرّ )** مسند وروسته کول ځکه ذکر دمسند الیه اهم دئ لکه مخکي چي تیر سو **( واما تقدیمه فلتخصیصه بالمسند الیه )** مسند پر مسند الیه مقدم کول ددي دپاره چي مسند الیه قصر او حصر سي په مسند کي مثال **تَمِیْمِیٌّ انا** زه **تمیمي** یم دقیس دقبیلي نه یم یا خاص زه تمیمي یم نه بل څوک **( نحو لا فیها غَوْلٌ )** :

**قاعده:** که دلا لنفی الجنس خبر ظرف ؤ اوس که تا تعریض غوښتلي نو خبر مقدم کړه پر اسم که ستا تعریض مقصد نه وو، بیا اسم پر خپل ځای کښیږده خبر پر خپل ځای کښیږده په **لا فیها غَوْلٌ** کي دالله دوه مقصده دئ یو مقصد اخبار بل مقصد تعریض یو مقصد د الله دا دئ سردردي دجنة په شرابو کي نسته بل مقصد دالله تعریض هغه تعریض ددنیا پر شرابو دئ یعنی ددنیا په شرابو کي سر دردی سته هم دا وجه ده په لاریب فیه کي دالله یو مقصد دئ هغه مقصد اخبار دئ لاریب فیه په قران کي شک نسته دلته که دالله مقصود تعریض واي بیا به الله داسي ویلي واي لا فیه ریب په قران کي شک نسته لیکن په تورات انجیل زبورکي شک سته :

**قاعده:** تعریض څنګه پیدا کیږي تعریض دقصر څخه پیدا کیږي قصر دتقدیم څخه پیدا کیږي دا قاعده ده دکوم شي حق چي تاخیر وي ته یې مقدم کړي داقصر فائده کوي علامه تفتازانی وایی په لا فیها غولٌ کي قصر دئ دقصر دوي طریقي دئ یوه طریقه دادهٔ لا د**غَوْلٌ** سره متصل کړه عدم غول په فیها کي قصر کړه نو دا معنی سر نه در کول بند دئ قصر دئ **(فیها)** دجنة په شرابو کي ددنیا شرابو ته تجاوز نه دئ سوي دوهمه طریقه لا د ( فیها ) سره متصل کړه غَولٌ په عدم فیها کي قصر کړه نو دا معنیٰ سر در دي قصر دئ په هغه شرابو کي چي دجنت نه وي یعنی دسر درد ددنیا په شرابو کي سته مسند پر مسند

اليه مقدم کيږي ددې دپاره چي مسند اليه قصر سی په مسند کي په **لا فيها غولٌ** کي مسند ثابت دئ ای لا ثابت فيها **غولٌ**

پوښتنه: دلته مسند اليه په مسند کي قصر نه دئ مسند اليه دمسند په جز کي قصر دئ هغه جز دمسند د(فيها ضمير دئ ؟

جواب: عدم غول قصر دئ په دې کي چي شراب به متصف وي په خمور الاخرة او په خمور الجنة لهذا مسند اليه په پوره مسند کي قصر سو **( اي بخلاف خمور الدنيا)** ( **ولهذا لم يُقَدِّم الظرف فی لا ريب فيه )** **لئلا يفيد ثبوت الريب فی سائر کتب الله تعالیٰ** له دې وجي ظرف مقدم نه سو په لاريب فيه کي چي فائده ونه کړي ثبوت لره د ريب په باقي کتابو د الله کي:

سوال: کتاب الله دمطلق کتابو په مقابل کي دئ لهذا تا داسمانی کتابو په مقابل کي پيش کړي :

جواب: جنس له جنس سره ايښول کيږی دغير الجنس سره نه ايښول کيږی لهذا دقران سيالان اسمانی کتابونه دي زمنی کتابونه نه دي **( او التنبيه من اول الامر علی انه خبر لا نعت )** **مسند** پرمسند اليه مقدم کيږی دپاره دتنبيه ورکولو په اول الامر کي چي داخبر دئ صفت نه دئ ځکه صفت نه مقدم کيږي **( کقوله ع لَهُ هِمَمٌ لا مُنْتَهی لِکِبَارِهَا )** با چا لره ډير غټ غټ همتونه او ارادي سته چي هغه همت لره انتهي نسته **(همة الصغری اجل من الدهر)** کوچنی همت تر زمانی لوی دئ **( اوالتفاؤل )** مسند پرمسند اليه مقدم کيږي دپاره دنيک پالی نيولو او التشويق الی ذکر المسند اليه مسند مقدم کيږي هغه وخت چي مسند نادر وي او ډير اوږد وي په دې صورت کي سړي منتظر سي د مسند اليه وذکر کيدو ته نو دا مسند به اوقع فی النفس سي اَعز به سي په دماغ کي ښه قرار نيسيٌ **(کقوله شعر ثلثة تشرق الدنيا ببهجتها شمس الضحی وابو اسحاق والقمر )** دري شان

دنيا منوره كوي په خپل ښايستوب هغه درې شيان دادي ١-: شمس الضحي ٢-: وابو اسحق ٣-: والقمر **ثلثة تشرق الدنيا ببهجتها** مسند دئ شمس الضحى الخ مسند اليه دئ (**تنبيه كثير مما ذكر فى هذا الباب والذى قبله غير مختص بهما**) هغه احوال چي په مسند كي ذكر سول او هغه احوال چي په مسند اليه كي ذكر سول دا احوال تر مسند او مسند اليه پوري خاص نه دئ دا احوال دمسند او مسند اليه څخه ماسوا په غير كي هم راځي هغه لكه مفعول حال تميز مثلا تعريف او تنكير په مفعول كي هم راځي ذكر او حذف په مسند كي هم راځي بعض احوال تر مسند او مسند اليه پوري خاص دئ لكه ضمير فصل ضمير فصل به خامخا دمسند او مسنداليه په مينځ كي وي ضمير كله فى الحال مبتداء وي مثال أولئک هم المفلحون ضمير فصل به كله اصلا مبتداء وي اصلا دا معنى چي په اصل كي مبتداء وى فى الحال مفعول وي مثلا **اِنْ تَرَنِيْ اَنَا اَقَلَّ بل مثال وَاِنْ وَّجَدْتَ اَكْثَرَهُمْ لَفَاسِقِيْنَ** (**كثير مما ذكر فى هذا الباب**) ډير هغه احوال چي دمسند په باب كي ذكر سوه (**والذى قبله**) هغه احوال چي دمسند اليه په باب كي ذكر سوه (**غير مختص بهما**) تر مسند او مسند اليه پوري خاص نه دئ (**كالذكر والحذف وغيرهما**) (**والفطن الخ**) هغه څوک چي دده قواعد پخي ياذوي مشق او اجراء استعمال داقواعدو يى كړي وي دئ سړي چي دا احوال څنګه په مسند او مسند اليه كي جاري كول نو داسړي دا احوال په غير كي هم جاري كولاى سي هغه غير مفعول حال تميز مثال تا په مسند اليه كي الف اللام وويل الف اللام قسم دئ تا چي دالف اللام اجراء څنګه په مسند اليه كي كول ددې الف اللام اجراء په غير كي هم كولاى سي مثلا په مفعول كي همدارنګه اشارة راواخله مسند چي تر مسند اليه مقدم سي تخصيص فائده كوي هم دارنګه غير چي مقدم سي هم تخصيص فائده كوي (**والفطن**) ذكى (**اذا اتقن**) هغه وخت چي محكم كړي (**اعتبار ذالک**) اعتبار داحوالو (فيهما) په مسند او مسند اليه كي (لا يخفى عليه) پټه نه ده پر ده (اعتباره) اعتبا داحوالو (فى غيرهما) غير دمسند او مسند اليه څخه :

## احوال متعلقات الفعل

**پوښتنه:** تا چي څو مره احوال دمسند او مسند اليه په باب کي وويل دا احوال په هرچا کي چليدل لهذا قواعد تا ټول وويل بيا ددې باب دا ينبودلو څه ضرورت دئ جواب علامه تفتازانی واي بعض احوال تر متعلقات الفعل پوري خاص دئ مراد دمتعلقات الفعل څخه فاعل مفعول به مفعول فيه حال تميز سوال لکه څرنګه چي دوی تعلق لري تر فعل پوري فعل هم تعلق لري تر دوي پوري لهذا ته دوی ته **مُتَعَلِّقات** وايی فعل ته **متعلَّق** وايی ولی فعل دئ **متَعلَّق** سي احوال دئ **متعلَّقات** سي جواب هر يو **متعلِّق** او **متعلَّق** دئ خو ما **احوال متعلِّقات الفعل** ځکه وويل اسم فاعل چي دچا سره تعلق لري دا اسم فاعل زيات منګولي ښخ کوي نسبة واسم مفعول ته ځکه دوی زيات احتياج لري وفعل ته ځکه دوی مفرد دي به غير دفعل هيڅ معنی نه ورکوي فعل به غير ددوی معنی ورکوي لهذا له دې وجي فعل ته **مُتعلَّق** وايم دوي ته **متعلِّقات** وايم :

**(الفعل مع المفعول کالفعل مع الفاعل فی ان الغرض من ذکره معه افادة تلبُّسه به)**

فعل دمفعول سره ذکر کول هغه حيثية لري کوم حيثيت چي دفاعل سره لري په دي غرض کي چي فعل دمفعول او فاعل سره ذکر کول افادة دتلبس کي يعنی فعل چي څنګه دفاعل سره تعلق لري دمفعول سره هم دارنګه تعلق لري ليکن فعل دفاعل سره تعلق من حيث القيام لري دمفعول سره تعلق من حيث الوقوع لري **( لا لِفادة وقوعه مطلقاً)** فعل دمفعول او فاعل سره ذکر کول ددي دپاره نه چي دا افادة وکړي چي فعل په وجود کي راغلی فعل واقع سو مطلقا ولي که دا مقصد وای بيا به **اوجد الضرب ثَبَتَ الضرب حَقَّ الضرب** ويل سوي وای معلومه نه ده چي ضَرب دچا څخه صادر دئ پر چا واقع دئ ليکن دا مقصد نه دئ قاعده دمعانی وصول دادئ چي يو وار تا ته قاعده ذکر کړي بيا چي ددې قاعدې څخه هر ځای مخالفه ؤ نو خلاف به دمقتضي ظاهر الحال وي نکته به لری دمعانی نکتي شروع سوي **( فاذا لم يذکر معه )** فعل متعدي دئ فعل متعدي فاعل او

مفعول دواړه غواړي تا دفعل سره مفعول ذکر نه کړي (فالغرض) متکلم دفعل متعدي سره مفعول نه ذکر کوي متکلم مخاطب ته دا ښکاره کوي متکلم وایی زما دخبري چي کوم مقصد دئ کم کار ګیږ دئ هغه دمفعول سره هیڅ کار نه لري ولی دمتکلم مقصد دا دئ چي فعل دته ثابت دئ یا دا فعل نفی دئ دده څخه دیته تنزیل دمتعدي وایی په منزلة دلازمی .

فالغرض ان كان اثباته لفاعله او نفيه عنه مطلقاً) غرض دادئ که چیري اثبات دفعل خپل فاعل لره ؤ یا نفی دفعل دخپل فاعل څخه ؤ (نزل منزلة اللازم) نازل به سي متعدي په منزله دلازمي (ولم يقدر له مفعول) ده لره به مفعول مقدر نه وي (لان المقدر كالمذكور) ځکه مقدر داسي وي لکه مذکور :

## پنځه نویم سبق

قاعده فعل متعدي په منزلة دلازمي فعل متعدي په منزلة دلازمي دوه ښاخه لري ١-: کنایی ٢-: غیر کنایی ١-: کنایی دې ته وایی چي ته فعل او فاعل سره ذکر کړي مفعول ورڅخه حذف کړي دا فعل او فاعل چي مفعول یی حذف دئ دا کنایة کړه دهغه فعل څخه چي هغه تعلق نیسي تر مفعول مخصوص پوري ٢-: غیر کنایی دې ته وایی چي فعل او فاعل هغه فعل او فاعل چي مفعول یی حذف دئ دا کنایة نه وي دهیڅ چا څخه (وهو ضربان) هغه قسم چي متعدي نازل سوي وي په منزلة دلازمي هغه پر دوه قسمه دئ (لانه اما ان يجعل الفعل مطلقاً) تا فعل ذکر کړي مطلقا غیر داعتبار دعموم او خصوص (كناية عنه متعلقاً بمفعول مخصوص دلّت عليه قرينة) دا فعل تا کنایة کړي دهغه فعل څخه په داسي حال کي چي فعل به متعلق وي تر مفعول مخصوص داسي مفعول مخصوص چي پر هغه دلالت کوي یو قرینة (اولا) یا داسي نه وي (الثانی دویم :

پوښتنه: غیر کنایة تر کنایة ولی مقدم سو او حال دادئ چي کنایی مقدم دئ تر غیر کنایی؟

جواب علامه تفتازانی وایی غیر کنایة ډیره استعما لیږي تر کنایة غیر کنایة ته ډیر ضرورت دئ تر کنایة (الثاني كقوله تعالى قل هل يستوي الذين الخ قاعده هر ځای که کقوله تعالی راغلی کقوله به په مقول واړه وي ما بعد عبارت به بدل سي دلته قل هل يستوي الخ بدل دئ دکقوله تعالی څخه اي مقول تعالى قل هل الخ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الذين يَعْلَمُونَ والذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ته ورته ووایه اي پیغمبره هغه کسان چي پوهیږي او هغه کسان چي نه پوهیږي برابر دئ که ته ووائی په څه شي پوهیږي او په څه شي نه پوهیږي نو متکلم وایی دهغه سره ستا کار نسته یعنی پوه او ناپوه برابر دئ وایی په څه شي پوه او په څه شي نه پوه وایی زما دهغه سره غرض نسته يعلمون اولا يعلمون دواړه متعدي دئ مفعول یی حذف دئ نازل سوي دي په منزلة دلازمي او دهیڅ چا څخه کنایة نه دئ:

(السکاکی) سکاکی یو زبردسته قاعده بیان کړي ددې قاعدې څخه بله قاعده پیدا سوي دابله قاعده ددئ ځای سره لګیږي زه به هغه قاعده ذکر کړم چي دا بله قاعده ورڅخه پیدا سوی سکاکی هغه قاعده بیانوي مقام دوه قسمه دئ مقام خطابي مقام استدلالی مقام خطابي دي ته وایئ چي استاذ شارګردانو ته سبق وایی شاګردان داستاذ مخاطبین دي دا ستاذ سره یو څوک په معانی کي مناظره کوي دې ته مقام استدلالي وایی سکاکی وایی که چیري مقام خطابي وُ یعنی د جمعي په ورځ یو ملا تقریر کوي یا استاذ شاګردانو ته سبق وایی په دي صورت کی تا الف اللام استعمال کړی دا الف اللام به استغراقي جوړه وي بل الف اللام بهٔ نه وي لکه مثال نبي علیه السلام موږ ته وویل الْمُؤْمِنُ غِرٌّ كَرِيمٌ وَالْمُنَافِقُ خَبٌّ لَئِيمٌ نبي علیه السلام خبره صحابه وُ ته کول صحابه وُهغه خبره منله صحابه دنبي علیه السلام مخاطبین دئ په المؤمن کي الف اللام استغراقی دالمؤمن څخه مراد کل مؤمن دئ بعض مؤمن به نه اخلی ځکه که د المؤمن

څخه بعض واخسیتل سي نو دا نور خلګ احتجاج کوي ارتال کوي څکه دا نور خلګ
وایی دالمؤمن مفهوم پر موږ صادق لهذا چي بعض مؤمنان اخلي موږ ولی نه اخلی نو
ددې احتجاج او ارتال دختم کیدو وجه داده چي الف اللام استغراقي جوړکړه که الف
اللام استغراقي نسي نوترجیح داحد المتساوینو به راسي پر آخرکه تا الف اللام استغراقي
جوړ کړي دفع به دتحکم وسي تحکم دې ته وایی وچ په وچه فیصله کول بلا دلیله ددې
قاعدي څخه بله قاعده پیدا سوه هغه دا فعل متعدي ؤ مفعول يې غوښتلي لیکن تا
مفعول حذف کړی یو سړي وویل دائی مفعول دئ هغه بل ناره کړه ز مفعول یم ما څه
ګناه کړي بل ناره کړه زه مفعول یم ما څه ګناه کړي بل ناره کړه زه مفعول یم ماڅه ګناه
کړي هر کله چي مفعول حذف سو نو تعمیم به فائده کړي تعمیم دامعنی چي هر یو دا
احتمال لري چي ترده دي لاندي وي یعنی تر فعل به لاندي وي نو داقاعده ده هرڅای که
تنزیل دمتعدی په منزله دلازمي وسواو غیر کنایة ؤ نو په دغه صورت کي حذف
دمفعول تعمیم فائده کوي ددئ دپاره چي دفع دتحکم وسي ترجیع داحد المتساوینو
رانسی:

پوښتنه: مخکي تا وویل چي دمتکلم مقصد اثبات دفعل دخپل فاعل لره وي یانفی
دفعل خپل فاعل لره وی دمتکلم غرض تعمیم نه وي یعنی متکلم چي متعدی په منزله
دلازمی ګرځوی مقصد دمتکلم نفی دفعل یا اثبات دفعل خپل فاعل لره وي تعمیم او
تخصیص دده غرض نه وي لیکن ته اوس وایی دا تعمیم فائده کوي علامه تفتازانی وایي
یو شی مقصود وي بل شي ضمنا حاصل وي ددې دواړو فرق سته لهذا زما مقصود تعمیم
حاصلول نه دي زما مقصود دادئ چي دغه فعل ددغه فاعله څخه صادر دئ او د افعل
ددغه فاعله څخه صادر نه دئ ایا دادواړه برابر دي که نه پاته سو تعمیم او تعمیم ضمنی
دعبارت مقصد نه دئ **ثم اذاكان المقام خطابيا لا استدلاليا** ) په حذف مفعول کي چي
مقام خطابي سي استدلالی نسي ( **افاد ذالک مع التعميم دفعا للتحكم** ) دا مقام فائده
کوي هغه مقصد چي اثبات دفعل یا نفی دفعل خپل فاعل لره دي سره له تعمیمه ددې
دپاره چي دفع سي تحکم ( **والاول كقول البحتري في المعتز بالله همر شَجْوُ حُسَّادِهِ وَغَيْظ**

اعِدَاهٗ، اَنْ يَّرٰى مُبْصِرٌ وَيَسْمَعَ وَاعٍ) والاول اول قسم چي فعل مطلقا كنايه وي دهغه فعل څخه چي متعلق وي تر مفعول مخصوص پوري لكه په دې شعر كي بحتري شعر ويلي دمعتز بالله په مدحه كي دئ وايي دباچا چي كوم حسد كړئ او دده چي كوم دوښمنان دي دهغو دبربادي او تباهي دپاره بس دا كافي ده چي يو سړي پر دنيا سترګي نوري كړي او يو سړي پر دنيا غوږ خلاص كړي ان يرى فعل متعدي دي مصبرٌ فاعل دئ يسمع فعل متعدي دئ واع فاعل دئ ددواړو فعلو مفعول نسته دوړاه نازل دي په منزله دلازمي ليكن دواړه كنايه دي د مفعول مخصوص څخه هغه مفعول مخصوص دادئ يو سړي چي سترګه خلاصه كړي بل شي نه ويني سيوا دده دمحاسنو او چي غوږ خلاص كړي بل شي نه اوري سيوا دده داخبارو دخبري خلاص داده شاعر يرى او يسمع دواړه نازل كړه په منزله دلازمي غير دتعلق دمفعول مخصوص څخه وروسته شاعر دواړه كنايه كړه درُئِيَت او سماع څخه داسي رُئِيت او سماع چي دواړه متعلقين دي تر مفعول مخصوص پوري هغه مفعول مخصوص دادئ مُحَاسِنَهٗ واخبارهٗ :

علامه تفتازانی وايي ددې كنايي فائده څه شي ده ولی اول وار مفعول نه ذكر كوي داسي دئ ووايي ان يرى مبصرٌ محاسِنَهٗ ويسمع واع اخباره علامه تفتازانی وايي دا ډيره فائده وركوي چي فعل نازل سي په منزله دلازمي او بيا كنايه سي دمفعول مخصوص څخه كه چيري مفعول ذكر سي داسي وويل سي ان يرى مبصر محاسنه ويسمع واع اخباره نو ددي دا معنی ليدونكي دده محاسن ويني او ريدونكي دده اخبار اوروي هر كله چي مفعول حذف سو او بيا كنايه سو دمفعول مخصوص څخه اوس دامعنی ليدونكي بل شي نه ويني سيوا دده دمحاسنو اوريدونكي بل شي نه اوري سيوا دده داخبرو لهذا په كنايه كي ډير تعميم دئ شَجْوُ حُسَّادِه خواشني دده دحسد ګرو وغيظ اعداه او خواشنی دده ددوښمنانو ان يري مبصر ويسمع واع اى ان يكون ذورؤية وذوسمع) چي خاوند دروِيت وي او خاوند دسمعي وي (فيدرک بالبصر محاسنه وبالسمع اخباره الظاهرة الدالة على استحقاقه الامامة دون غيره) نو به درک كوي په سترګو سره دده دمحاسنو

او درک به کوي په غوږو سره دده داخبارو هغه اخبار چي ښکاره دال دی پر دې باندي چي دی مستحق دامامت دئ نه بل څوک (فلايجدوا الى منازعته سبيلا) هغه دده دوښمنان او حسد گر چي دوي تمنى کوي دامامت دابه پيدا نه کړي ومنازعي ته دده هيڅ لار (الا وجب التقدير) که چيري ستا مقصد خالی اثبات دفعل خپل فاعل لره نه ؤ يا ستا مقصد خالي نفی دفعل خپل فاعل لره نه وي بلکي ستا مقصد تعلق وؤ تر مفعول پوري داسي مفعول چي غير مذکور وي نو په دغه صورت کي تقدير دمفعول واجب دئ په حسب دقرائنو :

فعل متعدي دئ ستا په دې فعل کي وچ په وچه اثبات دفعل خپل فاعل لره او نفی دفعل خپل فاعل لره مقصد نه دئ بلکي ستا مقصد دادئ چی دا فعل تر مفعول مخصوص پوری تعلق هم لري لکه ضرب زيد عمرًوا ستا مقصد دا نه دئ چي خالی اثبات دضرب وکړي يا نفی دضرب وکړي ستا مقصد دادئ چي ته دا ښکاره کړي چي له زيد څخه صادر سوي او پر عمر واقع سوي دئ يعنی که ستا مقصد دفعل پر مفعول واقع کيدل وه اوس که ددې فعل سره مفعول ذکر ؤ خو جوبلي که مفعول په عبارت کي ذکر نه ؤ نو مقدر به وي بحسب القرائن فعل مفعول غواړي تا حذف کړي ولي علامه قزوينی ددئ ولي دپاره وجوهات بيانوي (ثم الحذف اما للبيان بعد الابهام) علامه قزوينی دحذف مفعول دپاره اغراض شروع کړه اول غرض دادئ دافعل دئ مفعول غواړي ما دعبارت څخه لري کړي زما مقصد دادئ چي زه په دې عبارت کي ابهام پيداکړم دده مابعد عبارت به بيان وکړي اوقانون دادئ ابهام بعد البيان اوقع فی النفس وي تر دئ چي داريک ذکر سي الله فرمايی﴿ فَلَوْ شَآءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ﴾ شاء يشاء،اراد يريد،حبّ يحب خامخا مفعول غواړي دلته دشاء مفعول تا حذف کړي ابهام دي جوړ کړي فَلَوْ شَاءَ که چيري الله غوښتل څه شي نو ابهام جوړ سو لَهَدَاكُمْ اجمعين ددې حذف شده مفعول بيرته بيان وکړي اوس په دې عبارت کي مفعول څوک دئ او بيان چا وکړي تقدير دعبارت دادئ فَلَوْ شاء هِدَايَتَكُمْ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ دلته هِدَايَتَكُمْ مفعول دئ دشاء لهداكم اجمعين بيان او

تفسير دئ د هدايتکم موږ اهل معانی والا ته وويل سمه قاعده په لاس راکړه چي هرځای داقاعده جاري سي

قاعده ١- شاء يشاء ٢- اراد يريد ٣- حب يحب دادری بابه که هر ځای ترلو لاندي راغله لو خامخا شرط او جزا غواړي په دي صورت کي دشاء يشاء اراد يريد حب يحب مفعول به حذف کړي ځکه جزاء دلالت ورباندي کوي ليکن ددې دپاره دوه شرائطه دي ١-: شرط دفعل تعلق به دمفعول سره غريب او نادر نه وي ٢- شرط جزاء به پر حذف مفعول دلالت هم کوي

## حذف المفعول

(**ثم الحذف اما لبيان بعد الابهام**) حذف بيان کوي وروسته دابهام (**كما في فعل المشية**) لکه دا په فعل دشاء يشاء کي يا په فعل د اراد يريد کي يا په فعل دحب يحب کي (**مالم يكن تعلقه به غريبا**) هغه وخت چي دفعل تعلق دمفعول سره غريب نه وي نحو **فَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ اجمعين لهداكم اجمعين** دلالت کوي پر **فَلَوْ شَاءَ هِدَايَتَكُمْ** دلته زموږ مقصود اثبات دمشية نفي دمشية نه دئ مقصود زموږ دمشية تعلق دئ تر هدايتکم که يو شرط نه ؤ هغه شرط تعلق به نادر نه وي که نادر ؤ بيا حذف دمفعول جائز نه دئ (بخلاف ع **وَلَوْ شِئْتُ ان ابكي دَمًا لَبَكَيْتُهُ**) دنري پرجدائي باندي دونه غمګينه سوم که ما غوښتلای چي دوينو اوښکي توی کړم **لبكيته** نو ما به دوينو اوښکي توی کړي وای دلته دشئتُ تعلق دان ابکي سره غريب دئ نادر دئ ځکه دلته مفعول حذف نه دئ (**واما قوله شعر فلم يبق مني الشوق غير تفكر فلوشئت ان ابكي بكيت تفكرا**) يو ملا ددې قاعدي مثال يی ورکړي وايی دفعل تعلق به دمفعول سره غريب نه وي که غريب ؤ بيا به ذکر دمفعول کوي حذف به نه کوي قزوينی ورته واي (**فليس منه**) غلط يې داسي نه ده دشاعر مقصد دادئ شاعر وايی دنري پر جدائي مي طبيعت دومره خراب سو چي په مغزو او دماغ کي مي اوښکي وچي سوي اوس مي ژړا ته زړه نه غواړي ځکه سترګه

اوښکي نه تویه وي که بیا هم ما وغښتل چي وژاړم نو ژړا به نه راځي خالی دتفکر ژړا به کوم یعنی دزړه او ددماغ ژړا به وکړم دسترګو او دخولې نه راځي (**فلم یبق منی غیر تفکري**)په ماکي شوق نه سو پاته سوا دتفکر (**فلو شئت**) که زه وغواړم (**ان ابکي**) چي وژارم (**بکیت تفکرا**) نو به زه دتفکر ژړا وکړم دلته محل داستشهاد فلو شئت ان ابکي دئ دا ملا وایی ان ابکي مفعول دئ دلو شئت مفعول ذکر ولی سو ځکه دشئت تعلق دان ابکي سره غریب دئ قزوینی ورته وویل فلیس منه د اددي قاعدي مثال نه دئ دشئت تعلق دان ابکي سره غریب نه دئ ځکه ان ابکی عام کار دئ یعنی دا بکاء حقیقي ده هغه ملا وایی دان ابکي څخه مراد بکاء تفکري ده بکاء تفکري نادر او غریبه ده نو دا معنی فلو شئت ان ابکي که زه وغواړم دتفکر ژړا بکیت تفکرانو زه به دتفکر ژړا وکړم لهذا دشئت تعلق دان ابکي سره غریب دئ قزوینی وایی دان ابکي څخه مراد بکاء حقیقي ده ځکه ذوق سلیم پر دئ دلالت کوي چي مراد دان ابکي څخه بکاء حقیقي ده سوال پرقزوینی دان ابکي څخه مراد بکاء حقیقي ده دشئت تعلق دان ابکي سره غریب نادر نه دئ نو بیا یې ولی نه حذف کوي حذف یی کړه جواب قزوینی وایی مورِ ددې قاعدې دپاره شرائط ویلي وه یو شرط دا و چي جزاء به پر مفعول دلالت کوي پر حذف مفعول دلته بکیت تفکرا دلالت نه کوي پر ان ابکي ځکه دان ابکي څخه مراد بکاء حقیقي ده دبکیت تفکری څخه مراد بکاء تفکرا ده (**فلیس منه** داددې قاعدې مثال نه دئ (**لان المراد بالاول البکاء الحقیقي**) ځکه مراد داول څخه بکاء حقیقي ده دحذف مفعول دپاره دوهم غرض که دفعل سره زه خپل مفعول ذکر کړم په اول الوهلة کي نو مخاطب به توهم وکړي دمتکلم دمراد دخلاف لهذا دمخاطب دتوهم دساتلو دپاره مفعول حذف کوم مثال په شعرکي شاعر وایی داسي خو اشنی داسي سختي داسي حالات را باندې راغلی چي هغه خو اشنی هغه سختي هغه حالات دسړي غوښه تر هډوکي پریکوي محل داستشهاد دادئ (**حَزَزْنَ اللحم الی العظم**) حززن پریکوي **اللحم** غوښه **الی العظم** ترهډوکي (حززن) فعل (اللهم) مفعول دلته دمتکلم چي شاعر دئ مراد یی دادئ چي داسي حال راباندې راغلی چي غوښه پري کوي تر هډوکی او س که متکلم مفعول ذکر کړي ته چي

پر مفعول راغلی دا توهم به وکړي چي داسي حالات راباندي راغلی چي غوښه پري کوی
لیکن دمتکلم مقصد دادئ چي داسي حالات راباندي راغلی چي غوښه پري کوي تر
هډوکي پوري ددې توهم دختم کیدو دپاره مفعول مي حذف کړي :

پوښتنه: که مفعول ذکر کړي ته چي پر مفعول راغلی تر الی العظم پوري لهذا خپله
معلومه سوه چي داسي حالات راباندي راغلی چي غوښه پرې کوي تر هډوکي پوري؟

جواب (ابتداءً) زه درته وایم چي ستا ذهن ابتداء اول وار ځي خلاف توهم المراد که تر
مفعول اخواته سوي بیا ستا توهم ختم کیږي اوس راسي عبارت ولګوو مفعول حذف
کیږي (امالدفع توهم ارادة غیر المراد ابتداء) ددې دپاره چي دفعه سي تو هم
دمخاطب اراده لره دغیر مراد ابتداء (کقوله شعر وکم ذدت عنی من تحامل حادث
وسورة ایام حززن الی العظم

قاعده: (کم) که استفهامي دئ که خبري دئ تمیز به لري ډیر کرته په تمیز باندي من
جاره زائده راځي دلته (تحامل حادث) تمیز دئ دکم څخه (من) زائده دئ:

قاعده: هر وخت که کم او دتمیز په مینځ کي فعل متعدي راغلی من به پر تمیز داخلوي
ددئ دپاره چي دا تمیز دئ مفعول نه دئ مثال (وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ) کم ذدت عنی لري
کړي مي له ځانه (من تحامل حادث) نوي ظلم وسورة) سختي (ایام دورځو (حززن)
غوښه پري کول (الی العظم تر هډوکي پوري (الَوْ ذکر اللحم) که چیري لحم ذکر سوي
واي (لربما توهم) دا وهم به سوی واي (قبل ذکر مابعده) تر الی العظم تر ذکر کیدو
مخته (ان الحز لم ینته) دا وهم به کیدی چي پري کیدل انتهي ته نه دئ رسیدلي (الی
العظم) تر هډوکي پوري .

دريم غرض: دريم غرض مثلا دا فعل د دا مفعول دئ دابل فعل دئ دا مفعول دئ يعنى دوه فعله دي دوه يى مفعوله دى ددوهم فعل مفعول ضمير دئ داول فعل مفعول ته راجع دئ كناية زه دا نه غوارم چي دوهم فعل دي داول فعل دمفعول پرضمير واقع سي ځكه ضمير كناية ده او حال دادئ چي زه كناية مفعول جوړيدل نه غوارم زه صراحة مفعول جوړيدل غوارم ددې بله طريقه نسته سوا ددې چي داول فعل مفعول حذف كړي اوس كه په دوهم فعل كي ضمير ورته راجع كړي اضمار قبل الذكر راځي اضمار قبل الذكر په فضله كي ناجائز دئ نو ته به ددوهم فعل سره اسم ظاهر مفعول راوړي او ته غواړي هم دا لهذا ته داول فعل ځخه مفعول حذف كړي دوهم فعل- به پر اسم ظاهر مفعول واقع كړي اوس راسي عبارت ته مفعول حذف كيږي **او اما لانه اريد ذكره ثانيا** له دي وجي چي ذكر دمفعول ثانيا مراد وي (**على وجه يتضمن ايقاع الفعل**) پر داسي ډول چي متضمن وي چي فعل واقع دي (**على صريح لفظه**) پر صريح لفظ نه پر ضمير (**ظاهرا لكمال العناية**) ( ددې دپاره چي ښكاره سي پوره قصده (**بوقوعه عليه**) چي فعل واقع دئ پر مفعول مثال (**كقوله شعر قد طلبنا فلم نجد لك فى السودد والمجد والمكارم مثلا**) په تحقيق سره ما طلب كړي ما پيدا نه كړي تا لره په سر داري كي په شرافة كي په ښو اخلاقو كي مثلا يو مثال دلته بله نكته هم جاري كيږي هغه نكته احتراز عن سوء الادب كه زه تاته ووايم قد طلبنا مثلا لك: زه ستا مثال لټوم ددې خو دا معنى چي مثال لري ماسي ماته معلوم نه دئ لهذا دا دپاجا بې ادبي ده ليكن مفعول مي حذف كړي چي احتراز راسي عن سؤ الادب (**ويجوز ان يكون السبب ترک مواجهة الممدوح بطلب مثل له**) امكان لري چي سبب دئ ترک دمواجهي دممدوح وي په طلب دمثل ده لره .

## شپږ نويم سبق

(**واما للتعميم مع الاختصار**) غرض ځلورم غرض مفعول حذف كيږي ددې دپاره چي دلالت وكړي پر تعميم سره له اختصاره (**كقوله قد كان منک ما يؤلم آى كل احد**) په

تحقيق سره واقع سو ستاسره هغه شی چي ززر رسوي هر چا لره دلته كُلَّ اَحَدٍ مفعول دئ ( دمايؤلمُ) څخه تقدير دعبارت ما يؤلم كُلَّ اَحَدٍ دمفعول په ذكر كيدو سره كه څه هم تعميم حاصليږي ليكن اختصار نه حاصليږي (وعليه والله يَدعُو اِلى دَارِ السلام) خداى پاک را بولي تول بندگان خپل وجنة ته هغه مفعول مقدر دادئ (جميع عباده) تقدير دعبارت دادئ والله يدعو جميع عباده الى دار السلام (واما لمجرد الاختصار)

پنځم غرض: پنځم غرض مفعول حذف كيږي مقصد يى نفس اختصار وي بله نكته نه وي (نحو اَصغَيتُ اِلَيهِ اَىْ اُذُنِيْ) ما غوږ كښيږدول ده لره اُذُنِي مفعول دئ داصغيت تقدير دعبارت دادئ (اصغيت اُذُنى اليه) وعليه قوله تعالى رَبِّ اَرِنِيْ اَنظُرْ اِلَيکَ اي ذاتک) اي زما ربه ښكاره كړه ماته چي زه وګورم تاته ذاتک مفعول دئ دارنی تقدير دعبارت دادئ ربّ ارنی ذاتک انظر اليک (واما للرعاية على الفاصلة) دحذف مفعول دپاره:

شپږم غرض: شپږم غرض مفعول حذف كيږي ددې دپاره چي رعاية دسجع وسي نحو ( وَالضُّحٰى وَاللَّيلِ اِذَا سَجٰى مَا وَدَّعَكَ رَبُّکَ وَمَا قَلٰى ) دماقلي مفعول حذف دئ اى ما قلٰکَ كه مفعول ذكر سي بيا رعاية دسجع نه راځي (واما لاستهجان ذكره).

اووم غرض: اووم غرض مفعول حذف كيږي ددې وجي متكلم دمفعول ذكر كيدل كريه بولي بد يى بولي (كقول عائشة صديقة رضي الله عنها ولارَاَيتُ مِنه ولا رَاَى مِنِّى اى العورة) عائشة وايى ما او نبي عليه السلام په يو لوښي كي غسل كولى ما دنبي عليه السلام څخه نه دئ ليدلي عورة نبي عليه السلام زما څخه نه دي ليدلى عورة دلته مفعول مقدر عورة دئ عائشه دعورة ذكر كيدل بد بولي ( واما لنكتة اخرى) مفعول حذف كيږي ديو بلي نكتي له وجي كله به مفعول حذف كيږي ددې دپاره چي متكلم مفعول پټوي دسامع څخه كله به مفعول حذف كيږي ددې دپاره چي انكار حاصل سي په وخت كي دحاجة.

## اجراء احوال متعلقات الفعل

**قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ( الزمر ٩ )**

**تشريح:** يعلمون، لا يعلمون دواړه متعدى دي نازل سوى دي په منزله دلازمي او دهيڅ چا څخه كنايه نه دي متكلم الله دئ مقصد دالله صرف اثبات دفعل خپل فاعل لره او نفى دفعل خپل فاعل لره دئ غير داعتبار دعمون او خصوص خلاصه دخبري داده علم په اول كي ثابت دئ مطلقا وبعضو ته غير داعتبار دعموم او خصوص علم په ثاني كي نفى دئ دبعضو آخر څخه غير داعتبار دعموم او خصوص.

المثال

**فَلَا تَجْعَلُوا لِلّٰهِ أَنْدَادًا وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ( البقرة ٢٢ )**

**تشريح:** دلته وانتم تعلمون فعل متعدى دئ خو نازل سوى پر منزله دلازمى دئ :

المثال

**لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَأْكُلُوا جَمِيعًا أَوْ أَشْتَاتًا ( النور ٦١ )**

**تشريح:** دلته مفعول دتأكلو ذكر نه سو كه چيرى مفعول دتأكلوا ذكر سوى واى نو سامع به دا گمان كړي واى چي نه گناه داده له وجي داكل ددغه شي بعينه : ماته گوره كه چيري داسي ويل سوى واى مثال ليس عليكم جناح ان تأكلوا اللحم جميعا او اشتاتا نو خامخا به دافهم وسي كه چيري خوړل وسي غير دغوښو نو گناه نسته پر هغه :

**وَمِثْله قوله تعالى وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ( البقرة ١٨٧ )**

وقوله وَالَّذِيْنَ اِذَآ اَنْفَقُوْا لَمْ يُسْرِفُوْا وَلَمْ يَقْتُرُوا (الفرقان ٦٧)

فلم يذكر ماذا ينفقون :

وقوله وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ (الانعام ١٤)

ای متصف بصفة الاطعام دون تقييد بصنف معين ولاطعام معين :

له دغه باب ځخه دا قول دالله دئ هُوَالَّذِیْ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ (غافر ٦٨)

وقوله وَاَنَّهُ هُوَ اَضْحَکَ وَاَبْکٰی :

وَاَنَّهُ هُوَ اَمَاتَ وَاَحْيَا (النجم ٤٣/ ٤٤) ای متصف بصفة الاضحاک والابکاء والاماتة والاحياء ،

ومنه قوله لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ (الاخلاص ٣)

فلم يذكر مايلد ولو ذكرلفسد المعنى :

تشريح: مفعول په مثل ددغه تعبيراتو کي مراد نه دئ او تقدير دمفعول نه دئ صحيح که څه هم فعل متعدی دئ په اصل کي ځکه تقدير دمفعول يعني ذکر دمفعول مفسد دئ دمعنی

## (البيان بعد الابهام)

| المثال | حذف المفعول | الغرض |
| --- | --- | --- |
| فَلَوْشَاءَ لَهَدٰکُمْ اَجْمَعِيْنَ (الانعام ١٤٩) | (هدايتكم) | البيان بعد الابهام |

وَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ (النحل ٩) (هدايتكم) البيان بعد الا

وَلَوْ شَاءَ اللهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدَى (الانعام ٣٥) (جمعهم) البيان بعد الا

لَقُلْنَا مِثْلَ هَذَا (الانفال ٣١) (قول مثل هذا القران) البيان بعد الابهام

لَوْ نَشَاءُ لَطَمَسْنَا عَلَى أَعْيُنِهِمْ (يس ٦٦) طمسها البيان بعد الا

وَلَوْ نَشَاءُ لَمَسَخْنَاهُمْ (يس ٦٧) (مسخهم) البيان بعد الابه

فَمَنْ شَاءَ فَلْيُؤْمِنْ (الكهف ٢٩) (الايمان) البيان بعد الابها

مَنْ يَشَإِ اللهُ يُضْلِلْهُ (الانعام ٣٩) (اضلاله من الناس) البيان بعد الا

(مجرد الاختصار)

المثال وَلَوْ نَشَاءُ اللهُ حذف المفعول الغر

أَرِنِي أَنْظُرْ إِلَيْكَ (الاعراف ١٤٣) (ذاتك) اخته

مَنْ يَهْدِ اللهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ (الكهف ١٧) (يهده) اخته

وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهُ وَلِيًّا مُرْشِدًا (الكهف ١٧) (يضلله) اختص

يَغْفِرُ لِمَنْ يَشَاءُ (الفتح ١٤) (الذنوب) اختص

مَنْ يَهْدِ اللهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ (الاسراء ٩٧) (يهده) اختص

وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهُ ( الاسراء ٩٧) (يضلله) اختصار

وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ ( الضحى ٥) (سؤلک) اختصار

وَمَنْ يَلْعَنِ اللّٰهُ ( النساء ٥٢) ( يلعنه) اختصار

قُلْ ادْعُوا اللّٰهَ أَوِ ادْعُوا الرحمنَ أَيًّا مَّا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ (سورة الاسراء ١١٠)

( سموه الله، او سموه الرحمن ايا ما تسمونه) اختصار

تشريح : کهچيري دعاء پهمعنی دتسميه سي هغه تسميه چي هغه متعدی وي وه مفعولينو ته :

وَلَمَّا وَرَدَ مَاءَ مَدْيَنَ وَجَدَ عَلَيْهِ أُمَّةً مِنَ النَّاسِ يَسْقُونَ وَوَجَدَ مِنْ دُونِهِمُ امْرَأَتَيْنِ تَذُودَانِ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا قَالَتَا لَا نَسْقِي حَتَّىٰ يُصْدِرَ الرِّعَاءُ وَأَبُونَا شَيْخٌ كَبِيرٌ فَسَقَىٰ لَهُمَا (القصص ٢٣، ٢٤)

ترجمه: او کله چي ورسيد (موسی) اوبو دمدين ته نو پيدا يې کړل پر هغه ( کوهی) يوه ډله دخلکو چي اوبه يې ورکولې ( مواشيو خپلو ته ) او پيدا يې کړې ماسيوا له دوی څخه دوې ښځي چي رامنع کولې بهيې ميږي خپلې ( له اوبو څخه) نو وويل (موسی) چي څه دئ حال ستاسي وويل هغو( دواړو) چي اوبه نه ورکوو موږ ( پسو خپلو ته ) ترڅو بيرته لاړسي دغه شپانه او پلارزموږ زوړ دئ ډېرو کلونو پس اوبه کړه ( موسی) رمه ددغه دواړو .

دلته دڅلورو فعلو مفعول حذف دئ :

١ -:يسقون ( مواشيهم ) ٢ -: تذودان ( غَنَمَهُمَا ) ٣-: لا نسقى ( مواشينا ) ۴-: فسقى (غنمهما):

**تشريح:** الله‌پاک په‌څلورو ځايو کي مفعول حذف کړي، که الله مفعولونه ذکر کړي واى نو دمخاطب ذهن به دغه خواته تللى واى چي زما خيال قصه دپسو شروع ده او الله‌پاک دپسو قصه نه‌کوى الله پاک دخلګو قصه کوى لهذا الله مفعول حذف کړ ددې دپاره چي متكلم مخابينو ته وايى چي زما دعبارت څخه كومه اراده ده خلاف مراد ورڅخه وانه خلى يغني متكلم وايى زه بل‌څه ويل غواړم او ته‌به بل‌څه واخلې نو متكلم مفعولونه حذف کړه ددې دپاره چي خلاف مراد وانه خيستل‌سي، متكلم وايى زما مراد دادئ چي دنبى دوښمنان بيخې ډير وي، دنبى امتحان ډير سخت وي، نبى ډيرپاک باطنه وي ښځو ته او به ورکړې خو كار نه‌په‌لري، نبى ټول عمر دغريب مدد كاره وي كه‌چيري الله اغنام ذكر كړى واى (پسونه) نو بيا به ما او تا ويلي چي قصه زما خيال دپسو شروع ده ماته ګورئ دلته اختلاف دئ شيخ عبدالقاهر او صاحب الكشاف تک ودېته کړي چي دلته مفعول حذف دئ دپاره دقصد دنفس فعل او تنزيل دفعل دئ په منزله دلازم ،صاحب المفتاح وايي دلته مفعول حذف‌دئ دپاره دنفس اختصار .

## التعميم مع الاختصار

| المثال | حذف المفعول | الغرض |
|---|---|---|
| وَاللّٰهُ يَدْعُوْا اِلٰى دَارِ السَّلَامِ (يونس ٢٥) | (العباد كلهم) | تعميم |
| اَفَلَا تَسْمَعُوْنَ (القصص ٧١) | ( هذه الحجج) | تعميم |
| اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ( القصص ٧٢) | ( هذه الايات) | تعنيم |

اَوَلَا يَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَايُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ( البقرة ۷۷) ( من اقوالهم وافعالهم ) تعميم :

وَلَايَشْفَعُوْنَ (الانبياء ۲۵)

## رعاية الفاصلة

| المثال | حذف الفمعول | الغرض |
|---|---|---|
| مَاوَدَّعَکَ رَبُّکَ وَمَا قَلٰی ( الضحی ۳) | (قَلَاکَ) | رعاية الفاصلة |
| اَلَمْ يَجِدْکَ يَتِيْمًا فَاٰوٰی ( الضحی ۴) | (فاواک) | رعاية الفاصلة |
| کَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِیْ (المجادلة ۲۱) | (الکافرين) | احتقار. |

## اووه نويم سبق تقديم معمولات الفعل عليه

(وتقديم مفعوله ونحوه عليه )

دمفعول مقدم کيدل پر خپل فعل دحال مقدم کيدل پر خپل فعل دمفعول فيه مقدم کيدل پر خپل فعل دمفعول له مقدم کيدل پر خپل فعل دجار او مجرور مقدم کيدل پر خپل فعل ( لردالخطأ فی التعيين):

ددې دپاره چي متکلم رد کړي خطاء دمخاطب په تعيين دمفعول کي يعنی مفعول ونحوه پرفعل مقدم کيږي ددې دپاره مخاطب په تعين دمفعول کي خطاء وي متکلم دمخاطب خطا رد کړي وحق ته يی واړه وي (کقولک زيدًا عَرِفْتُ) دلته مخاطب دا گمان کوي چي ته عمرو پيژنی متکلم ورته وايی زه زيد پيژنم يعنی مخاطب زما معرفة عمر ته ثابتوي زه

ورته وایم مخاطبه خطایی زه زید پېژنم که زما مخاطب قلب نه کولی یعنی دمخاطب په دماغ دا نسته چي زید پیژنی عمر پیژنی نو متکلم به دي مخاطب ته عرفت زیدا وایی زیدا عرفت به ته هغه وخت مخاطب ته وایی چي ته مخاطب تنبیه کړی پر دې چي ته په مفعول کي خطاء یی زما معرفة عمر ته ثابت نه دئ زما معرفة زید ته ثابت دئ بل مثال (ما شیًا جئتُ) زما مخاطب دا گمان کوي چي ته راکب راغلی یې زه مخاطب ته وایم ته خطاء یی زه پیاده راغلی یم بل مثال (یومَ الجمعة سرتُ) زما مخاطب دا گمان کوي چي تا دهفتي په ورځ تګ کړي زه مخاطب ته وایم ته خطاء یی ما دجمعې په ورځ تګ کړي بل مثال (تادیبًا ضَرَبْتُهُ) زما مخاطب دا گمان کوي چي تا کوچنی وهلی عنادا ضدا زه مخاطب ته وایم ته خطاء یی ما کوچنی وهلي دادب له وجي مخاطب پر دوه دئ ۱- مخاطب کله قائل دا شتراک وي په دې صورت کي تقدیم دمخاطب اشتراک ختم کوي ۲- : مخاطب کله دقلب قائل وي په دې صورت کي تقدیم دمخاطب قلب ختم کوي علامه تفتازانی رحمه الله وایی لرد الخطاء فی التعیین بهتره خبره بنه خبره داوه چي قزوینی داسي ویلي وای للاختصاص دقصر دري قسمونه دي ۱-: قصر التعین ۲-: قصر القلب ۳-: قصر الافراد که څه هم دقزوینی عبارت دادرو اقسامو ته شامليږي لیکن بهتره دتفتازانی عبارت دئ ځکه دا صریح دئ (زیدا عَرِفْتُ) زید عرفتُ به ته هغه چا ته وایی چي نفس معرفت ثابت بولي نفی یی نه بولي یعنی زیدا عرفت به هغه مخاطب ته وایی چي متکلم مخاطب ته ووایی چي ته معرفة ما ته ثابت بولي په دئ کي صحیح یې لیکن په مفعول کي په وقوع علیه کی غلط یی مثال ته معرفة دوو ته ثابتوي زه یی یوه ته ثابتوم ته حکم یوه ته ثابتوي زه یی بل ته ثابتوم زیدا عرفت دنفس فعل وروسته به داسي عبارت نه وي چي نفس فعل ختم کړي ځکه تا مخاطب ته ویلی چي ته په نفس فعل کي صحیح یې اوس که ددي ما بعد داسي عبارت راغلی چي نفس فعل یی ختم کوي نو ددې دا معنی چي په نفس فعل کي هم خطاء یی زیدًا عرفتُ به ته وایی (لمن اعتقد) هغه چا ته چي اعتقاد لري (انک عرفت انسانا) بیشکه ته پیژنی یو انسان (وانه غیر

زید) زید نه پیژنی ( ولتقول لتاکیده لا غیره) په زیدا عرفت کي دا امکان لری چي مادي قلب کړي وي دا امکان لري چي مادي افراد کړي وي دا به څرنګه معلومیږي چي دلته افراد دئ یا دلته قلب دئ علامه قزوینی وایی ( ولتقول ) ته به وایی (لتاکیده) ددې خبري دتاکید دپاره (لا غیره) آی زیدًا عرفت لا غیره په دې صورت کي قصر القلب دئ (ولهذا لا یقال ما زیدا ضَرَبْتُ ولا غیره) دا غه خووجه ده نه ویل کیږي ما زید ضربت ولا غیره ) ترجمه ما نه زید وهلی نه مي بل څوک وهلی لهذا دا عبارت نسي ویلای ولي څکه ما زید ضربت دا وایی ای مخاطبه ته چي ما ته نفی دفعل ثابتوي په دې کي صحیح یی لیکن په مفعول کي غلط یی زما مخاطب وایی تا عمر نه دئ وهلی زه مخاطب ته وایم ما زید نه دئ وهلی بل څوک مي وهلی لا غیره وایی هیڅ څوک دئ نه دئ وهلی لهذا ما زیدا ضربت عبارت او لا غیره عبارت سره متناقضین دي ( ولا ما زیدًا ضَرَبْتُ ولکن اکْرَمْتُهُ ) ما زیدا ضربت ده ته وایی په ضربت کي صحیح یی ولکن اکرمته ده ته وایی په ضربت کي غلط یی دسر عبارت او دپای عبارت ضد دي اوس که ته یو چا ته وایي زید مي نه دئ وهلی اکرام مي کړي په دي صورت کي داسي مه وایه ما زیدا ضربت ولکن اکرمته داسي عبارت ووایه ماضربت زیدا ولکن اکرمتُه ما زید نه دئ وهلی لیکن اکرام مي کړي اوس ته دا عبارت یو طالب ته کنبیږده مازیدا ضربتُ ولکن اکرمتُه ما ضربتُ زیدا ولکن اکرمته په دا دواړو عباراتو کی کوم صحیح دئ کوم غلط دئ که دی طالب دروښوئ نو پوه سه چي دا طالب دئ ما ضربتُ زیدًا ولکن اکرمته دا عبارت صحیح دئ ولی څکه ما ضربت داوله سره ضَرَبَ نفی کړي ما زیدا ضربت ولکن اکرمته دا عبارت غلط دئ ولی څکه ما زیدًا ضربت وایی اي مخاطبه ته چي ماته ضَرب ثابتوې په دې کي صحیح یی خو په مفعول کي غلط یی ولکن اکرمته وایی دلو یه سره ضرب نسته (واما نحو زیدا عرفته فتاکید ان قدر المفسر قبل المنصوب والا فتخصیص):

قاعده :زیدًا عرفتُهُ دا منصوب علی شریطة التفسیر دئ منصوب علی شریطة التفسیر دېته وایی چي دمفعول څخه فعل حذف کړه وروسته په بل فعل داول فعل تفسیر وکړه

دوهم فعل داول فعل دمفعول په ضميركي مشغوله كړه زيدا عرفته أى عَرِفتُ زيدا عَرِفْتُهُ په منصوف على شريطة التفسير كي كه فعل تر مفعول مخكي را وباه فائده كوي أى عَرِفتُ زيدا عَرِفْتُهُ كه فعل تر مفعول وروسته ،،

فائده كوي أى زيدا عرفت عرفته كه يو څوك ،

ضَرَبْتُهُ څه فرق دئ نحوي فرق نه معنوي ،

تر مفعول وروسته را وباسي فرق ئـ

ضربته تخصيص او تاكيد

شريطة التفسير تخصيص فائده کوي (زيدًا ضَرَبْتُه) منصوب على شريطة التفسير دئ
په زيدا ضربته کي دوه احتماله دي يو احتمال دادئ چي فعل دزيدا مخکي را وباسی بل
... دادئ چي فعل دزيدا وروسته را وباسي علامه قزويني دلته يوه قاعده بيانوي
... که منصوب على شريطة التفسير په شکل کي دأمّا او فاء راغلی
... اداسې ځکه د (اما) او د(فاء) په
... دادئ أمّا

پوښتنه: زه به د روښیم تقدیم به وي تخصیص به نوي کله به تقدیم وي لمجرد الاهتمام یعنی کله به تقدیم وي مقصد به خالص اهتمام وی کله به مقصود سجع برابرول وي کله به مقصود کافیه برابرول وي وغیره علامه تفتازنی وایی **قوله تعالی ﴿ خُذُوهُ فَغُلُّوهُ ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ ﴾** دلته ثم **الجحيم مفعول** دئ مقدم دئ مقصد خالص سجعه برابرول دي که مفعول موخر سي ای **ثُمَّ صَلُّوهُ الجحيم** نو بیا سجعه نه برابرېږ وقوله تعالی ﴿ وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحٰفِظِينَ كِرَامًا كَاتِبِينَ ﴾ دلته علیکم مقدم دئ مقصد خالص سجعه برابرول دي **وقوله تعالی ﴿ فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ وَأَمَّا السَّائِلَ فَلَا تَنْهَرْ ﴾** دلته مفعول مقدم دئ مقصد خالص دادئ چی فصل راسي دامّا او دفاء جواب ( **غالبا** ) یعنی په ۹۹ فصده کي دتقدیم سره تخصیص لازم دئ ( **ولهذا يقال فی ﴿ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ﴾ معناه نَخُصُّك بالعبادة والاستعانة** ) ولهذا داغه خو وجه ده چي دتقدیم سره تخصیص لازم دئ یقال ویل کیږي فی **اياک نعبد واياک نستعين** کي ( **معناه نخصك باالعبادة والاستعانة** دا معنا موږ خالصة ستا عبادت کوو موږ خالصة ستا څخه مدد غواړو ( وفی ﴿ **لَإِلَى اللهِ تُحشرونَ** ﴾ معنا الیه تحشرون لا الی غیره خالصة تا ته رجوع کوو وغیر ته نه ( **ويفيد فی الجميع وراء التخصيص اهتمام باالمقدم** ) قزوینی وایی کله به دتخصیص سره سره اهتمام مقصد وي ( **ويفيد فی الجميع** ) فائده کوي ( وراء التخصيص وروسته دتخصیص ( اهتمام ) اهتمام یعنی مهتم بالشان به وي ( **باالمقدم** په مقدم والی کي ( **ولهذا يقدر فی بسم الله مؤخرا** داغه خو وجه ده مقدر کیږي محذوف په بسم الله کي په داسي حال کي چي محذوف به مؤخر وي تقدیر دعبارت ( **بسم الله الرحمن الرحيم اشرعُ** ترجمه صرف اوصرف خالصة په نوم دالله داسي الله چي دیر مهربان داسي الله چي بنه رحیم کوونکي شروع کړم زه دلته د **مُتَعَلَّق** تاخیر تخصیص فائده کوي اهتمام فائده کوي هغه اهتمام دادئ چي دالله نوم مقصود دئ که چیري **أَشْرَعُ** مقدم سي بیا

تخصيص نه فائده کوي نو دا معنی زه شروع کوم په نوم دالله کافر به شروع وکړي دلات په نوم بل کافر به شروع وکړي دعزات په نوم ( واُورِدَ اِقْرَأْ بِسْمِ رَبِّکَ ) :

پوښتنه: جبراييل نبی عليه السلام ته داسي ولي نه وويل باسم ربک؟

جواب : دا محل دذکر نه دئ دا محل دويلو دئ يعنی دلته مقصود قراءة دئ ( واُجِيبَ بان الاهم فيه القراءة ) جواب ورکول سو چي اهم دلته قراة دئ ( وبانه متعلق باقراء الثانی دوهم و باسم ربک مُتَعَلِّق دئ تر اقراء ثانی ( ومعنی الول اوجد القراءة ) قراءة موجود سو .

## نه نويم سبق

دريم بحث په تقديم دمعمولات کي وتقديم بعض معمولاته على بعض ) بعض معمولات دفعل مقدم کول پر بعض ( اما لان اصله التقديم ) ځکه اصل دبعضو تقديم دئ ( ولا مقتضي للعدول عنه ) په داسي حال کي چي مقتضي دعدول به نه وي داصل څخه ( کالفاعل فی نحو ضَرَبَ زَيْدٌ عمرا ) فاعل دفعل داسي وي کله جز چاويل دضربت والا قانون وايی جز دخپل کل سره متصل وي والاصل فی الفاعل ان يلي الفعل مقتضی دعدول به نه وي کاتصال الفاعل بضمير المفعول هر وخت که فاعل دمفعول ضمير ته مضاف ؤ بيا مقتضي موجود دئ خامخا به مفعول مقدم وي ددې دپاره چي اضمار قبل الذکر رانسی مثال ضَرَبَ زيدًا غلامُهُ والمفعول الاول فی نحو اعطيت زيدا درهما وفی افعال القلوب اعلی ظَنَنْتُ وَحَسِبْتُ وخِلْتُ وَزَعَمْتُ وعَلِمْتُ ورَأَيْتُ وفی نحو اَعْلَمَ واَرَی واَنْبَأَ ونَبَّأَ واَخْبَرَ وَخَبَّرَ وَحَدَّثَ ، دا ټول افعال په حقيقت کي پر مبتداء او خبر داخليږي بيا دواړه دخپل ځان دپاره مفعولان جوړ کړي يعنی دا ټول افعال پر مسند او مسند اليه دا خليږي مسند اليه پر مسند مقدم وي نو ځکه داعطيت اول مفعول مقدم کيږي داعطيت

اول مفعول ځکه مقدم کیږي چي په اول مفعول کي دعاطِ اخذ فاعلية معنی ده په دويم مفعول کي دا معنی نسته لهذا په کمه کلمه کي چي دفاعلية معنی وي هغه کلمه عمده وي په کومه کلمه کی چي دفاعلية معنی نه وي هغه کلمه فضله وي نو عمده خو مقدم وي پر فضله (**اولان ذکره اهم کقولک قتل الخارجي فلانٌ**) مثلا دا فعل دئ دا فاعل دئ دا مفعول دئ دلته متکلم مخاطب ته دا ښکاره کوي چي زما مقصود اهم دادئ چي دافعل دئ پر مفعول واقع سي **اولان ذکره** ځکه ذکر دبعضو **اهمُّ** اهم وي تر بعضو **او لان فی التاخیر اخلالا ببیان المعنی**) مثال دافعل دئ دايي يو معمول دئ دايي بل معمول دئ دايي بل معمول دئ دا يې بل معمول دئ مثال زما ددې کلام ځخه دا مقصد دئ که چيري معمولاتو ته دارکم ترتيب ورکول سي نو زما مقصد اداء کيږي که دا معمولات ته واړوي نو زما مقصد فوت کيږي مثلا (**وقال رَجُلٌ مُؤْمِنٌ مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ اِيمَانَهُ**) (**قال وويل رجلٌ**) يو سړي داسي سړي (مؤمن) چي مؤمن وُ (**من ال فرعون**) په قوم قبطي وُ داسي رجل (يکتم) چي پټوي به (**ايمان**) ايمان خپل دلته **مِنْ** آل فرعون تر يکتم مقدم دئ مقصد دالله پاک دده دنسب بيانول دئ که چيري من آل فرعون مؤخر سي **اي يکتم ايمانه من آل فرعونَ** نو دا معنی **يَكْتُمُ** پټوی **ايمانَهُ** خپل ايمان، **مِنْ آل فرعون**، دفرعون دآل ځخه يعنی دالله مقصد نسب بيانول دی که مؤخر سي نو دا معنی چي دئ دخپل ايمان پټول دآل فرعون ځخه کوي (**او لان فی التاخیر اخلالا ببیان المعنی** ځکه په تاخير کي خلل راځي وهغه معنی مراد ته (**نحو وقال رَجُلٌ مؤمِنٌ مِنْ آل فرعون يَكْتُمُ اِيمَانَهُ** « **فانه لو اخر من آل فرعون** که چيري مؤخر سي قول دمن آل فرعون (**لتُوُهِمَ**) **انه من صلة يکتم**) خامخا به توهم وکړه ول سي چي دا تعلق نيسي تر يکتم **فلم يفهم منه انه کان منهم** نو فهم به نه وای ددې ځخه چي دارجل ددوي دقوم ځخه دئ **او بالتناسب کرعاية الفاصلة** مفعول مقدم کيږي دپاره ددې چي مناسبت راسي لکه رعاية دالف فاصلة يعنی الله تول آيتونه پر الف ختم کړي (**نحو**

فَأَوْجَسَ فِي نَفْسِهِ خِيفَةً موسى دلته خِيفَةً مفعول دئ موسى فاعل دئ دلته مفعول مقدم دئ فاعل مؤخر دئ دا دپاره درعاية دفاصلة كه چيرى موسى مخته سي خيفة مؤخر سي نو به ايت پر تنوين باندى ختم سي دا نور آيتونه پر الف فاصله ختم دي لهذا رعاية دالف فاصلة نه راځي.

| المثال | التقديم | الفائدة |
|---|---|---|
| المثال | المفسر قبل المنصوب | الفائدة |
| وَالْقَمَرَ قَدَّرْنَاهُ (يس ٣٩) | (قدرنا القمر) | تاكيد |

تشريح: الله پاک چي څرنگه سپوږمۍ ته منزلونه اندازه، کړي ( او ويشلي) دي مدارنگه ځمکي، لمر، تمام سياراتو ته اندازه کړي دي اوس كه موږ قدرنا وروسته کړو تر القمرنو تخصيص به فائده کړي نو دا معنى تقدير دمنازلو خاص دي تر سپوږمۍ او دلته تخصيص مقصود نه دئ دلته تاكيد مقصود دئ يعني الله وايي سپوږمۍ پخپله نه چلي موږ سپوږمۍ ته اندازه کړي دي منزلونه.

| | | |
|---|---|---|
| وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا ( النازعات ٣٠) | ( دحى الارض) | تاكيد: |
| وَالْجِبَالَ أَرْسَاهَا ( النازعات ٣٢) | (ارسى الجبال) | تاكيد: |
| وَالسَّمَاءَ بَنَيْنَاهَا بِأَيْدٍ وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ ( الذاريات ٤٧ ) بنينا السماء ) | | تاكيد: |
| وَقَوْمَ نُوحٍ لَمَّا كَذَّبُوا الرُّسُلَ أَغْرَقْنَاهُمْ (الفرقان ٣٧) ( اغرقنا قوم نوح) | | تاكيد: |

| مثال | التقديم | الفائدة |
|---|---|---|
| إِيَّاكَ نَعْبُدُ (الفاتحة ٥ معناه نخصك بالعبادة لانعبد غيرک | (اياک) | تخصيص |

اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ (النحل ۱۱۴) معناه ان كنتم تخصونه بالعبادة ( اياه) تخصيص

اِيَّاهُ تَدْعُوْنَ ( الانعام ۴۱) (اياه) تخصيص

بَلِ اللّٰهَ فَاعْبُدْ ( الزمر ۶۶) (الله) تخصيص

لَاِلَى اللّٰهِ تُحْشَرُوْنَ ( آل عمران ۱۵۸) ( الى الله) تخصيص

وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا ( البقرة ۱۴۳) ( عليكم) تخصيص

وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ (المجادلة ۱۰) ( على الله) تخصيص

عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ ( الشورى ۱۰) ( عليه، اليه) تخصيص

لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ ( التغابن ۱) ( له، له) تخصيص

اِنَّ اِلَيْنَا اِيَابَهُمْ ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُمْ ( الغاشية ۲۵، ۲۶) (اِلَيْنَا عَلَيْنَا) تخصيص

تشريح: په دغه دواړه مثالو کي تقديم تخصيص فائده کوي که څه هم دا معمولان دفعل نهدي :

ثُمَّ الْجَحِيْمَ صَلُّوْهُ ( الحاقة ۳۱) ( الجحيم) رعاية الفاصل

فَاَوْجَسَ فِيْ نَفْسِهٖ خِيْفَةً مُّوْسٰى (طه ۶۷) (نفسه) رعاية الواصل

وَجَآءَ مِنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ رَجُلٌ يَّسْعٰى (يس ۲۰) ( من اقصا المدينة) اهتمام

ترجمه: او راغلی له ليري طرفه دهغه ښار يو سړی چي منډی يې وهلې .

تشریح: دلته الله جل جلاله من اقصا المدینة دا مقدم کړي ، مقصد دالله دادئ چي رسولان خلکو ته راغلی رسولانو دغو خلکو ته خبره په دلائلو کوله دي خلکو بیا هم سر ورسره خلاص نه کړ یو سړي دکلي دپایه راځغستله سړيې په خلاصوی ستا سو سره داله ته ولاړ دئ بیا هم ظالمانو تاسو سره نه په خلاصوئ یو سړی دکلي دپایه راځغلی درسولانو تابعداري کوي او تاسو ته نصیحتونه کوي چي داخبره ورسره ومنئ او تاسو يې نه مني، الله پاک من اقصا المدینة رامقدم کړ ددې دپاره چي دې خلکو ته یو قسم پیغور عار وربنکاره کړي چي دکلي دپایه یو سړي راځي درسولانو خبره منی سړ په خلاصوی ستا سو سره ولاړ دئ بیا هم ظالمانو تاسو خبره نه ورسره منی سر نه په خلاصوئ :

وَجَاءَ رَجُلٌ مِنْ أَقْصَا الْمَدِينَةِ يَسْعَىٰ ( القصص ٢٠)

ترجمه: او راغلی یو سړی له اخره دښاره په دې حال چي راځغستله يې په منډه منډه ، دلته الله من اقصا المدینة وروسته را وړي مقصد دالله دسړي درا تګ ځای معلومول دي :

## سلم سبق القصر وتعریفه

هر کله چي مصنف فارغه سو من احوال متعلقات الفعل څخه چي دا څلورم باب ؤ دعلم المعانی نو شروع یی وکړه په پنځم باب کي **فقال القصر** قصر په لغة کي **حَبْسَ** ته وایی په اصطلاح کي **تخصیص شئ بشئ بطریق مخصوص** دقصر څلور طریقي دي اول **ما** او **إلّا** دوهم انما دریم تقدیم او تاخیر څلورم تعریف دمبتداء او خبر ددې څخه ما سوا قصر په بله طریقه نه راځي که په نفس فعل سره قصر ؤ دې ته قصر نه وایی **مثال خصصت الشئ بفلان** ( **القصر وهو حقیقي وغیر حقیقي** قصر پر دوه قسمه دئ ١-: حقیقي ٢-: غیر حقیقي اول قصر حقیقي دېته وایی چي یو شي قصر او بند سي په بل شي کي په نسبة ددوه دجمیع ماعدا مثال **ما خاتم الانبیاء إلّا محمد صلی الله علیه وسلم** خاتم الانبیاء نسته

ر حالصة محمد صلی الله وسلم دئ دلته خاتم الانبیاء قصر او بند په
ـمد کي دئ بل هیڅ څوک نه دئ خاتم الانبیاء :

دوهم قصر غیر حقیقي دیته وایی چي یوشي په بل شي کي قصر سي په نسبة دیو معین نه په نسبة دبل معین مثلا **ما زَیدٌ اِلّا کَاتِبٌ** زید نه دئ مگر کاتب دئ شاعر نه دئ دلته زید قصر دئ په کتابت کي په نسبة دشعر نه په نسبة دعلم نه په نسبة دبل هُنر یعنی دلته زید قصر دئ په کتابت کي صرف په نسبة دشعر **ما کاتب اِلّا زید** دلته کتابت قصر دئ په زید کي په نسبة واحمد الله ته نه په نسبة ودوست ته علامه تفتازنی وایی په بله حواله چي ورته گورې دواړه اضافی دي یعنی قصر حقیقي او قصر غیر حقیقي دواړه من قبیل الاضافات دی ځکه په قصر حقیقي کي یو شی په بل شي کي قصر وي په نسبة دده دجمیع ماعدا نو غیرُ پکښي ملحوظ سو لهذا دااضافی دئ په قصر غیر حقیقي کي یو شي قصر وي په بل شي کي په نسبة دیو معین نو غیر پکښي ملحوظ سو لهذا دا اضافی دئ لیکن یوه ته حقیقي وایی بل ته اضافی وایی ځکه په حقیقي کي اضافت نه ملحوظ کیږی په غیر حقیقي کي اضافة ملحوظ کیږي که څه هم په نفس الامر او په واقع کي دواړه اضافی دي یعنی په حقیقي کي جمیع ماعدا نه ملحوظ کیږی ځکه جمیع ماعدا مُبهم دي په غیر حقیقي ملحوظ کیږي ځکه دا متعین دئ

## تقسیمه

( **وکل منهما نوعان**) هر یو دحقیقي او غیر حقیقی پر دوه قسمه دئ (**قصر الموصوف علی الصفة** ) وقصر الصفة علی الموصوف ) ټول قصرونه څلور دي اول قصر الموصوف علی الصفة من الحقیقي دوهم **قصر الصفة علی الموصوف من الحقیقي** دریم قصر الموصوف علی الصفة من غیر الحقیقي څلورم **قصر الصفة علی الموصوف من غیر الحقیقي** (**والمراد المعنویة لا لنعت النحوي**)

صفة نحوي هغه تابع دئ چي دي دلالت كوي پر هغه معنى باندي چي هغه معنى په متبوع كي وي مثال جاءنى رجل عالم يا دمتبوع په متعلق كي وي مثال ﴿رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا﴾ ظالم پر هغه معنى دلالت كوي چي قريه نسته پكښي په أَهْلُهَا كى سته قزوينى وايى مراد دصفة څخه صفة معنوي دئ نه صفة نحوي صفة معنوي هغه عرض دئ چي قائم بالغير وي دصفة معنوي او صفة نحوي په مينځ كي نسبة دعموم خصوص من وجه ده دا نسبة يوه ماده داجتماع غواړي دوى مادي د افتراق غواړى ماده داجتماع داده مثال اعجبنى هذا العلم ( هذا ) موصوف ( العلم ) صفة لهذا داصفة نحوي دئ ( العلم ) صفة معنوي دئ ځكه علم عرض دئ قائم بالغير دئ ماده دافتراق من طرف صفة النحوي لا من طرف صفة المعنوية مثال مَرَرْتُ بِهٰذَا الرجل (بهذا) موصوف (الرجل) صفة دا صفة نحوي دئ صفة معنوي نه دئ ځكه الرجل جوهر دئ عرض نه دئ ماده دافتراق من طرف صفة المعنوي لا من طرف صفة النحوى مثال العلم حسنٌ دا صفة معنوي دئ ځكه حسن عرض دئ قائم بالغير دئ صفة نحوى نه دئ ځكه دا مبتداء او خبر دئ دلته مراد صفة معنوي دئ يعنى ماده داجتماع هم مراد ده مثال اعجبنى هذا العلم ماده دهغه افتراق چي صفة معنوي وي صفة نحوي نه وي دا هم مراده ده (والاول من الحقيقي) اي قصر الموصوف على الصفة من الحقيقي نحو ما زَيْدٌ إِلَّا كَاتِبٌ دا معنى زيد په دنيا كي له كتابت څخه غير بل هيڅ خوي نه لري ( اذا اريد انه لا يتصف بغيرها) هغه وخت چي مراد كړه سي چي زيد غير دكتابته نه دئ متصفه په بل چا (وهو لا يكاد يوجد لتعذر الاحاطة بصفات الشيء) قصر الموصوف على الصفة من الحقيقي دا په دنيا كي سته كه نسته علامه قزوينى ته يې وجود څه كوي دا قصر وجود ته قريب نه دئ ځكه دا متعذر دئ چي ديو شي مكمل صفات ملحوظ كړي بيا يو صفت ورته ثابت كړي او ور تول ورڅخه ختم كړي كه ته په كاتب كي شاعرٌ عالمٌ نقَّاشٌ نقَّالٌ دغه صفات نفى كړي داسي نه چي بل صفت له تا فاته وي يعنى دا متعذر دئ چي دشي پر تولو صفاتو دئ احاطه وسي علامه تفتازانى وايى قصر الموصوف على الصفة من الحقيقي امكان

نه لري چي داسي مثال مازيد الا كاتب دلته تا زيد قصر كړي په كتابة كي نور اوصاف دئ ورڅخه ختم كړه مثلا دكتابة ماسوا يو وصف شاعر دئ دشاعر نقيض لا شاعر راځي صفة معنوي مثبت هم راځي منفی هم راځي په قصر حقيقي كي به ته صفات مثبته ټول ختم كوي صفات منفية ټول ختم كوي مثال مازيد الا كاتب دلته تازيد قصر كړي په كتابت كي دشاعر وصف دئ ورڅخه ختم كړي اوس زه ستا څخه په لا شاعركي پوښتنه كوم لا شاعر نسي ختم كيداى ځكه دا نسي كيداى چي زيد نه شاعر وي نه دئ لا شاعر وي ځكه ارتفاع دنقيضينو راځي وكذالک (عالمٌ او لا عالمٌ)

(والثاني) اي قصر الصفة على الموصوف (كثير) نحو **ما في الدار الا زيد** في الدار متعلق دئ تر ثابت پوري ګون في الدار وصف دئ زيد موصوف دئ مثلا دا يو كور دئ په دې كور كي صرف او صرف زيد دئ بل څوک نسته دا رنګه كيداى سي كه يو څوک سوال وكړي چي په داركي هوا سته تلتک سته بالبنت سته ته خو وايي دزيد څخه غير بل هيڅ نسته :

جواب: دلته مراد خلګ دئ ځكه جنس دجنس په مقابل كي وي ( **وقد يقصد به المبالغة لعدم الاعتداد بغير المذكور** ) مثال دا يو ركور دئ په دې كور كي يو زيد دئ بل بكر دئ بل عمر دئ بل خالد دئ زه درته وايم په دار كي صرف زيد دي كه ته وايم دا نور خلګ زه درته وايم دا نور خلګ كله سړي دئ يعنی دي خلګو ته اعتبار نسته دا قصر مبالغة دئ علامه قزوينی وايی ( **وقد يقصد به المبالغة** كله كله قصد وي په ده سره مبالغة (**لعدم الاعتداد بغير المذكور** اعتبار نه وركو غير مذكور ته يعنی دا خلګو ته :

**پوښتنه:** ماهذا الا زيد ما الباب الا ساجٌ دلته خو قصر دموصوف دئ پر موصوف كی ځكه هذا ذات دئ زيد هم ذات دئ الباب ذات دئ ساج هم ذات دئ په دا څلورو قصرو كي يو قصر نه دئ علامه تفتازانی جواب وركوي كه د اِلّا مخته ذات ؤ وروسته هم ذات

ځنو به دا لا په ما بعد کي دوصف معنی پیدا کوي نو به قصر دموصوف په صفة کي راسي مثال ما هذا الا زيد اَيْ ماهذا الا مُسمّیٰ بزید :

(والاول من غير الحقيقي) ای قصر الموصوف علی الصفة قصر اضافی پر درې قسمه دئ ۱-: قصر الافراد ۲-: قصر القلب ۳-: قصر التعيين (والاول من غير الحقيقي تخصيص امر بصفة دون اخرى او مكانها) (تخصيص امر) موصوف خاص کول يعنی نصر کول (بصفة) په دغه صفت پوري (دون اخرى) نه په بل صفة دا قصر الافراد دئ (او مكانها) ته موصوف ته دغه صفة ثابت بولې زه ددې صفت پر ځای دا صفت ثابت بولم نو قصر القلب سوال: (دون اخرى) څخه امر واحد مراد دئ که امر متعدد مراد دئ يعنی يو صفة په دون اخرى نفی کیږي که ډیر صفتونه نفی کیږي که ته یو صفت نفی کوي ليکن ستا مخاطب څلور صفات مشترک بولي لهذا ستا تعريف جامع نه سو خپلو افرادو ته که ته د دون اخرى څخه ما فوق الواحد اخلی نو ستا تعريف مانع نه سو ځکه حقيقی پکښې دا خل سو ځکه دلته تا مقدار معلوم نه کړي دوه نفی کوي ټول نفی کوي حقيقی هم دا رکم دئ ځکه په حقيقي هم ټول نفی کیږی محشی جواب ورکوي محشی وايی شک الثانی اخلو ده (دون اخرى) څخه جميع ماعدا اخلو خو جميع ماعدا متعين کوو حقيقي خارج سو ځکه په حقيقي کي جميع ماعدا مبهم دي (والثانی تخصيص صفة بامر دون اخرى اومكانه) (الثانی) ای قصر الصفة علی الموصوف من غير الحقيقي صفت قصر کول په موصوف کي نه په بل موصوف کي او مكانه ته صفت په دغه موصوف کي قصر بولی زه صفت په ددغه موصوف پر ځای په بل موصوف کي قصر بولم (فكل منهما ضربان) هر يو ددواړو څخه پر دوه قسمه دئ (والمخاطب بالاول) مراد داول څخه دُوَنَ دئ (من ضربي) ددوو قسمو څخه (كل من يعتقد) هر هغه مخاطب چي اعتقاد لري (الشركة) دا شتراک (ويسمى هذا قصرا افرادا) دا مسمي دئ په قصر الافراد .

## یوسل او اول سبق

قزوینی دوه تعریفه وکړه اول تعریف تخصیص شئ بشئ دون شئ دوهم تعریف تخصیص شئ بشئ مکان شئ لیکن قصرونه دري دي اول قصر الافراد دوهم قصر القلب دریم قصر التعیین علامه قزوینی رحمه الله تعالی عنه تخصیص شئ بشئ دون شئ دا تعریف یی تر قصر الافراد پوري خاص کړي تخصیص شئ بشئ مکان شئ دا تعر[illegible] قصر القلب او قصر التعیین پوري خاص کړي یعنی دق[illegible] [illegible]

کوم شرطونه چي قزويني لګولي موږ علامه تفتازاني ته وويل سکاکي شرطونه نه دي لګولي قزويني شرطونه لګولي کوم يوه بنه کار کړي علامه تفتازاني وايي دشرائطو په پريږدولو کي سکاکي بنه کار کړي ځکه په سکاکي اعتراض نه کيږي پر قزويني اعتراض کيږي مثال مازيد الا شاعر دمخاطب دا عقيده ده چي زيد کاتب دئ شاعر نه دئ ما مخاطب ته وويل زيد شاعر دئ کاتب نه دئ دلته مخاطب قائل د اشتراک نه دئ قائل دقلب دئ ما قصر القلب وکړي او حال دادئ چي کتابة او شاعر متنافيان نه دي ټول علماء ودېته قلب وائي قزويني خو وويل دقلب دپاره شرط دادئ چي وصفين به متنافيان وي دلته وصفين متنافيان نه دي ټول علماء دېته قصر القلب وايي که دا قصر القلب نسي نو دا څلورم قسم قصر دئ او حال دادئ چي دڅلورم قسم قصر هيڅ څوک قائل نه دي دا دومره تاوان دقزويني دشرطو څخه جوړ سو که يو څوک ووايي چي قزويني دا شرطونه دوجود دپاره نه دي لګولي دحسن دپاره لګولي افراد هغه وخت خوند کوي چي وصفين متنافي نه وي قلب هغه وخت خوند کوي چي وصفين متنافي وي يعنی دا شرائط دحسن دپاره دي دوجود دپاره نه دي علامه تفتازاني دوه جوابه ورکوي يو جواب دقزويني دعبارت څخه دحسن شرائط نه معلوميږي دوهم جواب په قلب کي که تحقق دتنافي وونو خوند ورد ئ او که تحقق دتنافي نه وُ بيا بيخونده دئ ما زيد الا کاتب لا شاعر قلب دئ دا چا وويل چي دا بيخونده دئ (وللقصر طرق دقصر شپږ طريقې دي قزويني څلور ذکر کوي دوي ويل سوي ١-: صيغة الفصل مثال أُولٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ٢-: تقديم مثال اِيَّاكَ نَعْبُدُ

## القصر بالعطف

(منها العطف اوله طريقه دقصر عطف دئ حروف عاطفه دادي واو، فاء، ثم، حتى، واما، واَوْ، ام لا، بل، لكن، لا، په حروف عاطفه کي بَل اولا دا دوه قصر فائده کوي (كقولك في قصره افرادًا زيد شاعر لا كاتب) زيد شاعر دئ کاتب نه دئ دا افراد دي (او

مازید کاتب بل شاعر: زید کاتب نه دئ بلکی زید شاعر دئ (وقلبا زید قائم لا قاعد
زید قائم دئ قاعد نه ده دا قلب دئ (او ما زید قائما بل قاعد (وفی قصرها أی قصر
الصفت زید شاعر لا عمرو او مازید شاعر بل عمرو (ومنها النفی والاستثنی کقولک فی
قصره أی قصر الموصوف افرادا (مازید الا شاعر (وقلنا ما زید الا قائم (وفی قصرها
أی قصر الصفة افرادا وقلبا ما شاعر الا زید :

پوښتنه: قزوینی په قلب کي تحقق دتنافی شرط کړي مثال زید قائم دلته قاعد خپله
نفی سو بیا دلا قاعد ذکر کولو ته څه ضرورت سته لهذا دزید قائم او دزید قائم لا قاعد
هیڅ فرق نسته ځکه زید قائم دا ښکاره کوي چي قیام زید ته ثابته ده نه قعود زید قائم
لا قاعد هم دا ښکاره کوي چي قیام زید ته ثابته ده قعود زید ته نه دئ ثابت جواب زید
قائم صرف پر دې دلالت کوي چي قیام زید ته ثابته ده زید قائم لاقاعد پر دې دلالت
کوي چي دمتکلم مخاطب دقلب قائل ؤ متکلم را ولاړ سو دمخاطب قلب یې ورختم کړي
دا په زید قائم کي نسته :

## یوسل او دویم سبق

(ومنها إِنَّمَا کقولک فی قصره انما زید کاتب) دریمه کلمه دقصر إِنَّمَا ده کقولک فی
قصره ای قصر الموصوف علی الصفة لکه دا قول ستا چي موصوف قصروي په صفة
کي انما زید کاتب دلته زید په کتابت کي قصر دئ زید دکتابت څخه تجاوز نه دئ کړي
انما زَیدٌ قائم دلته زید په قیام کي قصر دئ زید دقیام څخه تجاوز نه دئ کړي انما زید
کاتب دا دقصر الافراد مثال دئ ځکه په انما زید کاتب کی شاعر نفی دئ کاتب او شاعر
دا دواړه وصفین منافات نه لري انما زید قائم دقصر القلب مثال دئ ځکه په انما زید
قائم کي قاعد نفی دئ قائم او قاعد دادواړه وصفین منافات لري (وفی قصرها ای قصر
الصفة علی الموصوف چي صفة په موصوف کي قصروي انما قائم زید دلته قیامه قصر
په زید کي قیامی دزید څخه تجاوز نه دئ کړي:

قاعده :دانما سره چي کومه کلمه متصله وه هغه به مقصور وي وروسته کلمه به مقصور علیه وي شیخ په دلائل الاعجاز کي قاعده ذکر کوي شیخ وایی اِنّما او لا العاطفة دواړه مستعمليږی په کلام بليغ کي دقصر القلب دپاره دون الافراد :

پوښتنه: اِنَّمَا زَيْدٌ كَاتِبٌ قصر الافراد دئ :

جواب: دلته مصنف صحیح نه دئ ښه خبره داده چي انما مستعمليږي دقصر القلب دپاره لتضمنه معنی ما واِلّا په انما کي اِنَّ حروف مشبه بالفعل ما کافة اِنَّ حروف مشبه بالفعل چي دما کافة سره متصل سي دقصر فائده ورکوي داِنّما په داقصر ورکول کي څه ناڅه ابهامؤ بعض داِنّما قصر نه منی علامه قزوینی رد وکړي پر بعض قزوینی وویل لتضمنه معنی ما والا اِنّما په بغل کی دما او اِلّا معني ورکوي ما او اِلّا دقصر دپاره دي انما هم دقصر دپاره ده علامه تفتازانی وایی قزوینی دي وای لتضمنه معنی مَا واِلّا، اِنّما په بغل کي دما او اِلّا معنی ورکوي داسي نه وایی چي انما دما او الا معنی ورکوي قزوینی وایی اِنّما حُبَّهُ کټ مټ دما او اِلّا معنی نه ورکوي انما صرف په بغل کي دمااو اِلّا معنی ورکوي اصول واوره يو شي عين شي کيدل يو شي متضمن اَلشي کيدل ددې دواړو فرق سته داِنّما دما واِلّا دوه فرقه دي اول فرق دما مشبه بليس پر اسم مِنْ جاره زائده دا خلول جائز دئ مثال ( مَا مِنْ اِلٰهٍ الا الله داسي نسي ويلای اِنما مِن الهٍ اِلّا الله.

دويم فرق مَا واِلّا په هغه حکم کي مستعمليږي چي مخاطب ددې حکم انکار کوي او مخاطب ته مجهول وي اِنّما په هغه حکم کي مستعمليږي چي مخاطب ته نه مجهول وي نه انکار کوي بعض علماء وایی انما دقصر فائده نه کوي بعض علماء وایی انما دقصر فائده کوي قزوینی پر مذهب دهغه چا دئ چي هغه دانما دقصر قائله دي ددې دپاره قزوینی دلائل وایی چي انما دقصر فائده کوي اول دليل ( ولقول المفسرين اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ

الْمَيْتَةَ بالنصب معناه ماحرم عليكم الا الميتة وهو المطابق لقراة الرفع انما حرّمَ عليكم الميتة دلته دري قراءت دي اول قراءة إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ بالنصب دوهم قراءة إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ بالرفع دريم قراءة إِنَّمَا حُرِّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ داول صورت ترکيب إِنَّمَا كافة حَرَّمَ فعل ضمير مستتر فاعل عَلَيْكُمْ متعلق الْمَيْتَةَ مفعول :

ددوهم صورت تركيب په إِنَّمَا كي إِنَّ حروف مشبه بالفعل (ما) موصولة (حَرَّمَ) فعل ضمير فاعل (عَلَيْكُمْ) متعلق دا ټوله اسم د(إِنَّ) (الْمَيْتَةُ) خبر د (إِنَّ) دا دوهم صورت دقصر فائده كوي ځكه مبتداء او خبردواړه معرفه دي مفسرين وايي إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ بالنصب إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ بالرفع دواړه په قصر كي برابر دي ټول مفسرين وايي كلمه دإنّما دقصر فائده كوي كه انما كلمه دقصر نه واى بيا به دنصب صورت درفع دصورت سره برابر نه واى ليكن ټول مفسرينو دنصب صورت درفع دصورت سره موافق بولي په افادة دقصر كي ځكه كلمه دانما دقصر فائده كوي علامه تفتازاني وايي بعض وايي مفسرين دنصب صورت برابر كړى ددريم قراءة سره دريم قرائة دادئ إِنَّمَا حُرِّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ ليكن مفسرين دنصب صورت برابر بولي ددويم قرائة سره دويم قرائة دادئ إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ لهذا بعض غلط دي په خپل قول كي په دريم قراءة كي دوه تركيبه كيږي اول تركيب په إِنَّمَا كي (إِنَّ) حروف مشبه بالفعل (ما) موصولة (حُرِّمَ عَلَيْكُمْ) صله موصول سره دصلى دا به اسم د(إِنَّ) (الْمَيْتَةُ) دا به خبر دا(إِنَّ) دوهم تركيب: (إِنَّمَا) كافه (حُرِّمَ) فعل مجهول (عليْكُمْ) متعلق (الْمَيْتَةُ) نائب فاعل موږ علامه تفتازاني ته وويل په دادوو تركيبو كي كم تركيب خوندور دئ علامه تفتازاني وايي ما موصوله جوړول خوندور دي تر ماكافة ځكه كه ما موصوله سي إِنّ به عامل باقي پاته سي كه ما كافة سى إِنّ عامل به ملغاء سي ( ولقول النحاة انما لاثبات ما يذكر بعده ونفى ماسواه دوهم دليل نحاة وايي إِنَّمَا اثبات كوي دهغه چا چي

ذكر كيږي وروسته تر ده او نفی کوي ماسوا دده انما زيد قائم لا قاعد دلته انما اثبات
کوي دقيامي نفی کوي دلا قاعد دريم دليل (ولصحة انفصال الضمير معه (ضَرَبَ) فعل
چي هر وخت ذکر سي په ده کي ضمير متصل را وړل واجب دي متصل په منفصل اړول
جائز نه دي که چيری قصري کلمات وي بيا ضمير منفصل راوړل جائز دي مثال ماضَرَبَ
اِلّا اَنَا انا ضمير منفصل دي فاعل دضَرَبَ دي که ما او الا نه وای بيا به خامخا تا ضَرَبْتُ
ويلای عرب وايی اِنَّما ضَرَبَ اَنَا اَنَا ضمير منفصل دئ دقصري کلمې سره راغلی ځکه
اِنَمَا معنی دمَا، او اِلّا ورکوی که اِنَّمَا په معنی دما والّا نه وای بيا اَنا ضمير منفصل په
کم قانون جائزؤ نو معلومه سوه چي اِنَّما کلمه دقصر ده (ولصحة انفصال الضمير معه)
صحيح دئ انفصال دضمير داِنَّما سره دليل قال الفرزدق شعر انا الذائد الحامي الذمار
واِنَّمَا يدافع عن احسابهم انا او مثلي ترجمه (انا زه (الذائد دفعه کوونکي يم (الحَامي
زه حفاظت کوونکي يم (الذمار دمعاهدي والا سره چي يو وار مي دچا سره عهد وکړي
روغه مي ورسره وکړه سوله مي ورسره وکړه بيا دهغه پول حفاظت کومه (وانما يدافع عن
احسابهم انا او مثلي يدافع فعل عن احسابهم متعلق انا او مثلي فاعل ديدافع دلته انا
ضمير منفصل دئ ضمير منفصل دقصري کلماتو سره راځي دلته قصري کمله انما ده
علامه تفتازانی دلته يو نکته وايی تفتازانی وائی شاعر ولی اَنا ديدافع سره متصل نه
راوړي عن احسابهم ولی وروسته نه راوړي قانون واروره دانما سره چي متصل وي هغه
مقصور وي چي داِنّما سره متصل نه وي هغه مقصور عليه وي که چيري شاعر داسي ويلي
وای انما يدافع اَنَا عن احسابهم نو بيا دا معنی زه دفعه کوای سم دخپل قوم داحسابو
نور غَيرت نه لرم چي دفعه وکړم دبل قوم داحسابو يعنی زما دفعه خاص ده تر خپل قوم
داحسابو پوري دشاعر دا مقصد نه دئ دشاعر مقصد دادئ که دخپل قوم ترا حسابو چا
دفعه کولای سوه هغه صرف زه يم بل څوک نسته دامقصد دشاعر هغه وخت پوره کيږي
چي اَنَا وروسته کړي عن احسابهم مخ ته کړي :

پوښتنه: په شعر دلیل نسي نیولای ځکه آنَا چي وروسته راغلی دا دضرورت شعري دوجي او دشعر دپاره هغه اشیاء جائز دي چي دبل چا دپاره جائز نه دئ علامه تفتازانی وایی ښه که انا وروسته نه وای بیا وایی بیا به دی دیدافع پر ځای ادافع ویلي وای علامه تفتازانی معترض ته وایی ورسه امام خلیل راپورته کړه امام خلیل دعروضو موجد دئ ته ورته ووایه دیدافع او دادافع په وزن کي فرق سته که فرق نسته امام خلیل وایی دیدافع او ادافع هیڅ فرق نسته نو که شاعر یدافع ویلي وای هم ضرورت شعري پوره کیدی که ادافع شاعر ویلي وای هم ضرورت شعري پوري کیدی لیکن شاعر دأدافع پر ځای یدافع وایی ددې دپاره چي ضرورت شعري نسته داقاعده ده.

## یوسل او دریم سبق

(ومنها التقدیم) څلورمه کلمه دقصر تقدیم دئ (کقولک فی قصره : لکه دا قول ستا چي موصوف قصر وي په صفت کي (تمیمیٌ آنَا) زه تمیمی یم قیسیة نه یم (وفی قصرها) چي صفت قصر وي په موصوف کي (انا کفیت مُهِمَّکَ) دلته دمسند الیه تقدیم راغلی دلته صفة قصر دئ په موصوف کي یعنی کفایت صرف او صرف ما کړي دئ (وهذه الطرق الاربعة دا طرق اربعة په نفس قصر کي برابر دي (تختلف من وجوه) له څو وجوه مختلف دي (فدلالة الرابع بالفحوی) مراد دفحوی څخه مفهوم ازفحوی کَلام دئ څلورم قسم چي تقدیم دئ دده څخه قصر فهمول کیږي دفحوی کلام یعنی قصر دکلام له طرز څخه فهمول کیږي که څه هم نه پیژنی اصطلاح دبلغاء (والباقیة بالوضع) مراد دالباقیة څخه باقي دري کلمات دي هغه کلمات دادي ۱-: عطف ۲- نفی والاستثنی ۳- انما دادري کلمات قصر فائده کوي بالوضع یعنی واضع دادري کلمات وضع کړي دیو معنی داسي معنی چي هغه قصر فائده کوي (والاصل فی الاول أی العطف النص علی المثبت والمنفی کما مرّ اصل په اول کي چي عطف دي تصریح کول په مثبت او منفی باندي یعنی په (لا) کي قانون دادي چي مثبت او منفی به دواړه په عبارت کي ذکر

کوي مثال زید شاعر لا کاتب دا قانون په تقدیم نفی والا انما کي نسته (فلا یترک نه ترک کیږی تصریح په مثبت او منفی باندی (الا لکراهة الاطناب مگر که تا داطناب څخه ځان ساتلي بیا په مثبت تصریح وکړه په منفی کي تصریح مه کوه یعنی که فرصت نه ؤ مقام تنګ ؤ یا ستا مقصد ابهام ؤ یا ستا مقصد تأتّی الانکار ؤ په دي صورتو کي به ته تصریح په منفی نه کوي ځکه اطناب کریه دئ (کما اذا قیل) هغه وخت چي وویل سي (زید یعلم النحو والتصریف والعروض) دا فی قصر الموصوف علی الصفة (او زید یعلم النحو وعمرو وبکر) دافی قصر الصفة علی الموصوف (فیقول فیهما زید یعلم النحو لا غیره نوته به ووایی په دواړو مقامینو کي (زید یعلم النحو لا غیر) زید په نحو پوهیږي په بل شي نه پوهیږي معنی داول زید یعلم النحو لا غیر النحو ای لا التصریف ولا العروض دلته موصوف قصر دي په صفت کي معنی دثانی زید یعلم النحو لا زید ای لاعمروٌ ولا بکرٌ دلته صفت قصر دئ په موصوف کي په دادواړو صورتو کي په نفی تصریح نه وسوه لکراهة الاطناب د (لا غیرَ) ترکیب علامه تفتازانی وایی لاغیرُ به یی وایي دلاغیرُ مضاف الیه محذوف لا غیرُ به مبنی بر ضمه وي ځکه دا دقبلُ او بعدُ سره مشابهت لري بعض علماء وایی لا غَیرَ به یې وایی ځکه لا دنفی جنس غَیرَ اسم خبر محذوف (اونحوه) اي نحو لا غیر لا مثلُ لیس غیرُ لا ماسواه من عداهُ (فی الباقیة ای الاصل فی الثلثة الباقیة (النص علی المثبت فقط) تصریح کول په مثبت نه په منفی (والنفی بلا لا یجامع الثانی نفی په لا نه جمع کیږي دثانی سره ثانی ماوالا دئ نه صحیح کیږي ما زید الا قائم لا قاعد (لان شرط المنفی بلا ان لا یکون منفیا قبلها بغیرها) قانون په نفی بلا کي دادئ کم شي چي ته په لا نفی کوي داشی به مخکي تر لانفی نه وي غیر ددغه لا (لا شرط المنفی بلا ان لا یکون منفیا قبلها بغیرها شرط دمنفی بلا دادي چي دا منفی به منفی نه وي مخکی تر لا غیر ددغه لا یعنی د لا څخه به غیر بل چا به نفی نه وي کړي:

سوال : ستا دعبارت څخه دارا معلومیږي که مخته بلي (لا) نفی کړي وي بیا په (لا) سره نفی وسی پروانه لري او حال دادئ چي د لا څخه به مخته هیڅ چا نفی نه وي کړي نه به لا نفی کړي وي نه به انما نفی کړی وي نه به ما وإلّا نفی کړي وي ؟

جواب علامه تفتازانی وایی د ( بغیرها ترجمه به داسي کوي ددغي لا څخه به غیر بل چا نفی نه وي کړي

## جمع النفی بانما والتقدیم

(ویجامع الاخیرین نفی بلا العاطفة جمع کیږي دإنّما او دتقدیم سره إِيَّاكَ نَعْبُدُ لا غَيْرَكَ ویلای سي إِنَّمَا زَيْدٌ كَاتِبٌ لا شاعر ویلای سي (فیقال إِنَّمَا أَنَا تميمي لا قیسی) دلته لا دانما سره جمعه سوي (وهو یاتینی لا عمرو) دلته لا دتقدیم سره جمعه سوي ( لان النفی فیهما غیر مصرح به) ځکه نفی په دواړو کي مصرح نه دئ په انما زید کاتب کي نفی دشاعر سوي ضمنا لاصراحة ته را ولاړ سه نفی صراحة وکړه کما یقال امتنع زید عن المجیء لا عمرو دلته منع دزید له مجیئة څخه نفی دئ معنی لیکن په لا سره نفی صراحة وسوي (والسکاکی شرط مجامعته لاالثالث ان لا یکون الوصف مختصاً بالموصوف) سکاکی وائی ته چي لا العاطفة دانما سره جمعه کوي شرط یی دادئ چي وصف به خاص نه وي تر موصوف پوري که وصف خاص ؤ تر موصوف بیا لا دانما سره نه جمعه کیږي ځکه دبل دنفی کیدو ضروت نسته ( نحو إِنَّمَا يَسْتَجِيبُ الَّذِينَ يَسْمَعُونَ) دلته وصف استجابة دئ الذین یسمعو ن موصوف دئ دلته استجابة خاص دئ تر الذین یسمعون پوري فَإِنَّهُ يَمْتَنِعُ أَنْ يُقَالَ إِنَّمَا يَسْتَجِيبُ الَّذِينَ يَسْمَعُونَ لا الذین لا يَسْمَعُونَ لان الاستجابة لا تَكُونُ الا ممن یسمعُ یعنی دسکاکی به نیزکه وصف تر موصوف پوري خاص ؤ بیالا دإنّماسره جمعه کول جائز نه دي(وعبدالقاهر لا تحسن فی

المختص کما تحسن فی غیرہ) شیخ عبالقاهر وایی لا داِنَّما سره جمعه کول ښه کار دئ مګر شرط دادئ چي وصف به خاص نه وي تر موصوف پوري که وصف تر موصوف پوري خاص وُ بیا لا دانما سره جمعه کول ښه کار نه دئ لیکن جائز دئ موږ علامه تفتازنی ته وویل ته څه وایی علامه تفتازنی وایی زه دلوی ملا خیال ساتم عبدالقاهر ترسکاکی غټ ملا دئ علامه تفتازنی وایی خوند او نه خوند جلا خبره ده لیکن جمعه کول یې جائز دی دارکم اِنَّمَا يَسْتَجِيبُ الَّذِيْنَ يَسْمَعُوْنَ لا الذين لا يَسْمَعُوْنَ (انما يستجيب) استجابة قبلوي (الذين يسمعون) هغه کسان چي سماع کوي دلته ضمنا نفی راغلی دهغه کسانو څخه چي سماع نه کوي لیکن علامه تفتازانی وایی زه نفی صراحةً په عبارت کي ذکر کوم دپاره دتاکید یعنی ددی دپاره چي دنفی تحقق زیات سي تاکید دنفی وسي (وهذا اقرب الی الصواب) قزوینی شیخ ته رأیه ورکړه (وهذا اقرب الی الصواب دا چي دئ دیر اقرب دئ وحق ته علامه تفتازانی وایی دشیخ خبره ډیره اقربه ده وحق ته ځکه پر امتناع باندي دلیل نسته دبلغاء او فصحاء عبارات پر دې ګواه دي چي هغه دارکم ځایونه لا راوړي (واصل الثانی ان یکون ما استعمل له مما یجهله المخاطب وینکره بخلاف الثالث (اصل الثانی ان یکون اصل دما او اِلّا دادئ چي وي به (ما استعمل له مما یجهله المخاطب وینکره هغه حکم چي مستعمل وي ثانی په هغه حکم کي مما یجهله المخاطب وینکرہ دا حکم به مخاطب ته مجهول وي مخاطب به ددې حکم انکار کوي یعنی ما واِلّا په هغه حکم کي مستعملیږي چي هغه حکم مخاطب ته مجهول وی او مخاطب دهغه حکم څخه انکار کوي (مثال قوله تعالی وَمَا الحَيٰوةُ الدُّنْيَا اِلَّا مَتَاعُ الغُرُوْرِ ژوندون ددنیاګي نه دئ مګر سامان دغولیدولو ژوندون ددنیا نه دئ مګر سامان دغولیدولو دا یو حکم دئ موږ مسلمانان پخپل عمل الله پاک ته دا ښکاره کوو چي زموږ دکامیابي دار او مدار پر روپۍ دئ ځکه هر مسلمان ډیره توجوه ددنیاکارونه ته ورکړي لږ توجو یې ددین وکارو ته ورکړي نو دا مسلمانان دنیا اصل بولي تر اخیرت دنیا متاع الغرور بولل دا مخاطبینو ته مجهول ده ځکه مخاطبین دنیا اصل بولی دنیا متاع الغرور بولل ددې

ځخه مخاطبين انكار كوي ځكه مخاطبين دنيا اصل بولي نو الله پاک قصر وکړي په ما والاسره (بخلاف الثالث) په خلاف دانّما انما په هغه ځای کي مستعمليږي لا يجهله ولا ينكره چي مخاطب ته نه مجهول وي او نه مخاطب انكار ورځخه كوي يعنى إنّما په هغه حكم كي مستعمليږي چي مخاطب ته نه مجهول وی او نه مخاطب انكار ورځخه كوي سوال ددې خبري ځخه دار امعلوميږئ. چي إنّما په كم ځای كي مستعمله وي مخاطب به مخكي په عالم وي او هيڅ انكار به نه وي نو معلومه سوه چي انما مستعمله سي فائدة الخبر به نه وي لازم دفائدة الخبر به وي لازم دفائدة الخبر دا معنى كه خبر يې په دې خبر سه چي زه هم خبر يم ليكن دا صراحة درواغ دي ځكه قران احاديث عبارت دبلغاء او فصحاء دا ټول وگوره چي انما پکښي مستعمله وي فائدة الخبر وركوي لازم دفائدة الخبر نه وركوي علامه تفتازانى ددې جواب وركړی علامه تفتازانى واي ما والا چي چيري مستعلميږي شان دده به د اوي چي مجهول او منكر به وي انما په دی ځای كي مستعلميږي چي شان به دده دا وي چي مجهول او منكر به نه وی (مثال قوله تعالى إنّما إِلٰهُكُمْ إِلٰهٌ وَاحِدٌ) ترجمه بيشكه خبره همدا ده اله ستا سو يو دئ دلته انكار هم سته او دا حكم مجهول هم دئ متكلم چي الله دئ مخاطبين چي موږ يو متكلم ور ته دا ويل غواړي چي دخدای يو كيدل شريک ورسره نه كيدل دا هغه خبر ده چي ددې خبري شان دادئ چي نه مجهوله واى تاسو ته او نه انكار واى ليكن ملامي ماته سه مجهول دئ تاسو ته انكار هم كوي (كقولک لصاحبک) لک دا قول ستا چي ته خپل صاحب ته ووايي (وقد رأيتُ شبحاً من بعيد) ته يو شخص ووينى دلري ځخه (ماهو الا زيد) دانه دئ مگر زيد (اذا اعتقده غيره چي مخاطب ددئ دغير اعتقاد ولري مصرا په داسي حال كي چي پر تينگ هم وي وقد ينزل المعلوم منزلة المجهول لاعتبار مناسب) قاعده قد چي په معانی كي ذكر سي نو دقد مخته ظاهر الحال وي دقد وروسته خفى الحال وي كله كله معلوم نازل سي په منزله دمجهول له وجي ديو امر داسي امر چي مناسب وي

دمقام سره ما والّا په هغه ځای کي مستعمليږي چي مخاطب ته هغه حکم مجهول وي او مخاطب دهغه حکم څخه انکار کوي:

سوال زه به دروښيم ما والا به په داسي ځای کي مستعمل وي چي هغه حکم به مخاطب ته معلوم هم وي مخاطب به دهغه حکم څخه انکار هم نه کوي الله متکلم دئ صحابه مخاطبين دي الله صحابة ته وايی ﴿وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ﴾ محمد نه دئ مگر رسول دئ داخبره معلومه ده وصحابه ته صحابه ددې خبري انکار نه کوي:

جواب (وقد ينزل المعلوم منزلة المجهول ) کله کله معلوم په منزلة دمجهول سي ،کله کله غير منکر په منزلة دمنکر سی دېته تنزيلي صورت وايی او تنزيلي صورت خلاف دمقتضی ظاهر الحال وي (لاعتبار مناسب معلوم په منزلة دمجهول گرځي له وجي ديو امر داسي امر چي هغه امر مناسب وي دمقام سره (فيستعمل له الثانی افرادا ثانی به مستعمليږي په داسي حال کي چي قصر الافراد به وي صحابه دنبي صلی الله عليه وسلم دعشق تام له وجي دا عقيده جوړه وه چي نبي صلی الله عليه وسلم دوه صفته جمع کونکي ذات دئ يو دا چي په نبي کي رسالت دئ بل دا چي په زندگي نه مري صحابه نبئ عليه السلام شريک کړي ؤ په دوو شيانو کي الله قصر الافراد وکړي چي په نبي کي صرف رسالت دئ عدم الهلاکة نسته يعنی نبي عليه السلام به مري فوت کيږي به دنبي عليه السلام هلاکة يو امر معلوم دئ ځکه الله وايی كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ دنبي عليه السلام دهلاکة څخه صحابه انکار نه کوي ليکن صحابه دعشق تام له وجي په نبي کي دواړه صفتونه جمع کړي وه الله پاک صحابه ته معلوم په منزلة دمجهول کړی غير منکر په منزلة دمنکر سو (وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ) اي مقصور علی الرسالة ) محمد قصر دئ په رسالة کی ( لايتعداها الي التبرء من الهلاک ) محمد درسالة څخه تجاوز نه دئ کړي وتبرء من الهلاک ته ( لنزل استعظامهم هلاکه) الله پاک ددوي دنبي هلاکة لوی شي بولل

دایی نازل کړي (منزلة انکارهم ایاه) په منزلة دانکار ددوي هلاکة لره دنبي علیه السلام :

## یوسل او څلورم سبق

(او قلبا) کله کله معلوم نازل سي په منزلة دمجهول بیا قصر پر دوه قسمه دئ قصر الافراد قصر القلب (او قلبا عیسي علیه السلام رسولان یو کلی ته واستول کفار ورته مخامخ سوه کفارو ورته وویل (اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا) نه یاست تاسو مګر زموږ په مثل بشریاست په اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا کي قلب دئ قلب دارکم دئ دعیسی علیه السلام رسولانو دعوت درسالت وکړ کفارو رسالت او بشریت منافی بلل تضاد یی بلل رسولانو دعوت درسالت وکړ کفارو درسالت څخه راوارول وبشریت ته یعنی دکفارو ذهن داؤ چي رسالة منافی دئ دبشریت څخه رسولانو چي دوی ته درسالت وکړي کفارو ورته وویل تاسو رسولان نه یاست تاسو بشر یاست دا دقلب طریقه وه تنزیل دمعلوم په منزلة دمجهول دا رکم جوړیږی دارسولانو ته خپل بشریة معلومؤ دا رسولانو دبشریة څخه انکار نه دئ کړي لیکن بیا هم نفی او استثنی پکښي مستعمل دئ پکار خو اِنَّما ده ځکه دا ځای دانّما دئ کفار رسولانو ته وایی بشر تاسو ته معلوم دئ خو لیکن تاسو درسالة دعوة کړي نو تاسو دبشر څخه منکر یاست ځکه کفار وایی رسالت او بشریت نه جمع کیږي ( او قلبا نحو اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا لاعتقاد القائلین) کفارو دا اعتقاد درلودي ( بان الرسول لا یکون بشرا) رسول بشر نه سي کیدای (مع اصرار المخاطبین علی دعوی الرسالت سره ددې چي مخاطبینو ټینګار کوي پر دعوت درسالت یو سوال کیږي قزوینی رحمه الله تعالی عنه دهغه سوال جواب ورکوي هغه سوال دادئ دا مخاطبین دئ ددوي په نیز بشریة او رسالة سره ضد دئ چي نه سره جمع کیږي مخاطبینو چي دا اقرار وکړي اِنْ نَحْنُ اِلَّا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ موږ نه یو مګر ستاسو په مثل نو دئ مخاطبینو دکفارو سره داخبره ومنل چي واقع موږ رسولان نه یو دوی رسولانو ته وویل

انْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا رسولانو دوی ته یی وویل ان نحن الا بشر مثلکم واقع موږ رسولان نه یو موږ بشر یو ستاسو په مثل او حال دادئ چي دوی رسولان دئ چي یو وار یو څوک رسول سي بیا غیر رسول نه سي کیدای جواب علامه قزوینی وایی یو اصول زده کړه دمعانی یو اصطلاح ده چي هغه ته ارخاء العنان وایی ارخاء العنان دېته وایی مثلا دا زما مقابل دئ زما او دده دلائل شروع دئ په یو شي کي زه ددي شي اثبات کوم زما مقابل ددئ شي نفی کوي اوس که زه وچ په وچه ودریږم امکان ددئ سته چي زما مقابل ما مات کړي په مناظره کي قانون دادئ چي وچ په وچه به نه دریږي چلیږي به بیا ته مقابله کټای سي نو کله کله یو مناظر وبل مناظر ته یو خبره وکړي ددې دپاره چي دده دغه خبره ورغلط کړي هغه بل مناظرېږ ور سره نه مني نو دئ ورته وایی چلو خبره ستا رکم ده نو بیا ددلائلو په مینځ کي دخپل خصم څخه یو خبره منل دیو ساعة دپاره ددې دپاره چي دی پړسي ودیته په معانی کی ارخاء العنان و ایی په اصل کي ارخاء العنان چا ته وایی وروکیدل دېته ارخاء وایی وُلون دیته العنان وایی وروکیدل دولون دیته ارخاء العنان وایی لکه ته پر اس سپور یي آس یوي خوا ته زور وهي ته اس بلي خواته بیایی نو ددي طریقه داده ته به ولون وریله کړي آس چي لږ پر مختګ وکړي بیرته آس دابلي خواته راوګرځوه دیته ارخاء العنان وایی علامه قزوینی وایی اِنْ نَحْنُ اِلَّا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ په دې کي خلګو ارخاء العنان کړي یعنی په ان نحن الا بشر مثلکم کي رسولانو ارخاء العنان کړي دئ رسولان وایی چلو منم نه یو موږ مګر ستا سو رکم انسانان نو بیا ګوره انسانیة او بشریة درسالة سره منافی نه دئ لهذا ان نحن الا بشر مثلکم ددعوي دتسلیم دپاره نه دئ ویل سوي دتبیکت الخصم دپاره ویل سوي دئ :

پوښتنه: دقصر څخه دا را معلومیږي چي دوی دعوة تسلیموي ارخاء العنان نه کوي ان نحن الا بشر مثلکم زه ستا څخه حال کوم داقصر الافراد دئ که قصر القلب دئ که قصر الافرد سي نو هم دوی ځان ګډ بولي په بشریت او رسالت کي نو بشریت چي دوی په ځان قصر کړي نو رسالة خو دوی له ځانه نفی کړي که قصر القلب سي نو دا معنی اول می دعوة درسالت کړي وه غلط سو درسالت څخه راواوړو وبشریت ته موږ دعوة دبشر کوو لهذا ددواړو قصر و څخه دارمعلومیږي چي رسولان دعوه دبشر نفی درسالت کوي ګر سره

قصر وایی دبته چي يو شی مثبت کړي بل به نفی کوي دلته تا اثبات دبشریت وکړي رسالت نفی سو لهذا دلته ارخاء العنان نسته دا عین دعوة تسلیمول دي جواب دمعانی يو قاعده ده هغه قاعده داده زما مخاطب په يو طرز او په يو اسلوب زما سره خبري کوي زه راولاړ سم په هغه طرز او اسلوبو دده سره خبری وکړم او حال داوي هغه اسلوب زما مقصود نه وي صرف دا اسلوب دمخاطب دموافقي دوجي وايم دیته موافقة المخاطب وایی چو نکي هغه خلک دقصر په اسلوبو ږغیدل اِنْ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا رسولانو هم ددوي سره دقصر په اسلوبو وږغیدل اِنْ نَّحْنُ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ) داموافقة المخاطب دیته ارخاء العنان وائي، دا تسلیم ددعوی نه دئ (وقولهم) وینا درسولانو (اِنْ نَّحْنُ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ من باب مجاراة الخصم دا دبابه دپړکیدولو دخصم (لیعثر) ددې دپاره چی ویښوي یي (حیث) په هغه ځای کي (یراد تبکیته) چي ده ارداه کړي وی دتبکیت الخصم (لا لتسلیم انتفاء الرسالت) ددې دپاره نه چي تسلیم سي انتفاء درسالت (كقولك) لکه دا قول ستا (انما هو اخوك) نه دئ مگر ستا ورور (لمن يعلم ذالك) دهغه چا دپاره چي خبر وي په هغه (ويقربه) او په هغه اقرار کوي (وانت تريد) ته اراده لري (ان ترفقه عليه) چي دي نرم کړي پر ده ددواړو مثال دمقتضی ظاهر الحال موافق دئ وقد ينزل المجهول منزلة المعلوم لادعاء ظهوره فيستعمل له الثالث نحو (اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ) دمدنی منافقین دکفر سره جگ جگ غورځیده کوم څوک چی دکفر سره غورځي او راغورځي خپل قوم ته صلح نه راوړي خپل قوم ته سکون نه راوړي بلکه خپل قوم ته وینی راوړي دمدنی مناقین دکفر سره جگ جگ کیده چي تا به ورته وویل داڅه کوي دوی به وویل اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ موږ صلحه راولو که موږ نه وای نو تاسو به یی ختم کړي وای دا زموږ برکت دئ چي تاسو در اوسه پاته یاست منافقینو صلحه په ځانو کي قصر کړ دوي مُصلح کیدل دا هیڅ څوک نه منی او دا مجهول هم ده:

صحله منکره هم ده مجهوله هم ده اِنّما په هغه ځای کي مستعمليږي چي نه مجهول وي نه منکر وي ليکن منافقينو پخپله صلحه کي اِنّما مستعملوي دعوه کوي ددې خبري چي موږ مصلحين کيدل تا ته مجهوله ده ليکن موږ دا دعوه کوو چي دظهور انتهی ته رسيدلي ده صلحه زموږ دلته تنزيل دمجهول په منزلة دمعلوم دئ ليکن دا ادعايی صورت دئ **ولذالک جاء (اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ)** الله رد وربانذی کوي په دې ايت کي **(اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ)** اَلآ ويښ سي مؤمنانو انهم هم المفسدون منافقين غټ فساد کر دي غټ فسادکر دي غټ فساد کر دي دلته څلور تاکيدات دي ۱-: الا ۲- اِنّ ۳-صيغه الفصل ۴-: جمله اسميه **للرد عليهم مؤکد بماترى.**

## يوسل او پنځم سبق

**( ومزية انما على العطف انه يعقل منها الحکمان معًا)** قصر بالعطف دوه حکمه راوړي مثبت منفی او دا دواړه حکمونه معي نه وي يکي باد يکړي وي مثال جاءنی زيدٌ لا عمرو دلته جاءنی زيد مثبت حکم دئ لا عمرٌو منفی حکم دئ دادواړه حکمونه يکي باديگری دي بخلاف اِنّما انما دوه حکمونه راوړي معا ولو که څه هم اِنّما دمنفی عبارت څخه ساقط وي په مثبت حکم باندي قائل وي خو دواړه حکمونه راوړي معا يو ځای مثال **اِنَّمَا اِلٰهُکُمْ اِلٰهٌ واحِدٌ)** ترجمه جوزي نيست اله ستاسو قصر دئ په يو خدای کي ددې څخه ما سوا بل څوک خدای نه دئ دلته دوه حکمونه دي په يوه تصريح وسوه په بل تصريح نه ده سوي ليکن دواړه معی دي **( ومزية انما** زياتوب خوي دانما **( على العطف** پر عطف باندي دادئ **(انه يعقل منها** چي دده څخه متصور کيږي **( الحکمان معا** دوه حکمونه يو ځای:

**قاعده:** دکلام مخ يوي خوا ته وي او وهي په هدف باندي بل څوک ديته تعريض وايی ( **واحسن مواقعها التعريض** ښه مواضع دانما تعريض دئ ( **نحو اِنَّمَا يَتَذَکَّرُ اُولُوا الْاَلْبَابِ** ) فهم پوهي منل دقران عقل مند خلگ کولاسي تذکرُ دقران غير عقل مند خلگ نسي

کولای دلته تعریض دئ هغه تعریض دادئ تذکر دقران عقل مند خلګ کوي تذکر دقران غیر عقل مند نسي کولای غیر عقل مند عَالمي خروي (**فانه تعریض** دا تعریض دئ ( **بان الکفار من فرط جهلهم** کفار په جهالت کي انتهي ته رسیدلي (**کالبهائم**) لکه خره او حیوانات په ( فطمع النظر منهم) دنظر طمعه کول دکفارو څخه (**کطمعه منها**) لکه طمعه کول دنظر دخرو څخه دا یو تعریض پر کفارو باندي ؤ دوهم تعریض پر نبي علیه السلام باندي دئ پر نبي باندي تعریض دادئ نبي شدة حرص په مخه اخستي ؤ الله پاک نبي علیه السلام ته وایی **قول تعالی فَلَعَلَّکَ بَاخِعٌ نَفْسَکَ عَلٰی اٰثَارِهِمْ اِنْ لَمْ یُؤْمِنُوا بِهٰذَا الْحَدِیْثِ اَسَفًا**) ترجمه نو ښایی چي ته قتل کوي نفس خپل پرورستو ددوي که رانه وړي دوي ایمان په دي خبره له ډیره غمه ددئ ایت څخه دا رمعلومیږي چي نبي زیادة حرص درلودي دکافر پر مسلمانیدلو الله پاک چي داخبره ورته وکړه چي تذکر عقل مند سړي حاصلوي پر ده یي تعریض وکړي چي دا ته په پسي یې داخره دي دخره څخه ګرسره دا طمعه نسته چي تذکر دئ حاصل کړي لهذا دخره څخه دتذکر طمعه نسته نو اي نبي مه وړپسي کیږي (**ثم القصر کما یقع بین المبتداء والخبر علی ما مرَّ** قصر دمبتداء او خبر په مینځ کي واقع کیږي مثال **وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ** بل مثال **اُولٰئِکَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ** (**یقع بین الفعل والفاعل غیرهما** دفعل او فاعل په مینځ کي هم واقع کیږي مثا ل ماضرب **زَیْدٌ** الاعمرًا ترکیب زیدُ فاعل دضرب عمروا مفعول دضرب دلته ضاربیة دزید قصر دئ په عمرو کي نو دا معنی ماضرب زید الا عمروا زید وهل نه دئ کړي مګر زید صرف عمر لره وهل کړي پاته سو عمرو عمرو دئ دزید مضروب سي دبکر مضروب دئ سي دخالد مضروب دئ سي پروانه لري ما **ضَرَبَ عمرًوا الا زیدٌ** دلته مضروبیة دعمرو قصر دئ په زید کی نو دامعنی **ماضَرَبَ عمروا الا زید عمر** لره وهل نه دئ کړي مګر صرف زید وهل کړي عمرو لره پاته سو زید زید دئ دعمر څخه غیر بل څوک وهلی وي پروانه لري :

قاعده: کم یو چي وروسته وي هغه مقصور علیه دئ بیا که تقدیم وي که تاخیروي مثال ما ضَرَبَ زید الا عمروا دلته عمرو مقصور علیه دئ مَاضَرَبَ عمرواالا زید دلته زید مقصور علیه دئ (ففی الاستثناء یؤخر المقصور علیه مع اداة الاستثناء په استثناء کي به مقصور علیه وروسته وي سره داداة الاستثناء (وقل تقدیمهما بحالهما جائز دئ تقدیم دمقصور علیه واداة الاستثنی پر مقصور باندي په داسي حالکي چي مقصور علیه او مقصور پر خپل حال پاته وي یو وار فعل وریله کړه که فاعل وي که مفعول وي ددئ دپاره چي فعل پکښی اخته سي بیا اِلّا راوړه غاړي یې وربندي کړه) دارکم مه کوه چي فعل دئ یو چا ته وریله کړي نه وي او ته په اِلّا غاړی وربندوي مثال ماضربَ الا عمروا زیدٌ ددې مثال جواز کوم دئ ځکه عرب دیته قصر الصفة قبل التمام وایی قصر دصفة بعد التمام بالاتفاق جائز دئ مثال ماضَرَبَ زید الا عمرًا ضرب چي تا زید ته وریله کړي نو ضربَ په زید کي اثر وکړي نو صفة دلته تام سو بیا تا اِلّا راوړه نو قصر دصفة بعد التمام سو که ضَرَبَ تا یو چا ته وریله کړي نه دئ متصل دئ اِلّا راوړه دیته قصر دصفة قبل التمام وایی قصر دصفة قبل التمام په اکثروا موادو دعربیة کي ناروا وي کله کله رواوي نحو ما ضَرَبَ الا عمرًا زید وما ضَرَبَ الا زید عمرًا لاستلزامه ) ولي ځکه تقدیم لازمه وي (قصر الصفة قبل تمامها) قصر دصفة مخکي دتمامیدو دصفة (وجه الجمیع ان النفی فی الاستثناء المفرغ یتوجه الی مقدر هو مستثنی منه عام مناسب للمستثنی فی جنسه وفی صفته فاذا اوجب منه شئ بالاجاء القصر ) ما جاءنی الازیدٌ وما رَأیتُ الا زیدا وما مَرَتُ الا بزَیْد دلته قصر ځرنګه راځي که دفاعل صورت دئ که دمفعول صورت دئ که مبتداء اوخبر صورت دئ قصر ځرنګه راځي دقصر دجوړولو طریقه قصر دیته وایی مثلا دا یو صفة دئ دا صفة امکان لري چي ټولو افرادو ته دي ثابت سي ته راولاړ سي ټول افراد منفی کړي داصفة یو فرد ته ثابت کړي مستثنی مفرغه دیته وایی مستنثیی منه به مقدره وي عامل دمستثنی نه ورفارغه وي کلام به

غیر موجب وي کلام غیر موجب دیته وایی چي نفی نهي استفهام وي مستثنی منه مقدره به عامه وي مستثنی به دمستثنی منه سره په جنس او په وصف کي برابر وي (ووجه الجمیع)المراد بالجیمع القصر بین الفاعل والمفعول والمبتداء والخبر وغیرهما)(ان النفی فی الاستثناء المفرغ قصر په مستثنی مفرغه کي (یتوجه الی مقدر) متوجه کیږي مقدر ته (هو مستثنی منه عام) هغه مقدر به مستثنی منه وي عامه به وي (مناسب للمستثنی فی جنسه وفی صفته) مناسب به وي دمستثنی سره په جنس او صفة کي جنس څه معنی وصف څه معنی مثال ما جاءنی الا حمارٌ دلته که مستثنی منه انسان را وباسي داسي ووایی ماجاءنی انسان الا حمارٌ دا مستثنی مفرغ له نه ده ځکه حمار دانسان له جنس نه دئ وصف دا معنی که مستثنی منه فاعل ؤ مستثنی به هم فاعل وي که مستثنی منه مفعول ؤ مستثنی به هم مفعول وي مثال مَا کَسَوْتُهُ اِلَّا جُبَّةً مانه ده اغوستلي ودته مگر جبة دلته جبة مستثنی ده مستثنی منه مقدره ده تقدیر دعبارت دارکم دئ (مَا کَسَوْتُهُ لِبَاسًا اِلَّا جُبَّةً) دمستثنی مفرغ له ټول شرائط پوره دئ ۱-: شرط مستثنی منه مقدره ده ۲-: مستثنی منه عامه ده ۳-: شرط ددواړو یو جنس دئ لباسا کپړه جبة هم کپړه ددواړو وصف یو دئ لباسا په ترکیب مفعول به دئ جبة هم په ترکیب کي مفعول به دئ وکذالک ما جاءنی الا زید ای ماجاءنی (احد الا زید) فاذا اوجب منه شئ بِاِلَّا) هغه وخت چي ټول نفی سوه یو ثابت سو داِلَّا په ذریعه (جاء القصر نو تصر راغلی (وفی انما یؤخر المقصور علیه په انما کي مقصور علیه مؤخر کیږي (ولا یجوز تقدیمه علی غیره تقدیم یې پر غیر نه دئ جائز (للالتباس) ولی ځکه التباس راځي قاعده خو داده اول به انما وي بیا به مقصور وي بیا به مقصور علیه وي په هر صورت کي مقصور علیه وروسته وي اوس که ته تقدیم وکړي بیا نه معلومیږي چي مقصور کوم دئ او مقصور علیه کوم دئ (وغیر کَاِلَّا فی افادة المقصورین) غَیْرُ داسي دئ لکه اِلَّا په افادة دقصرینو کي المراد من القصرین قصر الموصوف علی الصفة وقصر

الصفة علی الموصوف (وفی امتناع مجامعة لا العاطفة همدارنگه غیرُ دلا عاطفه سره نه جمعه کیږي .

## اجراء القصر

الجملة، نوعه باعتبار الواقع، باعتبار المقصور، طریق القصر، المقصور المقصور علیه إِنَّمَا يَخْشَى اللهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ (فاطر ۲۸) حقیقي صفة علی الموصوف، انما، یخشی الله، العلماء :

**تشریح:** دلته قصر دصفت دئ په موصوف کي خشی د الله څخه قصر ده په علماء کي غیر ته یې تجاوز نه دئ کړی ، الله قصر کوي او قصر په انما کوي دالله پاک غرض څه دئ دالله پاک اصل غرض تعریض دئ الله پاک تعریض داسي کوي الله پاک وایی ما خشیه په تا کي ( علماء) قصر کړي، که ځان ته عالم وایي نو په تا کي به خشیه ( بیره) وي که په تا کي خشیه (بیره) نه وي او ته ځان ته عالم وایي نو ته عالم نه یې تش دکتابو خر یې، بل تعریض الله وایي ته عالم یې بل سړی صرف تبلیغي دئ په شي نه پوهیږي یا یو سړي صرف دعلماء سره ناسته پاسته کوي که عالمه په تا کي خشوع نه وي په ده کي خشوع وي نو اصل کي دعالم وړدی دئ چي ده ته عالم وویل سي ته ددې وړ نه یې چي تا ته عالم وویل سي، اشرف علی تهانوي رحمه الله وایي الله پاک مضارع راوړه مضارع دبار بار معنی ورکوي اشرف علی تهانوي رحمه الله وایي الله پاک مضارع راوړي ددې دپاره چي څونه څونه علم زیاتیږي دومره به په ده کي خشیه (بیره) زیاتیږي :

إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِؤُنَ (البقرة ۱۴) اضافي ،موصوف علی الصفة، انما، نحن، مستهزؤن

**تشریح:** دلته قصر دموصوف دئ په صفت کي، دلته قصر القلب دئ :

منافقینو مشرکینو ته ویل ای مشرکینو ستا سو به دا خیال وي چي منافقین ایمان راوړي موږ منافقین ایمان نه راوړو موږ پر مؤمنانو مسخرې ټوکي کو، دلته قصر اضافي دئ قصر په انما دئ انما په هغه ځای کي مستعملیږي لا یجهله ولا ینکره چي نه مجهول وي نه انکار وي، یهودیانو خپله منافقین داسي جوړ کړي وه چي منافقین سهار یو رکم خبري کوي ما ښام بل رکم خبري کوي یعني مؤمنانو ته یو رکم خبري کوي موږ یهودیانو ته بل رکم خبری کوي، قاعده کله کله یو شي په حقیقت کي مجهول وي یو سړي ددې شي دظهور دعوه وکړي نو مجهول په منزله دمعروف سي لکه اِنَّمَا نَحۡنُ مُصۡلِحُوۡنَ ، دمنافق مُصلح کیدل مجهول او منکر دئ لیکن منافقینو ددې دعوه وکړه چي زموږ مصلح کیداعیانه ښکاره خبره ده داددئ وړ نه ده چي سړي ته دي مجهول سي نوځکه انما مستعمل سو، قاعده: انما په مُسلّماتو کي مستعملیږی یا هغه مسلّم عام دئ که مسلم نفس الامري او واقعي دئ، او که مسلم ادعائي دئ په انما نحن مستهزؤن کي منافقین یهودیانو ته دا ورښکاره کوي چي زموږ دړه وهل پر مؤمنانو باندي مسلم دئ موږ مؤمنانو نه یو :

اِنَّمَا الۡبَيۡعُ مِثۡلُ الرِّبٰوا : (البقرة ۲۷۵)

**تشریح:** یهودیان وایي بیعه مثال الربا ده دا مجهول هم دئ منکر هم دئ نو پکار ما اِلّا وه لیکن بیا هم انما راوړی ځکه یهودیان دادعوه کوي چي بیعه په مثال درباء ده دا ښکاره خبره دادي چاته مجهوله نه وی منکره نه وي خو دا تنزیلي صورت دئ :

اِنَّمَا الۡمُؤۡمِنُوۡنَ اِخۡوَةٌ: (الحجرات ۱۰) اضافي، موصوف علی الصفة، انما، المؤمنون، اخوة

**تشریح:** دلته قصر دموصوف دئ په صفت کي دلته قصر الافراد دئ، دلته مخاطبین مؤمنان دي دمؤمنانو اعتقاد دادئ چي کله دوښمني کله دوستي وي الله وایي انما المؤمنون اخوة مؤمنان ټول ورونه دي مؤمنان قطعا دوښمني نه کوي، دلته اِنَّمَا

پخپل حقیقت کي مستعمله ده ځکه مخاطبین مؤمنان دي مؤمنان هیڅ کله دالله په خبره کي تر دد نه کوي :

مَا الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ إِلَّا رَسُولٌ ( المائدة ۷۵) اضافي، موصوف علی الصفت المسیح، رسول :

تشریح: دلته قصر دموصوف دئ په صفت کي دلته که مخاطبین نصاري سي نصاری عیسی علیه السلام خدای او رسول دواړه بولي، نو په دې صورت کي قصر الافراد دئ، او که نصاری عیسی علیه السلام خالص خدای وبولي نو په دې صورت کي قصر القلب دئ :

قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ ( الاعراف ۳۳) اضافي صفة علی الموصوف، حرم، الفواحش:

تشریح: دلته قصر دصفت دئ په موصوف کي، مشرکینو حلال شیان پرځان حرام کړي وه دلته حرمت دطیباتو په مقابل کي دئ ، قصر الافراد دئ مشرکینو به اوښ دبت پر نامه ایله کړي پرځان به یې حرام کړي الله ورته وویل اې ظالمانو هلته حرمت نسته حرمت دادئ یعني حرمت زنا، فواحش ،اثم، دا حرمت دئ حرام دئ لکن انما په هغه ځای کي مستعملیږي لا یجهله ولا ینکره چي نه مجهول وي نه انکار وي خو دا هغه حکم دئ چي مخاطب یې مشرک دئ سخته ددې منکر دئ او جاهل هم دئ خو بیا هم اِنَّمَا مستعمله ده :

إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ ( محمد ۳۶)

وَمَا هَٰذِهِ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا لَهْوٌ وَلَعِبٌ ( عنکبوت ۶۴)

تشریح دلته په دواړو ایتو کي یوه وینا ده خو یو ځای الله انما راوړي بل ځای الله نفی او استثناء راوړي څه وجه ده، :

جواب: الله يو ځای انما راوړي ځکه مخاطبين صحابه دئ او صحابه هيڅ کله انکار نه کوي او انما مستعمليږي په هغه ځای کي لا يجهله ولا ينکره بل ځای الله نفی او استثناء راوړي ځکه مخاطبين کفار دي او کفار منکرين دي ځکه الله نفی او استثناء راوړي :

إِنَّمَا أَنتَ نَذِيرٌ (هود ۱۲) اضافي، موصوف على الصفة ، انما، انت، نذير :

**تشريح:** دلته موصوف قصر دئ په صفت کي اِنما جزئ نيست أَنْتَ ، ته، نذير: ويرونکی يې نبی نذير کيده بدهي ده معلومه ده غير منکره ده لهذا دلته انما پخپل ځای کي مستعمله ده

إِنْ أَنتَ إِلَّا نَذِيرٌ (فاطر ۲۳) اضافي، موصوف على الصفت، نفی، الا، انت، نذير :

**تشريح** : دلته قصر دموصوف دئ په صفت کي، دلته ځای دانما دئ خو نفی او استثناء استعمال دي نو دا تنزيلي صورت دئ دلته غير منکر منکر فرض سوي غير مجهول مجهول فرض سوی، نبی ددې څخه نه منکر وو او نه ورته مجهول وو خو دزيات حرص له وجي دشدة حرص له وجي چي خلک مسلمانان سي الله پاک وده ته نفی دان وإِلَّا په ذريعه کوي چي زما خيال ته نه يې په خبر تا دنذير څخه اخوا ته تجاوز نه دئ کړي ته خوهادي نه يې ته صرف ويرونکي يې ته چي دونه حرص ښکاره کوي ستا دعمل څخه دا رامعلوميږي لکه ته چي ځان ته هادي وايي :

قُلْ إِنَّمَا يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ (الانبياء ۱۰۸) : اضافی، صفة على الموصوف، انما، يوحی، الیّ

**تشريح:** فيقال على قصر الصفة: ما يوحى اليّ الا بالتوحيد ، اى الشرک ليس بالوحي

۲-: اضافی ، موصوف على الصفة، أَنَّمَا الٰهکم، اله واحد :

تشریح: فیقال علی قصر الموصوف : ما الهکم الا اله واحد، ای: لس له صفة التعدد :

إِنَّمَا اللّٰهُ إِلٰهٌ وَاحِدٌ ( النساء ۱۷۱) اضافی ، موصوف علی الصفة، انما، الله، اله واحد :

إِنْ حِسَابُهُمْ ، إِلَّا عَلَىٰ رَبِّي لَوْ تَشْعُرُونَ ( الشعراء ۱۱۳)، اضافي، موصوف علی الصفة، نفی الا ، حسابهم، ربی،

إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ (یس ۱۵) اضافی، موصوف علی الصفة ، نفی، الا انتم، تکذبون:

وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ : اضافي موصوف علی الصفة ،نفی، الا، محمد، رسول :

إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ، اضافی، صفة علی موصوف، تقدیم، عبادة استعانة، ایاک :

إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُوا الالبابِ: (الرعد۱۹):

تشریح : دلته قصر دصفت دئ په موصوف کي: يعني تذکر (پند اخیستل) قصر دئ په هغه چا کي چي خاوندان دعقولو سلیمه وي مقصد دالله تعریض کول دي په دارکم باندي کفار دزیات جهل ددوي داسي دي لکه چارپایان طمعه ده نظر ددوي څخه په ایاتو دالله او ده استدلال نیولو په دغه ایاتو د الله تعالی پر واحد انیت باندي دغه طمعه ددوی داسي ده لکه طمعه دچارپایانو څخه :

إِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ ( الرعد۴۰)

فَذَكِّرْ إِنَّمَا أَنْتَ مُذَكِّرٌ. لَسْتَ عَلَيْهِمْ بِمُصَيْطِرٍ: ( الغاشیة۲۱ )

الانشاء لَيْتَ زَيْدًا حاضِرٌ کاش کي زید حاضر وای دانشاء اطلاق دمعانی او دنحوي په ژبه پر دوو شیانو کیږي دا ویل سوی عبارت چي لَيْتَ زيدًا حاضِرٌ دئ دیته هم انشاء وایی دلیت زیدا حاضر وینا کول دیته هم انشاء وایی موږ علامه تفتازانی ته وویل دانشاء اطلاق پر دوو شیانو کیږی ته راته ووایه چي دلته دقزوینی په عبارت کي دالانشاء څخه هغه ویل سوي عبارت چي لیت زیدا حاضر دئ دامعنی واخلم که دالانشاي څخه هغه وینا دلیت زیدا حاضر دا معنی واخلم ته څه راته وایی علامه تفتازانی وایی هریو چي اخلی پروا نه لري خودقزوینی دانداز څخه داسي معلومیږی چي دي دالانشاء هغه ویل سوي عبارت چي لیت زیدا حاضر دئ دانه اخلیي هغه وینا دلیت زیدا حاضر دااخلی ځکه قزوینی انشاء تقسیم کړي وطلبي او غیر طلبی ته بیا طلبي تقسیم کړي وتمینی وترجی ته قزوینی وایی دتمنی دپاره لفظ لیت وضع سوي طالبه دتمنی دپاره دوي معنی ګانی دي ۱لیت زیداحاضر دیته هم تمنی وایی ۲: داستا تمنی کولو ته هم تمنی وایی لعلّ عمرا غائبٌ ته هم ترجي وایی دلعل عمرا غائبٌ وینا کولو ته هم ترجي وایی قزوینی په خپل عبارت کي وایی دتمنی دپاره لیت وضع سوي دترجي دپاره لعل وضع سوي لیت زیدا حاضر ددي جملي دپاره نه دئ وضع سوي ته چي تمنی کوي ددې دپاره لیت وضع سوي نو هر کله چي لیت دتمنی کولو دپاره ؤ نو ښه خبره داده چي دالانشاء څخه هغه وینا دلیت زیدا حاضر واخیستل سي علامه تفتازانی وایی انشاء داسي ده لکه اخبار زَيْدٌ قائِمٌ داویل سوي زید قائم دیته هم اخبار وایی داوینا کول دزید قائم دیته هم انشاء وایی دلته انشاء او اخبار دواړه صحیح دی

(الانشاء ان کان طلبا استدعي مطلوبا غير حاصل وقت الطلب انشاء دوه قسمه ده ۱-: طلبی غیر طلبي علامه قزوینی رحمه الله دغیر طلبي څخه بحث نه کوي غیر طلبي لکه عُقود بِعْتُ واشتريتُ قزوینی دغیر طلبي څخه بحث نه کوی ددوو وجو اوله وجه غیرطلبي مزایا نه لري دوهمه وجه په کارو دانسان کي دیر دخل نه لري پاته طلبي مزایا هم لري په

کار ودانسان کي دير دخل هم لري بل دا چي غير طلبي په حقيقت کي اخبار دئ
عارضي طور انشاء لره راغلي مثال بعت اشتريت دا په حقيقت کي ددئ دپاره وضع
سوي چي خبر ورکړه بعت ما خرڅول وکړه اشتريتُ ما رانيول وکړه دا په حقيقت کي ددې
دپاره وضع سوي اوس دعقود دپاره مستعمليږي قزويني داصل انشاء څخه بحث
کوي قزويني دمنقولي انشاء څخه بحث نه کوي (ان كان طلباً استدعي مطلوباً غير
حاصل وقت الطلب) په کم ځای کي چي انشاء طلبي سی لکه امر دا انشاء طلبي به
خپل مطلوب لري مطلوب به غير حاصل وي که ته ديو شي طلب کوي او هغه شي
مخکي حاصل وي نو دا تحصيل دحاصل دئ لهذا که انشاء طلبي وه داانشاء به خپل
مطلوب لري هغه مطلوب به غير حاصل وي مثال ما نصيب الله ته وويل اوبه راوړه دا اوبه
به نصيب الله مخته نه وي راوړي لهذا نصيب الله به او به مخته نه وي راوړی نو بيا به زه
نصيب الله ته وايم ورسه اوبه راوړه علامه تفتازاني دلته يو زبردسته قاعده وايي وايي
ښه زه به تا ته داسي انشاء طلبی دروښيم چي مطلوب غيرحاصل به نه لري نو بيا تا خو
قاعده جوړه کړه چي مطلوب غيرحاصل به لري زه به در وښيم مطلوب غير حاصل به نه لري
مثال يا أيها الذين آمنوا آمنوا الله پاک مؤمنانو ته وايي اي مؤمنانو ايمان راوړي
د يايها الذين آمنوا دا معنی چي تاسو ايمان راوړي نو مطلوب حاصل سو بيا په امنوا
کي طلب کوي دمطلوب حاصل تا خو ويل غير حاصل به وي علامه تفتازاني وايي
واوره قاعده هرهغه ځای که انشاء طلبي راغله دمطلوب حاصل دپاره بيا به دده خپله
معنی نه اخلی ځکه تحصيل دحاصل راځي نو ته په حسب دقرائن دخپل محل څخه اړه
وي وبلي معنی ته په يا ايها الذين آمنوا امنوا کي به ته طلب دايمان نه کوي ځکه ايمان
مطلوب حاصل دئ بيا چي ته په آمنوا سره طلب دايمان کوي نو تحصيل دحاصل راځي
او حال دادئ چي انشاء طلب دمطلوب غير حاصل کوي دلته به دانشاء څخه په حسب
دقرائن بله معنی اخلي هغه معنی داده يا ايها الذين آمنوا ثبتوا على الايمان ترجمه
اي مؤمنانو پر ايمان ثابت قدم ووسيږي دايمان څخه مه اوړي گوره دلته په آمنوا کي
طلب دايمان نه وسو په آمنوا کي اثبات دايمان وسو ثبات الايمان مطلوب غير حاصل

دئ ځکه ثبات الایمان په استقبال کي راځي ( الانشاء ان کان طلب استدعي مطلوبا غیر حاصل وقت الطلب ) که انشاء طلب ؤ نو انشاء غواړي مطلوب داسي مطلوب چي حاصل به نه وي په وخت کي دطلب (وانواعه کثیرة ) انواع دانشاء ډیر دي :

## التمنی

(منها التمنی یوه نوعه دانشاء تمنی ده تمنی دیته وایی طلب دحصول دشي محبوب غیر ممکن یا مشابه غیر ممکن دالله پاک عادة مبارکه دادئ چي الله ځوانی سړي ته نه راګرځوی مثال لیت الشباب یعودکاش کي ځواني راګرځیدلې واي دلته دځوانی راګرځیدل محاله ده یا یو شي په خپل ځان کي ممکن وي لیکن دبعد اسباب له وجي غیر ممکن سي مثال لَیْتَنِیْ اَحُجُّ کاش کي ما حج کړي وای حج په خپل ځان کی ممکن دئ لیکن دده سره اسباب دحج نسته نو مشابه سو دغیرممکن سره ( واللفظ الموضوع له لیت) لفظ چي دده دپاره وضع سوي هغه لَیْتَ دئ ( ولا یشترط امکان المتمنی نه دئ شرط چي مُتَمَنّٰی به ممکن وي په ترجي کي داشرط دئ ( تقول لَیْتَ الشباب یعودُ کاش کي ځوانی راګرځیدلې واي ( وقد یتمنی بِهَل دمعانی عجیبه انداز دئ که یو شي دمقتضي ظاهر الحال موافق ؤ په ده کي دومره معانی نه وي که هر وخت یو شي دخفی الحال موافق سړ بیا دمعانی دکِ سي لَیْتَ تقریبا غالبا په غیر ممکن کي مستعملیږي هل واضع وضع کړي داستفهام دپاره مستعملیږي په ممکناتو کي دتمنی دپاره لَیْت وضع سوي کله کله دتمنی دپاره هل مستعمل وي که ته سوال وکړي چي هل په ممکناتو کي مستعملیږي نو ته به ورته ووایی هل دتمنی دپاره مستعملیږي لیکن نکته پکښي داده یو شي غیر ممکن دئ ستا دی شي ته شدة حرص دئ داشي که څه هم غیر ممکن دئ لیکن خدای ته وګوري داشي دممکناتو شخه کړي نو په دې صورت کي به ته هل مستعملوي لیتَ به نه مستعلموي نو خلاصه داده هل دا کار کوي که یو شی څه هم غیر ممکن وي لیکن خدای ته وګوري داشي دممکناتو شخه کړي یعنی متکلم هل

راوړی مخاطبینو ته ددې دپاره چې داکار که څه هم غیر ممکن دئ لیکن ای مخاطبینو خدای ته وګوري داکار دممکناتو څخه کړي دالله پاک عادة دادئ چې مشرک نه بخښي اوس که الله پاک مشرک وبخښي نو کذب دالله پاک په کلام کي راځي او حال دادئ چې کذب کیدل محال دئ نو مشرک بخښل هم محال دي الله وائي زه مشرک قطعا نه بخښم الله پاک انبیاء علیهم السلام ته وویل سپارش ونه کړي یعنی سپارش بند دئ دعاء بنده ده مثال حضرت نوح علیه السلام جلیل القدر پیغمبر دئ دنوح زوی مشرک دئ نوح علیه السلام خواست وکړي یا الله زما زوی کښتی ته راواړه وه الله پاک ورته په غوڅه سو چې دادئ څرنګه چم وکړي قَالَ يٰنُوحُ اِنَّهٗ لَيْسَ مِنْ اَهْلِكَ اِنَّهٗ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ فَلَا تَسْئَلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ اِنِّيْٓ اَعِظُكَ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ وفرمایل الله ای نوحه بیشکه چې هغه زوی نه دئ له اهل ستا بیشکه دئ خاوند دعمل ناکاره دئ نو سوال مه کوه له ما څخه دهغه شي چې نه وي تاته په هغه شي کښې څه علم پوه بیشکه زه پند درکومه تاته چې نه سي ته له جاهلانو دالله پاک ظابطه ټولو انبیاء ته معلومه ده لهذا دکافر به دایقین سي په محشر کي چې سپارش غیر ممکن دئ یعنی سپارش کول محال دي نو ځای دلیت دئ داسي پکار ؤ لیت لِي من شفیع کاش کي زما دپاره سپارش وای لیکن دي هل استعمالوي دا ښکاره کوي چي سپارش غیر ممکن دي خدای ته وګوري تبا او برباد سوم دا غیر ممکن ممکن کړی اظهار کوي دشدة حرص چې کاش کي زما دپاره سپارش کوونکي وای (نحو هل لِي من شفیع (حیث) په هغه ځاکي ( یعلم ان لا شفیع) چي دي په دي پوهیږي چي سپارش کوونکي نسته (وبلَوْ نحو لو تَأْتِيْنِيْ فَتُحَدِّثَنِيْ کله کله تمنی په لو سره وي :

قاعده: ۸-: شیان دي په جواب کي فاء راځي دفاء وروسته اَنْ مقدر کیږی مضارع ته نصب ورکوي داقاعده په نحومیر کي وګوري دلته که لَوْ تمنی نسي یعنی لَوْ شرطیة سي نو بیا دده وروسته فاء نه راځي چي دفاء بعد اَنْ مقدر سي مضارع ته نصب ورکړي که لو

دتمنی دپاره سي بيا دلو وروسته فاء راځي دفاء وروسته اَن مقدر کيږی که ته سوال وکړي چې لو دي دترجي دپاره سي يا دي لو دعقود دپاره سي :

جواب لو دتمنی څخه غير بل شي نه سي راتلاي مثال الله پاک وايی کافر به دقيامة په ورځ خپلو سردارانو ته به ورسي جنګ به وسره وکړي الله پاک ورته وايی (لا تَخْتَصِمُوا لَدَيَّ) جنګونه مه کوي دا دجنګ ځای نه دئ بيا به کشران په مشرانو پسي سي ولی ظالمانو تاسو تباکړو اوس مي خلاص کړي مشران کافران به ورته ووايی موږ خپله تبايو نو دوي به ووايی وَقَالَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا لَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّأَ مِنْهُمْ كَمَا تَبَرَّءُوا مِنَّا الخ ترجمه او وايي هغه کسان چې تابعان وه کاشکي بيشکه واي موږ ته بيا ورتلل پس بيزاره به سو موږ ددوي څخه لکه څنګه چې بيزاره سوي دي دوي زموږ څخه دلته لو دتمنی دپاره دئ په جواب کي فاء راغلی دفاء ورسته ان مقدر دئ

## يو سل او اوم سبق

څلور حروف دي، حروف تحضيض ورته وايي هغه څلور حروف دادي هَلَّا، أَلَّا، لَوْلَا، لَوْمَا دا څلور حروف چې پر ماضی داخل سي دتنديم معنی ورکوي چې پر مضارع داخل سي تحضيض معنی ورکوي تنديم دامعنی چې متکلم مخاطب پر کړي فعل نادمه وي يعنی هغه کارچې تا وکړ په کار دا وو چې دا کار تا نه واي کړی.

تحضيض دامعنی متکلم مخاطب پر يو فعل را باعث کړي راوه پاره وي چې را پورته سه دغه څلورو حروفو په اړه علامه سکاکی وايي زما په خيال سره دا کلمات تحضيضيه بسيطه نه دي کلمات تحضيضيه مرکب دي . هَلَّا، أَلَّا، لَوْلَا، لَوْمَا:

أَلَّا: په اصل کي هَلَّا وو بيا هاء خلاف القياس په همزه بدله سوه أَلَّا ور څخه جوړه سوه لهذا دا څلور سره ماخوذ دی دهَل او لو څخه هل واضع وضع کړی داستفهام دپاره لو واضع وضع کړی دشرط دپاره هل لو مرکب سوه دلا نافيه مانافيه سره سکاکی دا ويل غواړی لو هل متضمن دی معنی لره دتمنی يعنی هل اولو د تمنی معنی په بغل کی را اخلی بيادتمنی څخه تولد او تو ليد د تنديم کيږی تولد او توليد د تحضيض کيږی موږ سکاکی ته وويل

ددي څه ضرورت دئ داسي ووايه هلا، الا لو لا لوما واضع وضع کړي دئ دتنديم دپاره او دتحضيض دپاره دمختصر المعانی محشي وايي مجاز رواه مجاز فی المجاز بنه کارنه دئ لَوْ په حقيقة کي دشرط دپاره وضع سوي هَلْ په حقيقة کي داستفهام دپاره وضع سوی اوس که موږ هَلْ لَوْ په تمنی کي استعمالوو دا نو مجاز دئ بيا که هَلْ لَوْ دتمنی څخه په تنديم او تحضيض کي استعمالوو دا نو مجاز فی المجاز دئ لهذا داسي به وکړو هَلْ لَوْ به دتمنی دپاره استعمال کړو بيا به تمنی تنديم او تحضيض راکش کړي يعنی هلا، اَلّا، لولا، لوما، دا کلمات به مجازا په تمنی کي استعمال سي بس تمنی به له ځان سره تنديم او تحضيض راکش کړي تمنی تنديم داسي راکش کړي متکلم مخاطب ته وايی دا کار زه ډير خوښ بولم چي ته ددئ کار څخه پښيمانه سي تمنی تحضيض داسي راکش کړي متکلم مخاطب ته وائی زه دا کار ډير خوښوم چي ته دا کار وکړي مثال هَلَّا تُجَاهِدُ فِی سبيل الله دالله په لار کي ته ولی جهاد نه کوي جهاد وکړه يعنی متکلم مخاطب ته وائی زه دا ډير خوښوم چي ته دالله په لار کي جهاد وکړې موږ علامه سکاکی ته ووېل هَلَّا لولا دتمنی معنی ورکوي بيا تمنی تنديم او تحضيض راکشوي نو بيا قول په ظن ولی کوي وايي ځکه كَاَنَّ حرف ظن دئ ولی دكَاَنَّ معنی کيدای سي چي دا رنګه وي علامه تفتازانی وايی چون کي يقينی دليل تاته څوک نه سي درکولای چي دا کلمات بسيط نه دي مرکب دي ځکه سکاکی دكَاَنَّ لفظ استعمال کړي که سکاکی ويلي وای چي دا خبره يقينی ده نو بيا به خلکو ويلي وای چي پر دې اجماع کومه ده راځي عبارت ولکو (قَالَ سَکَاکِی) سکاکی ويلي دي (کَاَنَّ حروف التنديم والتحضيض) ګواکي حروف تنديم او حروف تحضيض لکه (نحو هَلَّا والا بقلب الهاء همزة ولولا ولوما مأخوذة منهما مركبتين مع لا وما المزيدتين)

دارا ماخوذ دی دهَل او لَو څخه په داسی حال کي چي دوی مرکب دي سره دلاو ما داسی لا او ما چی مزيدتين دی (لتضمينهما معنى التمنى قوله للتضمين علة للمركبتين) ولی مرکب دی ځکه دوی دوه په بغل کی را خلی معنی دتمنی ليتولد منه فی الماضی التنديم نحو هَلَّا

اکرمت زیدًا وفی المضارع التحضیض نحو هَلا تقوم) قوله لیتولد علة للتضمین نو دا معنی ولی تضمین دئ ددې دپاره چي پیداسي دده څخه په ماضی کي تندیم ددې دپاره چي پیداسي دده څخه په مضارع کي تحضیض لتضمینهما لیتولد په دوارو کي لام کئ دئ لامِ کئ دې ته وایي چي دده ماقبل دمابعد دپاره سبب وي مثال اَسْلَمْتُ لِاَدْخُلَ الْجَنَّة:

دلته اسلام ددخول الجنة دپاره سبب دئ (وقد یتمنی بلعل یعنی له حکم لیت) که یو شي دممکناتو څخه وو بیا به ته ترجي کوي تمنی به نه کوي که یو شي ممکن نه وو یا یو شي ممکن دئ خو ددې شي دپاره اسباب نه سته په دې صورت کي به ته لیت استعمالوي لعل به نه استعمالوي که چیري یو شي غیرممکناتو ته ورنژدې وو بیا تا لعل استعمال کړ نو ته به لعل ته حکم دلیت ورکوي کله کله تمنی په لعل سره وي نو ور کول کیږي به لعل ته حکم د لیت (نحو لعل احجُّ فازورک بالنصب لبعد المرجوّ عن الحصول) که دتمنی په جواب کي فاء راغله دفاء وروسته به اَنْ مقدر وي مضارع به مَنصوبه وي دلعل په جواب کي فاء نه راځي :

## اجراء التمنی

دتمني تعریف : طلب دامر محبوب کول یا طلب دامر مرغوب کول چي هغه امر محبوب امر مرغوب محال وي یا شَبْیهٖ بالمحال :

قاعده: دتمنی دپاره څلور ادوات مستعملیږي ۱- لیت ۲ هل ۳ لو ۴ لعلَ خو اصل په تمني کي لیت دئ دانور درې مجازا په تمني کي مستعملیږي :

| المثال | المعنی المراد | الادوات |
|---|---|---|
| یٰلَیْتَ لَنَا مِثْلَ مَا اُوْتِیَ قَارُوْنَ (القصص ۷۹) | تمنی | لیت |

تشریح: قَالَ الَّذِیْنَ یُرِیْدُوْنَ الْحَیٰوةَ الدُّنْیَا : متمني دئ :

یالیت لنا مثال ما اوتی قارون متمنّی ده دوی تمني کوي ددنیا دقارون دنیا دقارون ودوي ته ا مر محبوب امر مرغوب ده خو محال نه ده شبیه بالمحال ده ځکه

په دنيا کي دومره دنيا يو چا ته ورکول کيدل لکه دقارون ده دا محال نه ده خو شبيه بالمحال ده :

**قَالَتْ يٰلَيْتَنِيْ مِتُّ قَبْلَ هٰذَا وَكُنْتُ نَسْيًا مَّنْسِيًّا (مريم ۲۳) (تمنی) ليت**

ترجمه: وويل مريمي کاشکي مړه وای پخواله دې حاله او وای زه هيره سوي بيخې له زړونو وتلې:

**تشريح:** دلته مريمه متمنی ده مرګ متمنی دئ امر محبوب دئ امر مرغوب دئ خو دا امر محبوب محال دئ :

**قِيْلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ قَالَ يٰلَيْتَ قَوْمِيْ يَعْلَمُوْنَ (يس ۲۶) (تمنی) ليت**

ترجمه: وويل سو چي ننوځه جنت ته وويل ده اي کاشکي چي داقوم زما پوه سوي وي:

**تشريح:** دقوم پوهنه خبرتيا ددغه مړی دپاره امر محبوب دئ امر مرغوب دئ خو دا امر محبوب امر مرغوب محال دئ.

قاعده: دنحاتو دوه مذهبه دي: يو مذهب دادئ که يا پر ليتَ داخله سوه دايا حرف تنبيه ده بل مذهب دادئ که يا پرليت داخله سوه دا يا حرف نداء ده خو منادی به تل عمر محذوفه وي دلته محذوف منادی قومی ده نو تقدير دعبارت دادئ يا قومی لَيْتَ قومي خو نه خبره داده چي يا حرف تنبيه ده :

**يَقُوْلُ يٰلَيْتَنِيْ قَدَّمْتُ لِحَيَاتِيْ (فجر ۲۴) (تمنی) ليت**

ترجمه: وايي به اې کاشکي مخکي می استولی وای (نيک عمل) دپاره ددې ژوند (دآخرت) :

**تشريح:** مخته کول اعمال صالحه دپاره داخروي ژوند هغه چي حقيقي ژوند دئ دا امر محبوب دئ امر مرغوب دئ خودا امر محبوب امر مرغوب محال دئ :

**وَيَقُوْلُ الْكَافِرُ يٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرَابًا (النساء ۴۰) تمنی ليت**

ترجمه: کافر به ووايي کاشکي زه وای خاوري :

**تشریح** کافر متمني خاوره گرځول په مثال دحیواناتو دا متمنی ده داامر محبوب دئ امر مرغوب دئ خو دا محال دئ :

**يٰلَيۡتَنِي لَمۡ أُوتَ كِتَٰبِيَهۡ (الحاقة ۲۵)** (تمنی) لیت

ترجمه : اي کاشکي نه وای راکړه سوي ما ته دا عملنامه زما :

**يٰلَيۡتَهَا كَانَتِ الۡقَاضِيَةَ (الحاقة ۲۷)** (تمنی) لیت

ترجمه: اي کاشکی وای خلاصوونکې ( زما له دوهم حیات )

**يٰلَيۡتَنِي كُنتُ مَعَهُمۡ (النساء ۷۳)**

**فَهَلۡ إِلَىٰ خُرُوجٖ مِّن سَبِيلٖ (غافر ۱۱)** (تمنی) فهل

ترجمه: پس کاشکي ووتلوته هیڅ یو لاره وای :

**تشریح:** دلته تمني په هَلۡ ده وتل داور څخه او رجوع کول ژوند ته ددې دپاره چي موږ اصلاح کړو اعمال خپل دا امر محبوب امر مرغوب دئ خو دا امر محبوب محال دئ.

**قاعده:** هر وخت که تا تمنی په هل کول نو مستحیل الوقوع به ممکن الوقوع ښکاره کوي ددې دپاره چي زه دئ کار ته کمال رغبت لرمه شدة حرص لرمه چي کاشکي ددوزخ څخه دوتلو هیڅ یو لار وای، هل واضع وضع کړې داستفهام دپاره او استفهام ممکن الوقوع وي اوس که هل تا په تمنی کي مستعمله کړه نو خامخا به یو نکته راوړي هغه نکته دا چي مستحیل الوقوع به ممکن الوقوع ښکاره کوي

**فَهَل لَّنَا مِن شُفَعَآءَ فَيَشۡفَعُواْ لَنَآ (الاعراف ۵۳)** تمنی فهل

ترجمه: کاشکي وای موږ لره له شفاعت کوونکو چي شفاعت وکړي دوی زموږ لپاره اویا کاشکي موږ راجع سوی وای وژوند ددنیا ته ددې دپاره چي موږ عمل کړی واو عَمَلًا صَالِحًا ښه صالح عمل نو موږ به نجات پیدا کړي وای په دې سره :

**تشریح:** دلته تمنی په هل ده شفاعت کوونکی ددوی دپاره او رجوع ددوی وحیاة الدنیا ته دا امر محبوب دئ خو دا امر محبوب محال دئ .

هَلْ فِیْ ذٰلِکَ قَسَمٌ لِّذِیْ حِجْرٍ (الفجر ٥)

لَوْ اَنَّ لَنَا کَرَّةً فَنَتَبَرَّءَ مِنْهُمْ کَمَا تَبَرَّءُوْا مِنَّا (البقره ١٦٧) : تمنی لو

ترجمه: کاشکي وای موږ ته بیا (دنیا ته) ورتلل پس بیزاره به سو موږ لکه څنګه چي بیزاره سوي دي دوی زموږ څخه :

تشریح: دلته کافر مُتمنی دئ رجوع الی الدنیا دده امر محبوب دئ امر مرغوب دئ خو دا امر محبوب امر مرغوب محال دئ :

فَلَوْ اَنَّ لَنَا کَرَّةً فَنَکُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ (الشعراء ١٠٢) (تمنی) لو

ترجمه: پس کاشکي وای موږ ته یو وار واپسي پس سوی به وای موږ له مؤمنانو:

تشریح : کفار او مشرکین متمني دئ رجوع وحیاة الدنیا ته ددوی امر محبوب امر مرغوب دئ خو دا امر محبوب امر مرغوب محال دئ :

لَوْ اَنَّ لِیْ کَرَّةً فَاَکُوْنَ مِنَ الْمُحْسِنِیْنَ (الزمر ٥٨) (تمنی) لو

ترجمه : کاشکي وای ما ته بیا بیرته ورتګ پس وم به زه هلته له نیکو کارانو :

تشریح کفار متمنی دي رجوع ودنیا ته ددوی امر محبوب دئ امر مرغوب دئ خو دا امر محبوب امر مرغوب محال دئ :

قَالَ لَوْ اَنَّ لِیْ بِکُمْ قُوَّةً (هود ٨٠) (تمنی) لو

ترجمه: نو وویل لوط کاشکي وای ما ته پر تاسي زور :

تشریح پخپله وکړي .

## اجراء حرف التحضیض

لَوْلَا تَسْتَغْفِرُوْنَ اللّٰهَ (النمل ٤٦)

لَوْلَا یَنْهٰهُمُ الرَّبّٰنِیُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ (المائدة ٦٣)

لَوْمَا تَأْتِیْنَا بِالْمَلٰئِکَةِ (الحجر ٧)

لَوْ يَأْتُوْنَ عَلَيْهِمْ بِسُلْطٰنٍۭ بَيِّنٍ ( الكهف ١٥) .

لَوْلَآ اَخَّرْتَنِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ( المنافقون ١٠)

## اجراء حرف التنديم

لَوْلَا جَآءُوْ عَلَيْهِ بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ ( النور ١٣)

فَلَوْلَآ اِذْ جَآءَهُمْ بَاْسُنَا تَضَرَّعُوْا ( الانعام ٤٣)

فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ ( التوبة ١٢٢)

لَوْلَآ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ قُلْتُمْ ( النور ١٦)

لَوْلَآ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُوْنَ ( النور ١٢)

## اجراء التمنی

| المثال | المعنى المراد | الاداة |
|---|---|---|
| وَقَالَ فِرْعَوْنُ يٰهَامٰنُ ابْنِ لِيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْٓ اَبْلُغُ الْاَسْبَابَ ( غافر ٣٦) | (تمنی) | لعل |

ترجمه: وویل فرعون ای هامانه ته جوړه کړه ماله ره پخه ماڼۍ. زه دا تمنی لرمه چي زه ورسیږم اسبابو ته :

تشریح: دلته لعل په معنی دلیت دئ ځکه وروسته يې په جواب کي فاء راغلی فَاَطَّلِعَ دفاء وروسته ان مقدردئ، دوهم دلیل داسمان واسبابو ته رسیدل محال غیر ممکن دئ نو معلومه سوه چي لعلّ په معنی دلیت دئ که لعلّ په معني دترجی سي نو ترجی خو په ممکن الحصول کي راځي، ځای دلیت دئ خو دي لعلّ استعمالوی ددي دپاره چي رسیدل وه اسبابو ته داسمان غیرممکن دئ ممتنع الحصول دئ خو زه شدة حرص لرمه چي دا ممتنع الحصول دي ممکن الحصول سي .

| | | |
|---|---|---|
| فَقُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَّيِّنًا لَّعَلَّهٗ يَتَذَكَّرُ اَوْ يَخْشٰى ( طه ٤٤) | ( تمنی) | لعل |

ترجمه: پس ووائي تاسو دوه وفرعون ته نرمه خبره کاشکی دئ پند واخلی یا وویریږي:

**تشریح:** دفرعون تذکر حاصلول دفرعون خشیه حاصلول الله ته معلومه ده چي دي تذکراو خشیه نه کوي په واقع کي دفرعون تذکر او خشیه محاله ده له دي وجي دلته لعل دتمنی دپاهر ده دترجی دپاره نه ده خو الله لیت نه وائي لعل وايي ددې دپاره چي دی خو زما خبره نه منی خو زما انتهائي رغبت دئ چي دئ دي تذکر ومنی خشیه ومنی ولی خو دئ هم زما بنده دئ :

## استفهام

(**ومنها الاستفهام**) یو نوع دطلب استفهام دئ یو طلب دحصول الشئ فی الخاج دئ بل طلب دحصول الشئ فی الذهن دئ طلب دحصول الشئ فی الخارج په **اَمر** کيږي طلب دحصول شئ فی الذهن په استفهام کيږي مثال لکه چي زه تاته ووايم **اَين بَيْتُکَ** ستا کور چيري دئ تا ما ته وويل زما کور له دیوبند سره دئ دلته دمتکلم مقصد حصول شئ فی الخارج نه دئ چي ته ستا کور دلته راوړه مقصد دمتکلم حصول الشئ فی الذهن دئ چي ته ستا کور صرف راوښیه (**والالفاظ الموضعة له**) هغه الفاظ چي داستفهام دپاره وضع سوي هغه ۱- الهمزة ۲- وهل ۳- وما ۴- ومن ۵- واي ۶- وکم ۷- وکیف ۸واین ۹ وانی ۱۰- ومتي ۱۱- وایان

## الاستفهام بالهمزة

فالهمزة لطلب التصديق په استفهام کي تر ټولو زوروره کلمه همزه ده: همزه دوه کاره کوي یو طلب دتصدیق کوي بل طلب دتصور کوي مثال اقام زید قام فعل زید فاعل دفعل او فاعل په مینځ کي نسبة دئ اوس که همزه راغله دنسبة پوښتنه يې کول دې همزې ته ویل کیږي الهمزة لطلب التصديق که همزه راغله دمسند پوښتنه يې کوله فقط یا دمسند الیه پوښتنه يې کوله فقط دې همزې ته ویل کیږي الهمزة لطلب التصور کقولک اقام زید دلته

همزه دنسبة پوښتنه کوي يعنی زيد ولاړ دئ که زيد ولاړ نه دئ وأزيد قائمٌ (او التصور كقولك ادبسٌ فی الاناء ام عسلٌ) دانګور او دخورما جوس ته دِبس وايی اوس زه په دې خبريم چي په اناء کي يو شي ستهٔ خو په دې نه يم خبر چي په اناء کي دِبس دئ که عسل دي يعنی زه تعين غواړم ستا څخه چي په اناء کي دبس دي که عسل دي (أفی الخابية دبسُک أم فی الزّق) دلته زه په دې خبريم چي دبس پراته دي خو په دې خبر نه يم چي دبس په خوم کي دي که په زق کي دي يعنی زه دلته تعين غواړم (ولهذا لم يقبح ازيد قام واعمرًا عرفتَ).

## يوسل اواتم سبق

ازَيدٌ قامَ قبيح نه دئ هل زيد قامَ قبيح دئ أعمرًا عَرفتَ قبيح نه دئ هل عمرًا عرفت قبيح دئ ولي ځکه په ازَيدٌ قامَ کي بطلان نه سته په هل زيد قام کي بطلان سته ځکه تحصيل دحاصل راځي يعنی په ازيد قام کي تحصيل دحاصل نه سته په هل زيد قام کي تحصيل دحاصل سته اوس راسه په هل زيد قام کي تحصيل دحاصل څرنګه راځي يو وار به حکم ثابت وي بيا تخصيص راځي مثلا زه متکلم يم عبدالاحد مخاطب دي دنفس قيام ثبوت عبدالاحد منی زه هَمْ دنفس قيام ثبوت منم خو عبدالاحد دقيامِ ثبوت عمر ته کوي زه دقيام ثبوت زيد ته را اړه وم نو قلب راغلي يا عبدالاحد دقيامِ ثبوت عمر زيد دواړو ته کوي زه قصر کوم قيامه زيد ته ثابتوم عمر ته قيامه نه ثابتوم نو قصر الافراد دئ قصر او تخصيص دنفس حکم دثبوت بعد راځي يعنی قصر دتصديق او دحکم تابع دي يو وار به تصديق وي بيا به تخصيص وي په زيد قامَ کي که قصر الافراد وي که قصر القلب وي نفس قيامه ثابته سوه يعنی حصول التصديق حاصل سو اوس چي ته هل پر داخل کړي نو هل هَم حصول التصديق بالنسبة غواړي له دې وجه دا تحصيل دحاصل دئ دتولي خبري خلاصه داده هر ځای چي تخصيص راغلي وي هلته به نفس حکم ثابت وي نو بيا چي ته هل راوړي نو هل هم ثبوت دنفس حکم غواړي له دې وجه دا تحصيل دحاصل دئ نو هَلْ زَيدٌ قامَ قبيح دئ :

وكذالك هل عمرًا عرفتَ: په عمرًا عرفت كي تخصيص په عمرًا عرفت كي نفس حكم ثابت دئ ما ته هَمْ معلومه ده چي معرفت تا ته ثابت دئ تاته هم معلومه ده چي معرفت تا ته ثابت دئ خو دا نه ده معلومه چي ستا معرفت پر عمر راغلي پر بكر راغلي پر خالد راغلي نو ما تخصيص وكړ چي ستا معرفت پر عمر باندي دئ په عمرًا عرفت كي نفس معرفة ثابت دئ بيا چي ته هل پر داخل كړې نو هل بيا ثبوت دنفس معرفت غواړي له دې وجه دا تحصيل دحاصل دئ له دې وجه هل عمرًا عرفتَ قبيح دئ علامه تفتازاني وايی منم چي په هل عمرًا عرفت كي قبحه سته ځكه عمرًا مفعول دئ مفعول مقدم كيږي دتخصيص دپاره په هل زيد قام كي قبيح ته تيار نه يم يعنی په هل زيد قام كي مطلقا قبحه نه سته په هل زيد قام كي دوه احتماله دي ا يو احتمال دادئ چي زَيْدٌ قَامَ تخصيص فائده كوي بل احتمال دادئ چي زيد قَامَ تقوي فائده كوي : زيدٌ قامَ هغه صورت دئ چي دشيخ او سكاكی ورباندئ اتفاق دئ چی احتمال دتخصيص او تقوی ددواړو لری كه په زيد قَامَ كی تقوی سی نو تخصيص نسته چی تخصيص نسته نوحصول التصديق بالنسبة نسته چی حصول التصديق بالنسبة نسته نو هَل استعمالول پر ځای دی لهذا دتخصيص په صورت كی قبحه سته دتقوی په صورت كی قبحه نسته په هَل عمرًا عرفت كی قبحه سته كه ته سوال وكړی چی ولی ممتنع نه ورته وايی جواب په هَل كی نور امكانات سته دهغه امكاناتو له وجی قبحه ورته وايی (والمسؤل عنه بها هو ما يليها كالفعل فی ضَرَبْتَ زَيْدًا) همزه طلب دتصديق او دتصور د دواړو كوی په اسانه تورو همزه ديوه شی طلب هم كوی نسبة بين الشيئين هم طلب كوی همزه راغلی د همزی ورو سته دمفرد كلمه هم راغلی نسبة بين الشيئين هم راغلی زه به دا څرنگه معلومه وم چی په دی همزی سره استفهام دمفرد شی سوی كه دنسبة بين الشيئين سوی كوم شی چی دهمزی سره متصل وی بس دهغه شی پوښتنه كيږی(أضربت زيدا )دلته مسئول عنه يا ضَرب دی يا دضرب نسبة دی أزيدًا ضربتَ دلته مسئول عنه مفعول دی او الفاعل فی ءَأَنتَ ضَرَبْتَ زَيدًا دلته ته سوال دفعل نه كوی دنسبة سوال نه كوی دزَيدًا سوال نه كوی ته سوال دتاء ضمير كوی نو ته را ولاړسه دتَاء ضمير څخه أَنتَ جوړ كړه

دهمزی سره یی متصل کړه نو معلو مه به سی چی دلته مسئول عنه فاعل دی مثا ل(ءَأَنتَ ضَرَبتَ زَيدًا والمفعول فی أَزَيدًا ضَرَبتَ) دلته مسئول عنه مفعول دئ په أَضَرَبتَ زَيدًا کی که ته سوال وکړي چي په فعل کي دوه شيان دی يو فعل بل نسبة ماته نه معلوميږی چی مسئول عنه څوک دی جواب دواړه ددی امکان لری چی مسئول عنه دی سی خو په سلو کی ۹۹فيصده مسئول عنه فعل وی يو فيصد مسئول عنه نسبة:

فائده: همزه دوه کاره کوي طلب دتصور، طلب دتصديق: همزه دتصور ادراک دمفرد کوي بيا عام تر دئ مسند اليه وي او که مسند وي وغير ذالک مثال الاول أأنت فعلتَ هذا ام يوسف مثال الثانی أَرَاغِبٌ انت عن الامر ام راغب فيه فائده: په همزه دتصور کي به مسئول عنه متصل ذکروي خو ده لره به معادل مقابل ذکروي وروسته ترام غالبًا، کله کله دمعادل دذکر کيدو څخه استغناء راسي مثال قوله تعالى أَأَنتَ فَعَلْتَ هٰذَا بِآلِهَتِنَا يَا إِبْرَاهِيمُ (الانبياء ٦٢) همزه دتصديق ادراک د نسبت تامة کوی بين المسند والمسند اليه ذکر دمعادل دهمزې دتصديق سره ممتنع دئ:

فائده: که چيري ام راغلی وروسته دهمزي دتصور نو دغه ام ته اِم متصله وايی: ام متصله داسي حيثيت لري لکه أَوْ، دام متصله ترجمه: په پښتو کي د ادئ که دادئ که چيري ام راغلی وروسته د همزې دتصديق او يا ترهل قُدِّرَتْ منقطعةً وتکون بمعنی بل يعني خامخا به جمله واقع وي وروسته ترام منقطعه که چيري وروسته تر ام منقطعه مفرد واقع وو نو دغه مفرد به دجملې سره مقدر کيږي نحو احضر الامير ام جيشه ای بل حضر جيشه فائده: دهمزې دتصور په جواب کي نعم نه راځي دهمزې دتصديق په جواب کي نعم او لا راځي:

## اجراء همزة التصور والتصديق

| المثال | الهمزة | ام |
|---|---|---|
| ءَأَرْبَابٌ مُتَفَرِّقُوْنَ خَيْرٌ اَمِ اللهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ (یوسف ٣٩) | (طلب التصور) | متصله |
| قُلْ ءٰاٰلذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ (الانعام ١٤٣) | (طلب التصور) | متصله |
| قُلْ ءٰاٰلذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ اَمِ الْاُنْثَيَيْنِ (الانعام ١٤٤) | (طلب التصور) | متصله |
| اَهُمْ خَيْرٌ اَمْ قَوْمُ تُبَّعٍ (الدخان ٣٧) | (طلب التصور) | متصله |
| ءَاَنْتَ فَعَلْتَ هٰذَا بِاٰلِهَتِنَا يَا اِبْرَاهِيْمُ (الانبياء ٦٢) | (طلب التصور) | متصله |

تشريح دلته ام متصله سره له مابعد حذف دئ (ام غيرک)

| اَتَتَّخِذُ اَصْنَامًا اٰلِهَةً (الانعام ٧٤) | (طلب التصديق) | |
|---|---|---|
| ءَاَنْتُمْ تَخْلُقُوْنَهٗ اَمْ نَحْنُ الْخَالِقُوْنَ (الواقعة ٥٩) | (طلب التصديق) | منقطعه |

تشريح دلته ام منطقعه دئ ام منقطعه مقدر وي په بل سره کلام مشتمل دئ پر دوو استفهامينو اول: ءانتم تخلقونه، وجوابه لا: دوهم را ماخوذ دئ دام څخه اى: بل نحن الخالقون، وجوابه نعم :

| ءَاَنْتُمْ تَزْرَعُوْنَهٗ اَمْ نَحْنُ الزَّارِعُوْنَ (الواقعة ٦٤) | (طلب التصديق) | منقطعه |
|---|---|---|
| ءَاَنْتُمْ اَنْشَاْتُمْ شَجَرَتَهَا اَمْ نَحْنُ الْمُنْشِئُوْنَ (الواقعة ٧٢) | (طلب التصديق) | منقطعه |

لنده کتنه په دغه مثالو کي همزه دتصور ده متصله دئ که چيري جمله په تاويل دمفرد واوري :

| ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمِ السَّمَاءُ بَنٰهَا (النازاعات ٢٧) | (طلب التصور) | متصله |
|---|---|---|
| اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَهْدُوْا مَنْ اَضَلَّ اللهُ (النساء ٨٨) | (طلب التصديق) | |

اَتَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَالَاتَعْلَمُوْنَ ( الاعراف۲۸) (طلب التصدیق)

اَلَمْ اَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ وَاَقُلْ لَّكُمَا (الاعراف ۲۲) ( طلب التصدیق)

## الاستفهام بهل

(هل لطلب التصدیق فحسب) هل طلب د تصدیق کوی بس دغه معرفت تاته کا فی دئ نحو هل قَامَ زَيْدٌ وهَل عَمْرٌو قَاعِدٌ :سکاکی دوی جملی راوړی یوه جمله اسمیه بله جمله نعلیه سکاکی اشاره ودی خواته وکړه چی دهَل مدخول دوی جملی راځی یوه جمله فعلیه بله جمله اسمیه خو هل په دواړو جملوکی طلب تصدیق کوی هل نه قائم غواړی نه زَيْد غواړی هل دا غواړی د قیام نسبة زَيْد ته سته (ولهذا امتنع هَل زَيْدٌ قَامَ اَم عَمْرٌو) د دی وجی چی هل طلب د تصدیق کوی نو دا صورت ممتنع دی اَم متصله د دوو مفرد ینو په مینځ کی وا قع کیږي متکلم مخاطب ته وائی په دی خبریم چي په دوی دوو کي یو دئ خو ته یوازی تعین را ته وکړه مثال هل زید قام ام عمرو دا صورت ممتنع دئ ځکه هل طلب دنسبة نه کوي هل طلب دتعین کوي (وقبح هَلْ زَيْدًا ضَرَبْتَ) هل زيدًا ضَرَبْتَ قبیح دئ په زيدًا ضَرَبْتَ کي دوه احتماله سته یو احتمال ډیر کم دئ هغه دا چي تقدیم درزید دئ دا هتمام دپاره وي دویم احتمال دتخصیص دئ دا احتمال ډیر دئ.

چي ما سي دا احتمال پیدا سو چي تقدیم دئ داهتمام دپاره وي نو دامتناع ځخه را وګر ځيدي وقبیح ته په هَلْ زَيْدًا ضَرَبْتَ کي که تقدیم دتخصیص دپاره سي بیا دا صورت قبیح دئ ولی (لِاَنَّ التقديم يستدعي حصول التصديق بنفس الفعل) ځکه تحصیل دحاصل راځي ( دون هل زيدًا ضَرَبْتَهُ دلته نه قبحه سته نه امتناع سته ځکه دا منصوب علی شریطة التفسیر دئ په منصوب علی شریطة التفسیر کي دا امکان هم سته چي فعل دي مخ ته را وایستل سي دا امکان هم سته چي فعل دي وروسته را وایستل سي مثال الله فرمايي (والجآنّ خَلَقْنَاهُ مِنْ نَارِ السَّمُوْمِ) دا امکان هم لري خَلَقْنَا الجآنّ خَلَقْنَاهُ دا امکان هم لري

والجان خَلَقْنَا: خَلَقْنَاه په هل زيدًا ضربته كي كه فعل مخ ته را وايستل سي داسي وويل سي هل ضَرَبْتَ زيدًا ضَرَبْتَهُ له دې وجه په دې صورت كي قبحه نه سته امتناع نه سته كه فعل وروسته را وايستل سي داسي وويل سي هَلْ زيدًا ضربت ضربته له دې وجه په دې صورت كي قبحه سته ځكه چي په هل زيدا ضربت ضربته كى تقديم راغلي تقديم تخصيص فائده كوي له دې وجه په زيدًا ضَرَبْتَ ضَرَبْتَهُ كي حصول التصديق بالنسبة سته بيا چي ته هل پر داخل كړې داسي ووايې هَلْ زيدًا ضَرَبْتَ ضَرَبْتَهُ نو هَلْ هم حصول التصديق بالنسبة غواړي نو تحصيل حاصل راغلي ځكه دا قبيح دي.

پوښتنه: په زيدا ضَرَبْتَ كي دوه احتماله دي يو احتمال تقديم دزيدا دې دا هتمام دپاره وي دويم احتمال تقديم دزيدا دئ دتخصيص دپاره وي أَيْ قزويني ته دا حتبالا تو له وجهي قبحه دلته ثابته بولي په زيدا ضربته كي هم دوه احتماله دي يو احتمال دادئ چي فعل دي مخته راويستل سى آى ضَرَبتَ زَيدًا ضَرَبتَهُ دلته قبحه نسته دوهم احتمال دادى چى فعل دى وروسته را ويستل سى أى زَيدًا ضَرَبتَ ضَرَبتَهُ دلته قبحه سته آى قزوينى دلته هم دوه احتماله سته خو ته وائى( دُونَ هل زَيدًا ضَرَبتَهُ )قبيح نه دى هَل زَيدًاضَرَبتَهُ جواب قزوينى دلته داويل غواړى كه هرځاى داسى عبارت راغلى آى هَل زَيدًا ضَرَبتَهُ په دى صورت كى فعل مقدم را يستل واجب دى چى تقديم واجب سو نو دابل احتمال ختم سو ځكه قزوينى وائى دلته قبحه نسته اوس كه يو طالب پر تا سوال وكړى چى تا خو معانى وويل هَل زَيدًا ضَرَبتَ اوهَل زَيدًا ضَرَبتَهُ ددى دواړو صورتو څه فرق دى كوم يو غلط دى كم يو صحيح دى نو ته به جواب وركړ ى په هَل زَيدًا ضَرَبتَ كى قبحه سته كه څه هم بناءبر يو احتمال قبحه نسته خو بناء بر يو احتمال قبحه سته :په هَل زَيدًا ضَرَبتَهُ كى قبحه نسته ځكه قزوينى وائى دلته يو احتمال سته بل احتمال نسته (لجواز تقدير المفسر قبل زَيدًا) جائز دى چى مفسر دى مقدر سى مخكى تر زَيد :

(قاعده)یو قسم اعراب راځی هغه اعراب ته اعراب حکائی وائی اعراب حکائی دیته وائی چی یوه کلمه یو ځای پره ته وی ته ولاړ سه دا کلمه غونډه داعراب سره رانقل کړه هغه اعراب ورکه بیا ئی دلته کښیږده یعنی نوی اعراب مه ورکوه مثال قبل زَيدًا: زَيدًا په هَل زَيدًا ضَرَبْتَهُ کی منصوب ؤ په قبل زَيدًا کی قبل مضاف :زَيدًا مضاف الیه : مضاف الیه مجرور وی خو دلته مضاف الیه مجروره نه ده ځکه دا اعراب حکائی دی په اعراب حکائی کی تاته اختیار دی که مخکنی اعراب ورکوی که نوی اعراب ورکوی خو افضل اعرا ب اعراب حکا ئی دی (وجعل السكاكي قبح هَل رَجلٌ عرف لذالك) سکاکی وائی هَل رجل عرف قبیح دی ځکه رجل په اصل کي مؤخر ؤ بیا رجل مقدم سو چی تاکی تخصیص فائده کړی نو رجل عرف کی( حصول التصدیق بالنسبة سته ته چی بیا هَل پر داخل کړی نو هَل هُم حصول التصدیق بالنسبة غواړی نو تحصیل دحاصل راغلی ځکه رجل عرف قبیح دئ پر سکاکي احتراز کیږی اَی سکاکی تا په رجل عرف کی تخصیص لازمی بولی لهذا داد امتناع صورت دی دقبحی صورت نه دئ مخکی سکاکی وویل تخصیص الجنس او تخصیص الواحد په دارکم پیدا کیږی خو یو بل تخصیص النوع ؤ دا تخصیص په تنوین پیدا کیږی چی محض ددی تخصیص امکان پیدا سو نو قبحی ته راواوښتی (ويلزم ان لايقبح هَل زَيدعرف) قزوینی وائی پر سکاکی یو احتراز کیږی پکار داده هَل زَید عرف دسکاکی په نیز قبیح نه سی ځکه سکاکی وویل دمعرفي دتخصیص هیڅ ضرورت نه سته چي تخصیص نه سته نو حصول التصدیق بالنسبة نه سته چي حصول التصدیق بالنسبة نسته نو هَلْ بي ځایه نه دئ نو تحصیل دحاصل نه راغلي خو سکاکی او نور علماء وایی هل زید عرف قبیح دئ (وعَلَّل غيره قبحهما بأن هل بمعنى قد في الاصل غیر دسکاکی نور علماء دواړه قبیح بولي ځکه هل په معنی دقد دئ په اصل کي قد دفعل علامه ده دغه هل چي په معنی دقد دئ دا په اصل کي اَهَل ؤ.

(وتركت الهمزة قبلها لكثرة وقوعها في الاستفهام همزه پرېښودل سوه مخکي تر هل ځکه وقوع دهل ډیره وه په استفهام کي : علامه تفتازانی وایی ستا دخبري څخه درامعلومیږي

چي په کوم ځای کي جمله اسميه وه هلته هل استعمالول قبيح دي حال دا دئ چي تول قران په دې ډک دئ چي هل پر اسميه داخليږي.

علامه تفتازانی بېرته دده جواب ورکوي علامه تفتازانی وايي پر مطلقا اسميه باندي هل استعمالول قبيح نه دي:

دهل استعمالول په هغه جمله اسميه کي قبيح دي چي مبتداء اسم وي خبر فعل وي مثال لکه هل زيد عرف:

موږ علامه تفتازانی ته وويل دا ولی يو جائز دئ لکه هل زيد عارفٌ بل قبيح دي لکه هل زيد عرف علامه تفتازانی وايي هَلْ مأنوس له فعل سره يعنی هل ډېر شناخته دئ دفعل سره څه وخت چي دهل په خواکي فعل راسي نو داسم څخه ډېره گرَگ کوي هل فعل ته زورونه ورو هي:

پر زيد عرف چي موږ هل داخل کړي دئ نو هَل فعل ته زور ورنه ور وهل او ويل اسم ليري کړئ:

په هل زيد عارف کي فعل نه سته نو هل زورونه نه وهي هل کرار ناست دئ په هل زيد عرف کي هل جنګ کوي هل وائی زه فعل غوا ړم اسم نه غوا ړم.

## يو سل اونهم سبق

( وهي تخصص المضارع بالاستقبال فلا يصح هل تضرب زيدًا وهو اخوک کما يصح اتضرب زيدًا وهو اخوک کما يصح اتضرب زيدًا وهو اخوک) قزوينی يوه قاعده بيانوي دهَل په خواصو کي يوه خاصه دا ده هَل مضارع تر استقبال پوري خاص کړي يعنی مضارع مشترکه وي دحال او استقبال هل چي پر مضارع داخل سي مضارع دحال څخه ختم کړي په استقبال پوري يې خاص کړي نو اوس که هل پر مضارع داخل وو او دده وروسته داسي عبارت راغلئ چي مضارع حال ته راکشوي دا ناجائز دي:

ځکه هَل مضارع استقبال ته بيايي او وروسته عبارت مضارع حال ته بيايي له دې وجه دا نه سره جمعه کيږي ځکه حال او استقبال منافی دي:

يا برابره خبره ده كه عمل ددغه مضارع په جمله حالية كي وي مثال اتضرب زيدا وهو اخوک او كه نه وي مثال **اَتَقُولُونَ عَلَى اللهِ مَالَا تَعلَمُونَ**(**وهي تخصص المضارع بالاستقبال**) هل مضارع خاصوي تر استقبال پوري (**فلا يصح هل تضرب زيدا وهو اخوک**، داعبارت نه دي صحيح كما يصح اتضربه زيدا وهو اخوک، دا عبارت صحيح دئ ځكه په همزه كي دا قانون نه سته چي همزه دي مضارع تر استقبال پوري خاص كړي علامه تفتازاني په مختصر المعاني كي صدر الشيرازي په مخ كړي :

صدر الشيرازي په خپل كتاب كي وايي هل تضرب زيدا وهو اخوک نه دي صحيح ځكه هر هغه مضارع چي مقيد بحالٍ وي لكه وهو اخوک پر دغه مضارع حرف استقبال داخلول نا جائز دي حرف استقبال لكه **سِين سَوف لَن هَل** له دې وجه دلته تا پر مضارع هل داخل كړي نو دا ناجائز دي علامه تفتازاني وائي (**ولعمري اَنّ هذه لغرية ما فيها مرية**) والله غټ دروغ دي هيڅ شک پكښي نه سته علامه تفتازاني وائي عربو يوه قاعده ويلې ده چې هر كله مضارع سي نو پر حال باندي به قطعا حرف استقبال نه داخليږي مثال لكه **ياتيني زيدسَيَركَبُ** دلته سيركب حال دئ دا جائز نه دئ ځكه پر حال حرف استقبال داخل دئ صدر الشيرازي ددئ قاعدي څخه غلط فهم كړي دئ وايي هغه فعل مضارع چي عامل وي په حال كي پر دې مضارع حرف استقبال داخلول ناروا دئ له دې وجه دلته صدر الشيرازي غلط دئ :

علامه تفتازاني وايي هغه مضارع چي عامل په حال كي وي هغه د حرف استقبال څخه بد نه وړي **مثال قوله تعالى سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ**) دلته سيدخلون عامل دئ په داخرين كي داخرين حال دئ د سيدخلون د ضمير څخه او حال دادئ چي دلته پر مضارع سين داخل دي بل مثال دحماسي په شعر كي **سَاَغسل عنى العار بالسيف جالبا الخ** دلته سأغسل عامل دئ په جالبا كي جالبا حال دئ د سأغسل د ضمير څخه او حال دادئ چي دلته پر مضارع سين داخل دئ.

**پوښتنه:** ته وايي هغه مضارع چي عامل وي په حال كي هغه مضارع د حرف استقبال څخه بد نه وړي نو بيا ته ولي وايي فلا يصح هل تضرب زيدا وهو اخوک چي دا عبارت **نه دئ**

صحیح دا ولی یعنی مضارع چي عامل په حال کی وي هغه مضارع دسین سوف لن څخه بد نه وړي دهل څخه مضارع ولی بد وړي ؟

جواب: واضع هل ته وویل چي ته به طلب دتصدیق کوې یو بل کار دئ هغه ستا نه دئ خو ته به یی کوي هغه دا چی ته به مضارع تر استقبال پوري خاصوي یعنی دا ستا کار نه دئ ذاتا چي ته به مضارع تر استقبال پوري خاصوي خو په عارضي توګه سره ته مضارع تر استقبال پوي خاص کړه خو سین، سوف ، لَنْ ذاتا مضارع تر استقبال پوري خاصوی :

اوس چي ته هل پر مضارع داخل کړي او مضارع مقیده په حال سي نو حال به دهل عارضي کار ورختم کړی هغه عارضي کار دهل تخصیص دمضارع تراستقبال پوري دئ نو ځکه دا عبارت نه دي صحیح هل تضرب زید وهو اخوک خو سین سوف لن چي پر مضارع داخل سي او هغه مضارع عامل وي په حال کي نو حال دسین سوف لن ذاتي کار نه سي ختم کولای نو ځکه دا عبارت صحیح دي سَيَدۡخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ :

(ولاختصاص التصدیق بها وتخصیصها المضارع بالاستقبال))

هل دوه کاره کوي یو کار هل طلب دتصدیق کوي دویم کار فعل استقبال ته اړه وي :

اوس به هل هغه کلمې ته ورځي چي هغه کلمه طلب دتصدیق هَم کوي مضارع استقبال ته هم اړه وي نو هغه کلمه څوک ده هغه کلمه فعل ده هغه کلمه اسم نه ده دهل خپل ذاتي ځای فعل مضارع ده هل که پر اسمیه داخل سو نو خلاف دمقتضی ظاهر الحال دئ دځان سره به یوه نکته را اخلي :

علامه تفتازانی وایی فعل داستقبال سره خوکارلري خو فعل دتصدیق سره څرنګه کار لري په دې ځای سر را خلاص کړه علامه تفتازانی وائی تصدیق هر هغه ځای راځي چي نفی او اثبات وي یعنی تصدیق پر نفی او اثبات تاویږي را تاویږي او فعل په نفی او اثبات کي اصل دئ تر اسم نو فعل دتصدیق ډیر حقداره دئ تر اسم هر ځای که هل پر فعل مضارع داخل وو نو دا مطابق دئ دمقتضی ظاهر الحال که هل پر اسمیه داخل سو نو خلاف دمقتضی ظاهر الحال دئ دځان سره به یوه نکته رااخلی (ولاختصاص التصدیق بها) هل مقصور دئ په تصدیق کي (وتخصیصها المضارع بالاستقبال)

هل مضارع تر استقبال پوري خاصوي (کان لها مزيد اختصاص) هل لره زيات اختصاص دئ (بما کونه زمانيا اظهر) به هغه شي چي دهغه شی زمانية کېدل ډير اظهر دئ (کالفعل لکه فعل:

## قزويني قاعده بيانوي :

ځلورجملي دي اوله جمله فَهَلْ اَنْتُمْ شَاكِرُوْنَ دويم جمله فَهَلْ تَشْكُرُوْنَ دريمه جمله فَهَلْ اَنْتُمْ تَشْكُرُوْنَ څلورمه جمله اَفَاَنْتُمْ شاكِرُوْنَ دا څلور سره جملې پر طلب دشکر دلالت کوي چي شکر باسه خو دشکر په طلب کي تر ټولو زورور فَهَلْ اَنْتُمْ شاکرون دئ ولي ځکه چي هَل وويل سي دماغ استقبال ته ولاړ سي تا چي تر هل لاندي داسي عبارت کښېږدوي چي هغه پر ثبوت دلالت کوي نو هل استقبال ته زوروهي هغه عبارت چي تا تر هل لاندي را وړي هغه ثابت دئ ولاړ دئ څه معنی دا معنی تا چي دهل مدخول جمله اسميه را وړه نو هَل تا ته دا ښکاره کوي هغه شي چي بعد کي را روان دئ دومره مي خوښ دئ چي هغه شي چي وروسته کي را روان دئ بس هغه سوي وبوله په وروسته کي يله کوه هغه وسو ثابت سو انتظار نه کوم نو که تر هل لاندي جمله اسميه راغله نو به ابراز وکړي دهغه شي سَيَتَجَدَّدُ چي هغه شي ددې مابعد په وجود کي رائحي په شکل دثابت کي دا کار په هل تشکرون کی نه سته ځکه دلته ابراز دماسيتجدد فی معرض الثابت نه سته داکار فهل انتم تشکرون کي نه سته که ته سوال وکړي چي دا جمله اسيمه ده ؟

جواب دافعليه ده تقدير دعبارت فهل تشکرون تشکرون په دې کي هم ابراز دماسيتجد دفی معرض الثابت نه سته دا کار اَفَاَنْتُمْ شَاكِرُوْنَ کي هم نه سته ځکه دا خلاف دمقتضی ظاهرالحال نه دئ نو دا نکته پکښي نه سته چي ابراز دماسيتجدد په شکل دثابت کي وکړي (ولهذا کان فهل انتم شاکرون ادل علی طلب الشکر من فهل تشکرون وفهل انتم تشکرون) ددې وجه فهل انتم شاکرون پر طلب دشکر ډير دلالة کوي تر هل تشکرون وترهل انتم تشکرون وتر افأنتم شاکرون (لان ابراز ما سيتجدد) ځکه ښکاره کول دهغه

شي چي ددې ما بعد په وجود کي راځي (فی معرض الثابت) په معرض د ثابت کي (ادل علی کمال العنایة بحصوله) ډیر دلالة کوي چي ددې د حصول پوره پوره قصد وسي چي خامخا یی غوارم (ومن افانتم شاکرون).

## یو سل او لسم سبق

(وان کان للثبوت که څه هم افانتم شاکرون پرثبوت باندی دلالت کوي ولی لکونها جملة اسمیة (لا ن هل ادعی للفعل من الهمزة) ځکه هل ډیر غوښتونکی د فعل دی تر همزی (فترکه معها ادل علی ذالک) ترک د فعل هل سره ډیر دلالت کوی پر دی چی زه فعل غوارم (ولهذا لا یحسن هل زید منطلق الا من البلیغ) که غیر بلیغ هَل پر جمله اسمیه داخل کړی نو بی خوندی ده ځکه دده هغه مخکنی نقطه مقصد نه وی که بلیغ سړی هل پر جمله اسمیه داخل کړی نو خوند وردی ځکه دده هغه مخکنی نکته مقصد ده (ولهذا داغه خو وجه ده لا یحسن هل زید منطلق) داعبارت خوند نه کوی (الا من البلیغ مګر د بلیغ سره خوند کوی الله تعالی فرمائی فَهَل اَنتُم مُسلِمُون دلته الله تعالی دا ښکاره کوی چی ځای خود همزی دی خو زه هَل راوړم بیا هل پر فعلی راځی خو زه هَل پر اسمیه داخلوم ددی د پاره چی زه ستا د مسلمانی ډیر زیات طلب ګاره یم خو ستا د پاره نه د ځان د پاره:

علمی نکته: که ټوله نړۍ د خدای باغیان سي د خدای په خدایي کی هیڅ کمبوت نه راځي که ټوله نړۍ عابدان اوزاهدان سي د خدای په خدایي کی هیڅ زیاتوب نه راځی دازموږ ایمان او عقیده ده (وهی قسمان بسیطة ومرکبة) که چیری د هَل په ذریعه باندی وچ په وچه دیو شي د وجود طلب کیدی دیته هَل بسیطة وائی وهي التی یطلب بها وجودلشی) هل بسیطه هغه دئ چي په ده سره طلب کیږي وجود د شي (کقولنا لکه دا قول زموږ (هل الحرکة موجودة) ایا حرکة موجود دئ که یا:

په هل بسیطه کي مطلب وجود د حرکة دئ فقط که چیري په هل دا طلب کېدی چي داشی ددئ شي د پاره وجود لري که یا دې ته هل مرکبه وایي.

(ومركبة وهي التي طلب بها وجود شيء لشيء) هل مركبه هغه دئ چي په ده سره طلب كيږي وجود لره ديو شي بل شي لره (كقولنا) لكه دا قول زموږ (هل الحركة دائمة) ايا حركت دائم دئ كه يا مطلوب په هل مركبه كي وجود ددوام حركت لره دئ يا عدم وجود ددوام حركت لره دئ نو په هَل مركبه كي دوه شيان معتبر سو يو حركت بل دوام.

**قاعده:** هل طلب دتصديق كوي فقط، دده سره معادل نه ذكر كيږي وروسته تر ام متصله، هل پر مضارع داخليږي حال ختم كړي تر استقبال پوري يې خاص كړ، هل كه پر ماضي داخله سي پر خپل حال ئې پريږدي، هل كه پر اسميه داخل سو نكات بلاغيه به لري وهي قسمان بسيطة ومركبة :

## اجراء هل

| المثال | هل | المدخول |
|---|---|---|
| فَهَلْ وَجَدْتُّمْ (الاعراف۴۴) | (طلب التصديق | ماضي |

**تشريح:** دلته هل طلب دهغه وجدان كوي چي نسبت يې وتُمْ ته سوي دلته دهَل معادل نه دئ ذكر، دلته هَلْ پر ماضي داخل دئ او ماضي پر خپل حال پاته ده دلته هل مركبه ده:

| المثال | هل | المدخول |
|---|---|---|
| هَلْ نُنَبِّئُكُمْ ( الكهف ۱۰۳) | (طلب التصديق ) | مضارع |

**تشريح** دلته هل طلب دتصديق كوي، دلته هل پر مضارع داخل دئ دهل سره معادل نه دئ ذكر، :

| المثال | هل | المدخول |
|---|---|---|
| هَلْ اَدُلُّكُمْ ( الصف ۱۰ | ( طلب التصديق) | مضارع |

**تشريح:** دلته هل طلب دتصديق كوي ، دلته هل داخل دئ پر مضارع باندي معادل ورسره نه دئ ذكر :

| المثال | هل | المدخول |
|---|---|---|
| وَهَلْ اَتٰكَ نَبَؤُا الْخَصْمِ ( ص ۲۱) | (طلب التصديق | ماضي |

تشریح: دلته هل طلب دتصدیق کوي، دلته هل پر ماضي داخل دئ، او ماضي پر خپل حال پاته ده :

| فَهَلْ اَنْتُمْ مُسْلِمُوْنَ (هود ۱۴) | (طلب التصدیق) | اسمیه |
|---|---|---|

تشریح: دلته هل طلب دتصدیق کوي یعني هل طلب دهغه نسبت کوي چي هغه نسبت په مابین دانتم او مسلمون کي دئ، او دده سره معادل ذکرنه دئ دلته هل مرکبه دئ :

څلورم عبارات موږ ویلي وه فهل انتم مسلمون، هل تُسلمون هل انتم تسلمون، افانتم مسلمون تر ټولو زورور عبارت فهل انتم مسلمون دئ ځکه نکته بلاغیه لري که هل پر ماضي داخل سي نو دا معنی زه ددې ډیر خواهش کومه چي ته دي مسلمان وای که هل پر مضارع داخل سي نو دا معنی زه ددې ډیر خواهش کومه چي ته دي بیا مسلمان سي دااستقبال معنی لیکن الله دا غواړي چي ته دی مسلمان یې همیشه :

| فَهَلْ اَنْتُمْ شَاكِرُوْنَ (الانبیاء ۸۰) | (طلب التصدیق) | اسمیه |
|---|---|---|

ترجمه اې تاسو ګرسره شکرباسي که نه دا ګیله ده، امر هم دئ پیغور هم دئ، استفهام هم دئ :

| فَهَلْ اَنْتُمْ مُنْتَهُوْنَ (المائده ۹۱) | (طلب التصدیق) | اسمیه |
|---|---|---|

ترجمه: اې ګرسره تاسو دشرابو او دقمار څخه راګرځي یعني تاسو پریښونکی یاست ددغه منکراتو څخه :

تشریح: دلته هل داخل دئ پر اسمیه لنکتة بلاغیة: نکته بلاغیه داده الله پاک موږ ته دا ویل غواړي چي زه تاسو راښند ومه دقمار او شرابو څخه زما مقصد په ماضي کي بندول نه دي نه په حال کي نه په استقبال کي الله وایي زما مقصد دادئ چي ټول عمر دقمار او شرابو څخه بند سئ، :

| فَهَلْ اَنْتُمْ مُصْلِحُوْنَ (الصافات ۵۴) | (طلب التصدیق) | اسمیه |
|---|---|---|
| هَلْ اَنْتُمْ مُغْنُوْنَ (ابراهیم ۲۱) | (طلب التصدیق) | اسمیه |
| فَهَلْ اَنْتُمْ مُسْلِمُوْنَ (الانبیاء ۱۰۸) | (طلب التصدیق) | اسمیه |

هَلْ اَنْتُمْ مُجْتَمِعُوْنَ (الشعراء ۳۹) (طلب التصديق) اسميه

باقي الفاظ داستفهام دتصور دپاره دي فقط هغه الفاظ دادي ما، ومتى، وايّان، وكيف، واين، وانّى، وكم، وايّ،

## الاستفهام بباقي الالفاظ الاستفهامية

(والباقية أى الالفاظ الباقية للاستفهام باقي ټول الفاظ داستفهام.
(لطلب التصور فقط) صرف طلب دتصور كوي فقط اسم فعل بمعنى اِنتَهِ فاء په فقط كي فضيحية ده.

نو دا معنى اذا طَلَبْتَ بها التصور فَانتَهِ عن غير هذا الطلب (قيل فيطلب بما شرح الاسم كقولنا ما العنقاء او ماهية المسمي كقولنا ما الحركة) ځينى وايى په ما سره طلب كيږي دشرح الاسم يعنى ما وايى ددي اسم تشريح او وضاحت راته وكړه لكه الله وائى مَاتِلْكَ بِيَمِيْنِكَ يَا مُوْسٰى: داستا په لاس كى څه شى ده وضاحت راته وكړه: قَالَ هِىَ عَصَايَ: موسى وويل زماپه لاس كى لكړه ده. سر دى نسو خلاص دا يوشى دى زه ورباندى جاهل يم پيژنم يى نه مثلا انسان زه نه پيژنم ورباندى جاهل يم نولفظ ما وائى ددى شى تشريح وضاحت وكړه ته به جواب په لفظ اشهر وركوى كقولنا لكه دا قول زمونږ ما العنقاء عنقاء څه شى دى ته به جواب وركوى طائر: يا طائر عجيب (او ما هى المسمى) دا يو شى دى زه دا شى په عوارضو پيژنم خو زه دا شى په ذاتياتو نه پيژنم مثلا انسان زه په طول او په عرض پيژنم خو انسان زه په ذاتياتو نه پيژنم نولفظ ما وائى ددى شى ذاتيات راته بيان كړه ته به په جواب كى جنس او فصل راوړى: كقولنا ما الحَركة: ما الانسان: ته به جواب وركړى: حيوان ناطق

:(وتقع هَل البَسِيطة فى الترتيب بينهما) ما طلب دشرح الاسم هم كوى: ما طلب دما هية المسمى هم كوى زه به ددى څرنګه فرق كوم: قزوينى وائى كه د هَل بسيطى مخته ؤ نو شرح الاسم دى: كه دهَل بسيطى ورسته ؤ نو ماهية المسمى دى سر مى نسو خلاص مثال دعبدالله سره مبايل دى ماورڅخه پوښتنه وكړه چى داڅه شى دى عبد الله راته وائى دادخبرو يو آله ده يوپه افغانستان كى وى بل په پاكستان كى وى خبرى سره كوى: نو زه

ورته حیران سوم ماورته وویل داوجود لری که نه : دی وائی ؤ وجودلری :نوماورته وویل سم ئی راوښیه دی وائی داسی شی دی ښتنان لری کارډ ورجمعه کیږی بیا خبری په کوی نوګوره مااول وار دده څخه پوښتنه وکړه چی ته د مبایل وضاحت وکړه ده وضاحت راته وکړی بیا ماورته وویل داوجود لری که نه : ده وویل بلکل د ټولوسره سته یو ستاسره نسته نو اول وار شرح الاسم ؤ دوهم وار ماهیة المسمی ؤ په مینځ کی هَل بسیط ؤ چی دا وجودلری که نه :(**وبِمَن العارض المشخص لذی العلم**) عارض پردوه قسمه دئ یو هغه عارض دئ چی ما به الامتیاز را ولی مثال اَجمَل : طالبه اجمل ماته عارض دی امتیازد ټولو ماعدا څخه راولی : بل هغه عارض دی چی ما به الامتیاز نه را ولی مثال لکه ضاحک : ضاحک ماته عارض دی خو زما امتیاز دټولو انسانانو څخه نه راولی نو عارض دوه قسمه سو یو مشخص لکه اَجمل بل غیر مشخص لکه ضاحک : په من سره دعارض سوال کیږی خو دا عارض به مشخص وی او ذی علم به وی (**کقولنا مَن فی الدار**) په کور کی څوک دی وائی زید :

## یو سل اویولسم سبق

(**وقال السکاکی یسئل بما عن الجنس**)سکاکی وائی په ما سره سوال کیږي له جنس څخه بیا عام تردی جنس د ذوی العقول څخه وی (**تقول ماعندک ای ایُّ اجناس الا شیاء عندک**)ددغه اشیاء کم جنس ستا

سره دی (**وجوابه کتاب ونحوه**)زما سره کتاب دی یا فرس دی یا حمار دی (**او عن الوصف**) یا په ماسره سوال کیږي دوصف (**تقول ما زَید**) زید خوئ لری (**وجوابه الکریم ونحوه**)ته جواب ورکړه زید کریم :یازید شجاع دی :(**وبمن عن الجنس من ذوی العلم**)سکاکی وائی په من سره سوال کیږي دجنس څخه خو داجنس به دذوی العقول څخه وی (**تقول من جبرئیل**) جبرائیل څوک دی : اَی اَبشراً ملک اَم جنی : جبرائیل بشر دی :ملک دی :جنی دی : داد سکاکی قول ؤ : خو قزوینی وویل په من سره سوال کیږي دهغه عارض چی

مشخص وی او امتیاز دما عدا څخه راولی : جنس خو ما به الاشتراک دی مابه الا متیاز نه دی (**وفیه نظر**) په دی کی نظر دی ځکه په من سره سوال کیږي دمابه الا متیاز: نه دما به الاشتراک که چادرته وویل من جبرئیل : ته به په جواب کی ورته ووائی ملک یاتی بالوحی الی الانبیاء من عند الله :(**عمّا یمیز به احد المشارکین فی امر یعمهما**) دا دوی ډلی دی په دی شی کی شریکان دی اَیْ یودهغه بله څخه جلا کوی په دی شی کی یعنی اَیْ ما به الامتیازرا ولی (**وبأیٌّ عما یمیز به احد المشارکین**) په اَی سره سوال کیږی دهغه شی چی په هغه شی سره جلا کیږی یو دمشارکینو (**فی امر یعمهما**) جلا والی په هغه امر کی وی چی دواړو ته عام وی **نحوه اَی الفریقین خیر مقامًا** په دوو فریقینو کی درتبې په لحاظ کومه فریقه ښه ده مؤ منان او کافران دواړه مشترک دی په فریقه کی اَی انحن ام اصحاب محمد صلی الله علیه وسلم (**وبکم عن العدد**) په کم سره سوال کیږی له عدد څخه نحو **سَل بَنِی اِسرائیل کم اٰتینٰاهُم من ایةٍ بینةٍ** اَي کم آیة آتیناهم عشرین ام ثلاثین :

علامه تفتازانی دلته یوه نکته وايي علامه وایی دلته کم مجازا استعمال سوي دي ځکه که خدای ته نبنانی نه واي معلومي بيا الله دنبنانی طلب کوی له دي وجه لله دنبنانې طلب نه کوي اصل کي الله توبیخ کوي توبیخ معنی زجر ،

دلته مِن آیة تمیز دئ دکم .

**قاعده**: که دکم او دده دتمیز په مینځ کي فعل متعدي راغلي په دې صورت کي پر تمیز من جاره زائده داخلول ضروري دي :

(**وبکیف الحال**) په کیف سره سوال کیږي دحال او کیفیة یعنی په کیف سره دهغه حالاتو سوال کیږي چي تا ته در عارضیږي (**وبأینَ عن المکان**) په این سره سوال کیږي دمکان څخه مثال این جلست(**وبمتی عن الزمان**) په متي سره سوال کیږي دزمان څخه دا زمان که ماضی وي که مستقبل وي مثال متی جئت متي تاتي (**وبأیان عن الزمان المستقبل**) په ایان سره سوال کیږي دمستقبل (**قیل ویستعمل فی مواضع التفخیم**) اهل معانی والا وائی

ایان مستعملیږي دتفخیم په مواضع کي یعنی په امورعظام کي **(نحوایان یوم الدین)**
خو نحویان وایی فرق نه لري که امور عظام وي که غیر امور عظام وي ایان مستعملیږي .

## یو سل او دولسم سبق

**(وآنی تستعمل تارة بمعنی کیف)**

اَنی کله کله راځي لتعمیم الاحوال تعمیم الا حوال دا معنی چي په کوم حالت او کوم کیفیة ته ورځي په دې صورت کي اَنَّ په معنی **دکیفَ وي** خو علامه یې داده چي دده وروسته به خامخا فعل وي **(نحو فاْتوا حرثکم انی شئتم)** الایة ترجمه نو راځي ځای دکرولو خپلو ته څنګه چي خوښه وي ستاسي:

دلته الله جل جلاله پر یهودو رد وکړ: یهودیانو به ویل که سړی له ښځي سره ددبري له خوا څخه په قبول کي جماع وکړي نو اولاد به یې چېک (کږ سترګی) وي نو الله جل جلاله رد وریاندي وکړ الله وایی اختیار په احوالو کي دئ په مکان کي اختیار نه سته .

**(واخری بمعنی مِن اَینَ)** اَنَّی کله کله په معنی **دمِن اَینَ** وي نحو **اَنَّی لکِ هذا: الایة اَی مِن اَینَ لکِ هذ الرزق :**

علامه تفتازانی وائی اَنَّی چي په معنی دمِن اَینَ سي بیا دده وروسته فعل نه راځي :

**(وقوله تستعمل)** په تستعمل کي اشاره ده ودې ته چي اَنَّی مشترک لفظي دئ په مابین کي دکیف ومِن اَین خو په یوه کي حقیقة دئ په بل کي مجاز دئ لا علی التعین :

اَنی دا احتمال لري چي اَنی په معنی داَینَ دئ خو په استعمال کي مِن ورسره وي مِن کله ظاهر وي مثال مِن اَنی عشرون لنا الخ اَی مِن اَینَ عشرون لنا مِن کله مقدر وي کقوله تعالی **اَنَّا لکِ هذا** ای مِن اَینَ لکِ هذا الرزق :

**ثم هذه الکمات کثیرما تستعمل فی غیر الاستفهام)** ثُمَّ پر دوه قسمه ده تعقیب مع الفصل ،تعقیب ذکري، تعقیب مع الفصل دې ته وایی چي یو شي ذکر سي وروسته تر بل شي خو په

زمانه کي به مُهلت وي تعقيب ذکري کي دې ته وايي چي ددې خبري بعد دا خبره واوره ، نو دا معنی ددې خبري بعد دا خبره واوره دغه کلمات استفهاميه بيخی زيات کرت مستعمليږی په غير داستفهام کی: لکن په بقرينة صارفة عن حقيقة الاستفهام (کثيراما تستعمل) ترکيب کثير اما مفعول فيه دی دتستعمل نور ددی تحقيق مخته تير سوی دی (کالاستبطاء) استبطاء له بطوء څخه ده په پښتو کی دبطؤ ء ترجمه ځنډ کول ماته کوره زما او د عثمان سره جنګ دی زه عثمان ته وايم په ما کرم يی عثمان ماته وايی ته په ما کرام يی، زه عثمان ته وايم کم دَعَوتُکَ څومره دعوت ماتاته کړی خو تا ځنډ پکښی ايستلی : نه دا معنی چی ما تا ته څو واره دعوت کړی (والتعجب) سليمان عليه السلام هغه باد شاؤ جن :انس غرونه پر ټولو شيانو الله پاک سليمان عليه السلام ته باد شاهی ورکړی وه :سليمان عليه السلام ټول مرغان را وغوښتل ملا چرګک پکښی نهٔ نو سليمان عليه السلام وويل: مَالِيَ لاَ اَرَی الهُدْهُدَ: هد هد نه وينم ليدل او نه ليدل دادته يو کيف ورعارض دی : ددی کيف سوال دی دبل څخه نه کوی لهذا دلته استفهام نسته :داتعجب دی نو دا معنی هد هد خودلی سته عجيب نه ده نه ئی وينم (اَمْ کَانَ مِنَ الغَآئِبِينَ) که نسته (والتنبيه على الضلال :نحو فَاَيْنَ تَذْهَبُونَ: دلته متکلم الله دی الله ته ټول اشياء اَوضَح دی نو الله پاک استفهام نه کوی :الله پاک وائی ما نبی درواستوی معجزی می په لاس ورکړی : وحی می په لاس ورکړی : په بدله کی جنة درکوم خپله رضاء او محبة درکوم خو بيا هم ته مندی ورڅخه وهی : نبی ته نژدی نه راځی نو الله پاک وائی فَاَيْنَ تَذْهَبُونَ ته پر کومه مندی وهی يعنی خير دلته دی خو ته بل ځای ته مندی وهی نو ګمراه يی :

(والوعيد) کله کله استفهام ددَمګی دپاره وی (کقولک) لکه دا قول ستا :لِمَن : هغه چاته (بسئ الادب) چی بی ادبه وی (اَلَمْ اُؤَدِّبْ فُلاَنًا) ته داستاذ ادب نه کوی يعنی دا معنی چی څوک داستاذ ادب نه کوی تاوان لری لکه پښتانه وائی داکار نه کوی ما اوتا به يي سره ګورو :( اذَا عَلِمَ ذٰلِکَ ) هغه وخت چی مخاطب په دی خبر وی (والامر نحوه فَهَل اَنتُم

مُسْلِمُونَ) تاسو نه مسلمانیږی یعنی مسلمانان سی (والتقریر بایلاء المقرر به الهمزة کمامر) کله متکلم اقرار کول غواړی په مخاطب باندی داستفهام ترجمه را ویبنوه:: دتقریر ترجمه ووایه شاباس :مثال ﴿اَلَيْسَ اللهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ﴾خدای پاک دخپل بنده کافی نه دی یعنی دلته متکلم مخاطب ته دا ویل غواړی چی دا ووایه الله پاک دخپل بنده کافی دی :کله به همزه دتقریر دپاره وی کله به همزه دتقریر او تثبیت دپاره وی

تقریر دا معنی چی متکلم په مخاطب باندی اقرار کول غواړی : تقریر او تثبیت دامعنی چی متکلم مخاطب ته دا وائی چی دا خبره په واقع او نفس الامر کی دارکم دی کله به متکلم په مخاطب باندی دفاعل اقرار کول غواړی :کله به دمفعول : کله به دفعل :بس که هریو همزی ته نیژدی ؤ متکلم په مخاطب باندی دهغه اقرار کول غواړی (بایلاء) متصل به راوړی (المقرر به ) چی په کم شی ته اقرار کول غواړی (الهمزة کمامر) متصل به وی دهمزی سره کمامر لکه تیر چی سو (والانکار) کله کله همزه وایی والله که دارکم وی قوم نبی ته وائی دابُت بر حق دی لکه ستا خدای : نبی ورته وویل (اَغَيْرَ اللهِ اَتَّخِذُ وَلِيًّا) دخدای څخه ما سوا زه بل دوست نیسم والله که بل دوست ونیسم صرف الله دوست نیسم :

(والانکار کذالک نحو اَغَيْرَ اللهِ تَدْعُونَ)دخدای څخه به غیر نور راغواړی دخدای څخه ماسوا بل څوک مه را غواړی :

## یو سل او دیارلسم سبق

(ومنه اَلَيْسَ اللهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ اَی اَللهُ كَافٍ لان النفی اثبات و هذا مراد من قال ان الهمزة للتقریر بما دخله النفی لا بالنفی ) مخکی موږ وویل همزه کله دانکار دپاره وی : اوس علماء وائی په اَلَيْسَ اللهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ کی همزه دانکار ده : بعض علماء وائی په﴿ اَلَيْسَ اللهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ﴾ کی همزه دتقریر ده : قزوینی دواړه سره جمع کړی :یعنی قزوینی وائی همزه دی هم دانکار سی : همزه دی هم دتقریر سی په ﴿اَلَيْسَ اللهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ﴾ کی همزه دانکار

ده :ځکه نفي چې پر نفي داخلي سي اثبات فائده کوي یعني همزي لیسَ وخوري لَیسَ بیا همزه وخوره نو پاته بیا اَللهُ کَافٍ عَبدَهٗ سو نو دا معنی الله کافي دی دخپل بنده :هغه علماء چې همزه دتقریر بولي پر هغه اعتراز دی حاصل داعتراض دادی تقریر خودیته وائي چې دهمزي مابعد کم عبارت راغلی متکلم په مخاطب باندی ددی عبارت اقرار کول غواړی:متکلم ومخاطب ته په خارج کی دهغه تصدیق کول غواړی :نو اَلَیسَ اللهُ بِکَافٍ عَبدَهٗ: دا معنی خدای دبنده بس نه دی خدای دبنده کافي نه دی :الله پاک دارکم نه وائي : الله پاک دارکم وائي خدای دبنده کافي دی : لهذا که همزه دتقریر دپاره سی نو به موږ نفي وکړو او نفي به په خارج کی ثابت کړی :علامه قزویني اوعلامه تفتازاني ددی جواب ورکړی : سم ورته مُتَوجِّه سی :قزویني وائي یو خبره واوره همزه د تقریر دپاره هله کیږی چې یو وار همزه دانکار دپاره سی وائي سر می نه سو خلاص ما ته ګوره همزه به دوه کار وکړی یو وار به همزه لیسَه ته په غیږ ورسی او لیسَ به لری کړی : بیا به همزه راپورته سی دمابعد عبارت به تقریر وکړی : علامه تفتازاني یوه کلي قاعده بیا نوی : علامه تفتازاني وائي همزه په سری باندی دموجوده عبارت تقریر کول نه غواړی : همزه دا غواړی : ماته ګوره زه متکلم یم ته مخاطب یې. متکلم مخاطب ته وائي ته زما عبارت ته وګوره زماځه غرض دی ددی عبارت ځخه نو همزه دموجوده عبارت اقرار په تا باند نه کوی همزه دهغه شی اقرار په تا باند کوی چې هغه دمتکلم مراد وی : تفتازاني وائي هرځای که همزه دتقریر راغله مخاطب به دمتکلم مراد ته ګوری دهغه مراد اقرار به کوی اوس راسی عبارت ولګوو : (ومنه اَلَیسَ اللهُ بِکَافٍ عَبدَهٗ اَی اللهُ کَافٍ) (لان نفی النفی اثبات) ځکه نفي دنفي اثبات وی (وهذا مراد من قال انّ الهمزة فیه للتقریر) دامراد دهغه چادی چې وائي همزه په دغه ترکیب کی دتقریر دپاره ده : (بما دخله النفی) په سبب دهغه چې پر هغه نفي داخلي دی : وهو الله کافٍ : (لا بالنفی) دنفي اقرار نه کوی : وهو لَیسَ اللهُ بِکَافٍ : (ولانکار الفعل صورت اخری) دفعل انکار دپاره څو نورصورتونه دی : موږ مخکی وویل که دهمزي سره متصل وُ هغه منکر دی : (وهی نحو اَزَیدًا ضَرَبتَ اَم عَمرًا) ایا تا زید وهلی که عمر یعني تا یو نه دی

وهلی : (لمن یردد الضرب بینهما) هغه څوک چې ضرب متردد بولي په مابین دزید او عمر (والانکار) استفهام انکاری (امّا التوبیخ) استفهام انکاری کله دزجر دپاره وي مثال یو څوک سَرُوز اوری ته ورته وائی (اَعَصَیتَ رَبَّکَ) دخدای نافرمانی کوی یعنی مه کوه دخدای نافرمانی ظالمه : دلته همزه داستفهام معنی نه ورکوی ځکه تا ته دامعلومه ده چی دی دخدای نافرمانی کوی : (اَی مَاکَانَ یَنبغِی ان یکون ذالک : دا مناسب نه ده ته چی یی کوی (نحو اَعَصَیتَ رَبَّکَ) خو داهغه وخت چی توبیخ په ماضی کې واقع وی: (ولایکون نحوہ ولا ینبغی ان یکون اَتَعصِی رَبَّکَ) یایو سړی وائی که دا کارونه سو زه به په استقبا ل کی گناه کوم : ته ورته ووائی اتعصی ربک په استقبال کی ته دخپل رب نافرمانی کوی :یعنی دخپل رب نافرمانی مه کوه ظالمه : (وللتکذیب ) انکار کله دتکذیب دپاره وی مثلا تا یوه خبره وکړه همزه به راسی تاته به ووائی دارکم نه ده یعنی درواغ دی وویل (او للتکذیب فی الماضی ای لم یکن نحوه﴿ اَفَاَصفٰکُم رَبُّکُم بِالبَنِینَ﴾هغه خلق چی وائی ملائکه بنات الله دی :الله پاک وائی دا څومره بی عقلی ده :زوی دیر ښه شی دئ زه به تا خاصه وم په زامونو او زه به دومره کمزوری یم ځان ته به لوښی خاصه وم : فلیس المراد )دارکم نه ده :دادرواغ دی : په دارالعلوم دیوبند کی دثانی درجی یو طالب ؤ داطالب ددارالعلوم دیوبند په منډی کی ؤ په دی منډی کی یو فادری ؤ فادری طالب ته وائی عیسی علیه السلام دخدای زوی ولې نسی کیدا ی :طالب فادری ته وائی تا واده کړی فادری ورته وائی ؤ : طالب ورته وائی څوزامو ن دی دی وائی کس ۱۰ بیا طالب فادری ته وائی زوی به د دوو حالو خالی نه وی یابه وصف وی یابه عیب وی عیب خو نسی کیدای دا خوته نه منی نو ښکاره خبره ده زوی وصف دی فادری وائی ؤ : طالب ورته وائی ته ممکن یی که واجب یی : وایی ممکن یم طالب ورته وائی عجیبه نه ده دممکن کس زامون دی دواجب یو زوی دی او حال دادی چی خدای پاک مستجمیع د ټولو صفاتو دی :نو ښکاره خبره دی چی عیسی علیه السلام دخدای پاک زوی نه دی:(اَی لَم یَکُن )داسی نه ده

نحو (فَأَصْفٰكُمْ رَبُّكُمْ بِالْبَنِيْنَ) ترجمه ای نور غوره کړی یئ تاسی :رب ستاسی په زامونو سره (وَاتَّخَذَ مِنَ الْمَلٰئِكَةِ إِنَاثًا) الخ او نیولی دی له ملٰئکو ښځه ښځی :(أَیْ لَا یَکُوْنَ نحوه أَنُلْزِمُكُمُوْهَا وَأَنْتُمْ لَهَا كَارِهُوْنَ) هندو یا عیسوی به اعتراض وکړی چی تا شیخ الهند ته ایمان ورنصیب کړی ماته دی ایمان نه دی رانصیب کړی ولی : الله جواب ورکړی ایمان دالله رحمت دی ته ایمان نه خوښه وی : نو الله وائی :أَنُلْزِمُكُمُوْهَا وَأَنْتُمْ لَهَا كَارِهُوْنَ: تر جمه ایا مجبور کولی سو موږ تاسی په قبول دهغه سره حال داچی تاسی دغه لره بد ګڼونکی انکار کونکی یاست : (والتحکم) کله همزه دډیری دپاره وی داستهزاء دپاره وی : علامه تفتازانی وائی دبیانینو داقاعده ده که مخته ډیر معطو فات تیرسو ه بیا تا ته اختیار دی که یه پر اول عطف کوی که پر نیږدی عطف کوی تحکم یا عطف : پر استبطاء یا پر انکار : په تولو انبیاء کی شعیب علیه السلام ډیر لمنځونه کول تول عمر به پر لمانځه ولاړ ؤ څه وخت چی ده دعوة ورکړی چی پریږدی بُتان : هغه ظالمان چی تیریدل شعیب علیه السلام ته یه وویل اَښه دالمانځه تا ته ووېل : چی دبتانو عبادت مه کوه د یو خدای واحد لاشریک عبادت کوه دی ظالمانو استهزاء کوله پر شعیب علیه السلام باندی أَصَلٰوتُكَ تَأْمُرُكَ : ستا لمانځه تا ته مشوره درکړه أَنْ نَتْرُكَ چی موږ پریږدو : مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَا هغه چی عبادت کوی زموږ مور او پلار (والتحقیر نحو من هذا) کله استفهام دتحقیر دپاره وي مثلا عثمان ما ته ووېل یو ملا داسي خبره وکړه او هغه ملا دشریعت څخه مخالفه خبره کړې وه زه ورته وایم (من هذا) دا بیا څوک دئ چي داخبره کوي (والتهویل) کله استفهام دتخویف لپاره وي الله پاک خپل احسانونه شماري پر بنی اسرائیلو باندي والتهویل کقراءة ابن عباس (ولقد نجینا موږ نجات ورکړ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ وبنی اسرائلو ته مِنَ الْعَذَابِ الْمُهِيْنِ دعذاب مهین څخه (من فرعون) فرعون یې ګرسره پیژني نه (بلفظ الاستفهام ورفع فرعون (ولهذا قال إنه كان عاليا من المسرفين) (والاستبعاد) کله استفهام داستبعاد دپاره وي داستبعاد ترجمه په پښتو کي چیري دنبی سره غټه معجزه وه دوي ولیده خو ګټه

به يې ورته ونه کړه ( أَنّى لَهُمُ الذِّكْرى وَقَدْ جاءَهُمْ رَسُولٌ مُبِينٌ ) چيرته به نفع ورسوي دوی ته پند اخيستل حال دا چې په تحقيق راغلي و دوی ته رسولان ښکاره بيا نونکي.

## داستفهام مجازي معناګانې

١-: همزه کله دتقرير دپاره وي :

**فائده:** تقرير پر دوه قسمه دئ يو تقرير مطلق بل تقرير په معنی دتثبيت ا و تحقيق: اول: تقرير مطلق دېته وايي چې متکلم همزه استعمال کړي ددې دپاره چې مخاطب دهمزې دمدخول اقرار وکړي شاباس اقرار وکړه دوهم: تثبيت او تحقيق دېته وايي متکلم وايي دهمزې مدخول په واقع او نفس الامر کي محقق او ثابت دئ زه اقرار له تا څخه نه غواړم، دايې يو فرق: دوهم فرق يې دادئ همزه دتقرير لفظا او معنا انشاء ده همزه دتحقيق او دتثبيت لفظا انشاء معنا خبر :

المثال : معنی مجازي

أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى شَهِدْنَا (الاعراف ١٧٢) (التقرير)

ترجمه: ايا نه يم زه رب ستاسي، وويل دوی هو، ( ته رب زموږ يې ) شاهدي وايو موږ :

**تشريح:** دلته همزه دتقرير ده الله پاک استفهام نه کوی ځکه استفهام جهالت غواړي او الله لره جهالت نسته لهذا دلته همزه دتقرير ده يعنی الله په ما او تا اقرار کول غواړي چې ووايه شاباس الست بربکم نو دوی وويل قالوا بلی شهدنا : :

فائده غالبا مقرر به همزې ته يلې وي اوس که تا سوال وکړي چې اقرار خو دهمزې دمدخول وي نو دهمزې دمدخول اقرار دادئ لَسْتَ رَبَّنَا ته جواب ورکړه: مخاطب به دهغه شي اقرار کوي چې دمتکلم مراد وي :

قَالَ كَبِيرُهُمْ أَلَمْ تَعْلَمُوا أَنَّ أَبَاكُمْ قَدْ أَخَذَ عَلَيْكُمْ مَوْثِقًا مِنَ اللَّهِ (يوسف ٨٠) (تحقيق)

ترجمه: وويل مشر ددوی ايا نه پوهيږي چې واقع پلار ستاسي په تحقيق اخيستي وه له تاسي سخته وعده له وعدو د الله:

تشريح دلته همزه دتحقيق دپاره ده چي داخبره په واقع كي داركم ده دلته متكلم اقرار نه غواړي :

قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَکَ اِنَّکَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا ( الكهف ٧٥) ( تحقيق)

ترجمه : نو وويل ( خضر موسى ته ) ايا ما نه وو ويلي تا ته چي واقع ته هر گيز له ماسره دصبر طاقت نه لرې

تشريح دلته همزه دتحقيق دپاره ده يعني ما تاته ويلي وه همزه داقرار دپاره نه ده :

قَالَ اَلَمْ نُرَبِّکَ فِيْنَا وَلِيْدًا ( الشعراء ١٨) ( تحقيق )

ترجمه: وويل (فرعون) ايا موږ تربيت نه وكړی ستا په ( كورونو ) خپلو كښې چي كوچني هلک وې :

تشريح: دلته همزه دتثبيت او دتحقيق دپاره ده :

اَوَلَيْسَ الَّذِیْ ( يس ٨١) ( تقرير)

تشريح: دلته همزه دتقرير دپاره ده مقصد اقرار دئ ځكه جواب وروسته ستہ بَلٰى وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ :

اَلَيْسَ اللّٰهُ بِكَافٍ عَبْدَهٗ ( الزمر ٣٦) (تقرير)

تشريح دلته همزه دتقرير دپاره ده مقصد اقراردئ :

اَلَيْسَ فِیْ جَهَنَّمَ ( الزمر ٣٢) ( تقرير)

قَالَ اَلَيْسَ هٰذَا بِالْحَقِّ قَالُوْا بَلٰى وَرَبِّنَا ( الانعام ٣٠) ( تقرير)

فائده: كله كله په هل سره تحقيق تثبيت وي :

هَلْ اَتٰکَ حَدِيْثُ مُوْسٰى ( طه ٩) ( تحقيق تثبيت)

تشريح دلته هل په معنى دقد دئ :

هَلْ اَتٰکَ حَدِیْثُ الْغَاشِیَةِ ( الغاشیة ۱) (تحقیق تثبیت)

تشریح دلته هل په معنی دقد دئ

هَلْ اَتٰی عَلَی الْاِنْسَانِ ( الانسان ۱) (تحقیق تثبیت)

تشریح دلته هل په معنی دقد دئ :

اَتَخْشَوْنَهُمْ فَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ تَخْشَوْهُ ( التوبة ۱۳) (نهی)

تشریح: دلته همزه په معنی دنهی ده یعنی لاتخشوهم فالله احق إن تخشوه

قَالُوْا اَتَعْجَبِیْنَ مِنْ اَمْرِ اللّٰهِ ( هود ۷۳) (نهی)

تشریح: دلته همزه داستفهام ده مقصود په ده سره نهی دي ای: لا تعجبی :

هَلْ جَزَاءُ الْاِحْسَانِ اِلَّا الْاِحْسَانُ ( الرحمن ۶۰) (نفی)

تشریح: دلته هل په معنی دنفی دئ یعني ما جزاء الاحسان الاالاحسان :

قُلْ هَلْ یَسْتَوِی الْاَعْمٰی اَمْ هَلْ تَسْتَوِی الظُّلُمٰتُ وَالنُّوْرُ ( الرعد ۱۶) (نفی)

تشریح: دلته هل په معنی دنفی دئ یعني لا یستویان :

فَهَلْ اَنْتُمْ مُّنْتَهُوْنَ ( المائده ۹۱) (امر)

تشریح: دلته استفهام په معنی دامر دئ یعنی انتهوا

فَهَلْ مِنْ مُّدَّکِرٍ (القمر ۱۵) (امر)

تشریح: دلته استفهام په معنی دامر دئ یعنی فاحفظوه :

اَغَیْرَ اللّٰهِ تَدْعُوْنَ ( الانعام ۴۰) (انکار)

اَغَیْرَ اللّٰهِ اَتَّخِذُ وَلِیًّا ( الانعام ۱۴) (انکار)

اَتَتَّخِذُ اَصْنَامًا اٰلِهَةً ( الانعام ۷۴) (انکار)

اَفَغَیْرَ دِیْنِ اللّٰهِ یَبْغُوْنَ ( آل عمران ۸۳) (انکار)

| | |
|---|---|
| اَفَمَنْ هُوَ قَائِمٌ عَلٰى كُلِّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ ( الرعد ٣٣) | (انکار) |
| اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ( الصافات ١٥٥) | (انکار) |
| اَلْحَاقَّةُ مَا الْحَاقَّةُ وَمَا اَدْرٰىكَ مَا الْحَاقَّةُ ( الحاقه ٣) | ( تهویل) |

تشريح: دلته ما استفهاميه ده دپاره دتهويل: تهويل معنى يو خطرناک کار غټ ښکاره کول :

فائده: دتهويل سره تخويف لازمي دئ خو دتخويف سره تهويل لازمي نه دئ. دمجازي معنى ترجمه ( تهويل) گرسره خبريې حاقه دئ څه شي :

| | |
|---|---|
| اَلْقَارِعَةُ مَا الْقَارِعَةُ وَمَا اَدْرٰىكَ مَا الْقَارِعَةُ ( القارعه ٣) | ( تهويل) |
| وَمَا اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الْفَصْلِ ( المرسلت ١٤) | ( تعظيم، تهويل) |
| مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ( البقرة ٢٥٥) | (تعظيم) |
| هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰى تِجَارَةٍ تُنْجِيْكُمْ مِنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ ( الصف ١٠) | (تشويق) |
| مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا ( البقرة ٢٤٥) | ( تشويق) |
| مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا ( الحديد ١١) | ( تشويق) |
| مَالِ هٰذَا الرَّسُوْلِ يَاْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِيْ فِي الْاَسْوَاقِ ( الفرقان ٧) | ( تعجب) |
| قَالَ اَبَشَّرْتُمُوْنِيْ ( الحجر ٥٤) | ( تعجب) |
| اَجَعَلَ الْاٰلِهَةَ اِلٰهًا وَّاحِدًا (ص ٥) | ( تعجب) |
| سَوَاۤءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ( البقرة ٦) | ( تسويه) |
| قَالُوْا سَوَاۤءٌ عَلَيْنَآ اَوَعَظْتَ اَمْ لَمْ تَكُنْ مِّنَ الْوٰعِظِيْنَ ( الشعراء ١٣٦) | (تسوية) |
| وَسَوَاۤءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ( يس ١٠) | ( تسويه) |
| سَوَاۤءٌ عَلَيْكُمْ اَدَعَوْتُمُوْهُمْ اَمْ اَنْتُمْ صَامِتُوْنَ ( الاعراف ١٩٣) | (تسويه) |

| | |
|---|---|
| وَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا (ق ٣) | (تعجب، انكار، استبعاد) |
| أَنَّىٰ لَهُمُ الذِّكْرَىٰ وَقَدْ جَاءَهُمْ رَسُولٌ مُّبِينٌ (الدخان ١٣) | (استبعاد) |
| أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَن تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ (الحديد ١٦) | (عتاب) |
| أَفَمَن يَمْشِي مُكِبًّا عَلَىٰ وَجْهِهِ (الملک ٢٢) | توبيخ |
| مَتَىٰ نَصْرُ اللَّهِ (البقرة ٢١٤) | (استبطاء) |
| أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ (الفجر ٦) | (الوعيد) |
| أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ (الصافات ١٧٦) | (الوعيد) |

فائده: همزه كله دانكار دپاره وي انكار دوه قسمه دئ يو انكار توبيخ بل انكار تكذيب، ددواړو ترجمه په پښتو كي انكار توبيخ دامعنى ولى، انكار تكذيب دا معنى دلسي نه ده، انكار توبيخ پر دوه قسمه دئ ماضي مستقبل انكار تكذيب پر دوه قسمه دئ ماضي مستقبل دهريوه جلا جلا ترجمه ده: هغه انكار توبيخ چي په ماضي كي وي دهغه ترجمه داده ماكان ينبغي ان يكون: ښه نه وه چي داكار داتراسوي واى يعنى ولى دي داكار كوئ هغه انكار توبيخ چي په مستقبل كي وي دهغه ترجمه داده لاينبغى ان يكون ښه خبره داده چي داكار دي نسي وه هغه انكار تكذيب چي په ماضي كي وي دهغه ترجمه داده لم يكن نه وه داركم هغه انكار تكذيب چي په مستقبل كي وي دهغه ترجمه داده لايكون داركم به نه وي :

| | |
|---|---|
| كَيْفَ تَكْفُرُونَ (البقرة ٢٨) | انكار توبيخ |

ترجمه: تاسو څنګه دالله ناشكري كوئ شرم نه لرئ ما كان ينبغى ان يكون مناسب نه وه چي دا كار دي سوي واى يعنى ولى دالله ناشكري كوئ دلته مضارع په معنى دماضى ده :

| | |
|---|---|
| كَيْفَ تَكْفُرُونَ (آل عمران ١٠١) | انكار توبيخ |

الله صحابوو ته وایی صحابه کفر نه کوي ته یې فرض کړه تاسو اینده کفر وکړئ نو به څنګه ښه خوند کوئ په داسي حال کی چي پر تاسو به دالله ایاتونه ویل کیږي او په تاسو کي به رسول هم وي نو مناسب نه ده چي داکار دي وسي یعني داکا دي نه کیږي دلته انکار توبیخي په استقبال کي دئ .

أَتُرِيدُونَ أَنْ تَجْعَلُوا لِلَّهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَانًا مُبِينًا ( النساء ۱۴۴) (انکار توبیخ)

ترجمه: ایا تاسو اراده لرئ ددئ چي پیدا کړئ الله لره پر ځانو نو خپلو دلیل ښکاره:

په أَتُرِيدُونَ کي الله انکار توبیخي کوي یعني دغه اراده مه کوئ ښه تاسو دغه اراده لرئ لا ینبغي ان یکون مناسبه نه ده دغه سي اراده یعنی مه کوه دا چم ولی دئ دا چم کوئ دلته انکار توبیخي په استقبال کي دئ:

أَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُونَ وَبِنِعْمَةِ اللَّهِ هُمْ يَكْفُرُونَ ( النحل ۷۲) انکار توبیخ

ترجمه: ایا نه وو دغه (کفار) پرباطلو ( معبودانو) ایمان راوړي او په نعمت د الله ( چي اسلام دئ) دوی کافران کیږي یعنی ایمان پر باطلو معبودانو مه راوړي ولی دوی ایمان راوړئ ولی دوی په نعمت دالله کافران کیږي :

أَئِفْكًا آلِهَةً دُونَ اللَّهِ تُرِيدُونَ ( الصافات ۸۶) انکار توبیخ

ترجمه: ایا په درواغو سره نور معبودان غیر دالله غواړي تاسي: یعني نور معبودان غیر دالله مه راغواړي ولی نور معبودان غیر دالله راغواړي دا ولی:

قَالَ أَتَعْبُدُونَ مَا تَنْحِتُونَ ( الصافات ۹۵) انکار توبیخ

ترجمه: ایا تاسی عبادت کوئ دهغه چاچي تاسو یئ تراشوئ: یعني مناسب نه دئ دغه سی عبادت مه کوه دا چم ولی دا چم کوئ:

فَمَا ظَنُّكُمْ بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ( الصافات ۸۷) انکار توبیخ

تشریح : دلته ما استفهام دئ دپاره دانکاراو توبیخ اې: لیس لکم سبب ولا عذر یحملکم علی الظن :

أَذَٰلِكَ خَيْرٌ نُزُلًا أَمْ شَجَرَةُ الزَّقُّومِ ( الصافات ۶۲)

ترجمه ایا دغه (نعماء دجنت) غوره دي له جهته دمیلمستیا که ونه دزقوم( غوره ده)

تشریح: دلته همزه دانکار توبیخي دپاره ده:

اَسْتَكْبَرْتَ اَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِيْنَ (ص ٧٥) انکار توبیخ

اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ (غافر ٨٢) انکار توبیخ

اَفَاَصْفٰكُمْ رَبُّكُمْ بِالْبَنِيْنَ (الاسراء ٤٠) انکار تکذیب

ترجمه: ایا نو غوره کړي يئ تاسي رب ستاسي په زامونو سره لم یکن داسي نه ده:

اَصْطَفَى الْبَنَاتِ عَلَى الْبَنِيْنَ (الصافات ١٥٣) انکار تکذیب

ترجمه ایا غوره کړي دي دغه (الله) لوڼي پر زامونو: دارکم نسي کیدای چي الله پاک په اینده کي لوڼي پر زامونو غوره کړي:

اَنُلْزِمُكُمُوْهَا (هود ٢٨) انکار تکذیب

اي: لایکون هذا الالزام :

## یوسل او څوارلسم سبق الامر

(ومنها الامر)

له انواع الطلب څخه امر دئ دامر تعریف طلب فعل غیر کف علی جهة الاستعلاء علامه تفتازانی وایی دامر ډیري معناګانی دي ما دقناعت دلائل پیدا نه کړه هر یو خپل دلیل وایی له دې وجه دغه امر داسي پرېښوول ما ته بهتر کار دئ یعنی تفتازانی وایی ښه خبره دا ده چي زه په امر کي خبره ونه کړم قزوینی دامر په صیغه کي یو څه بحث کوي صیغه دامر دری قسمه ده یوه صیغه داده چي مقرون باللام وي مثال لِتَضْرِبْ لِيَضْرِبْ بله صیغه دامر داده چي مقرون باللام نه وي مثال اِضْرِبْ بل هغه اسم فعل چي په معنی دامر وي مثال رُوَيْدَ دلته روید په معنی دأَمْهِلْ دئ (والاظهر ان صیغته من المقترنة باللام نحو لیحضر زید

وغیرها نحو اکرم زیدا وروید بکرًا موضوعة لطلب الفعل استعلاء) دېره ظاهره داده چي صيغه دامر چي هغه عبارت دئ دمقرون باللام څخه نحو ليحضر زيد: چي عبارت دئ دغير مقرون باللام څخه نحو اکرم زیدا وروید بکرا دادرې سره وضع سوي دي لطلب الفعل استعلاء (لتبادر الفهم عندسماعها الی ذالک المعنی) دليل دمجاز متعارف څخه ما سوا تبادر دحقيقة علامه ده تبادر دا معنی یو لفظ ذکر سو دماغ ذهن په تلواره تلوراه حقيقي معنی ته ځي که څه هم په مجاز متعارف کي ذهن مجازي معنی ته ځي :

دليل (لتبادر الفهم دماغ په تلواره ځي (عند سماعها په وخت کي داورېدو دصيغې (الی ذالک المعنی ودې معنی ته اَئ لطلب الفعل استعلاء.

استعلاء :استعلاء عامه ده استعلاء نفس الامر او واقعي وي استعلاء که ادّعائی وي، استعلاء حقيقي دې ته وايې چي زه په واقع کي پر تا عالی یم، استعلاء ادّعائی دیته وایي چي زه په واقع کي پر تا عالی نه یم خو زه دعوه کوم چي زه پر تا عالی یم (وقد تستعمل لغیره ) کله کله صيغه دامر مستعمليږي لغير طلب الفعل استعلاء : (و قد تستعمل لغیره قزويني چي دا عبارت وايي ددې څخه دارا معلوميږي چي قزويني اوس دامر مجازي معناگانی بیانوي (کالاباحة) .

قاعده: که هر ځای ديو لفظ مفهوم بیان سو وروسته قَد پر مضارع داخل وو نو په دې صورت کي دلفظ مجازي معناگانی بیانوي :

کالاباحة نحو جالِس الحسنَ او ابنَ سیرین، ته کښېنه له حسن سره او یا ته کښېنه دابن سيرين سره دلته مخاطب ته اختيار دئ ديوه سره کښېني ددواړو سره کښيني ددي ځايه څخه دارا معلوميږي چي دحسن بصری رحمه الله او دابن سيرين رحمه الله ترمينځ لږ اختلاف ؤ يعني بديي سره وړل، قانون په اباحت کي ، په اباحت کي يو مفهوم پروت دئ متكلم چي مخاطب ته امر کوي دا مخاطب به په ذهن کي څه ناڅه تر دغه امر مخته حذر وي حذر دا معنی مخاطب به پر متکلم داگمان کوی چی دامخته ممنوع ؤ بل داچي په اباحت کي جمعه جائز ده ( والتهديد نحو اِعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ) تهديد

معنی بیرول ، دتهدید او دانذار څه فرق دئ ، تهدید هم معنی تخویف، انداز هم تخویف، په تهدید کي اعلام، رسول ، ابلاغ ضروري نه دئ خو په انذار کی ابلاغ، اعلام، خبر رسول ضروری دئ، نبی منذر وي نذیر وي خبر در رسوی یعني په انذار کي ابلاغ کوي په تهدید کي دا ضروري نه ده، اِعْمَلُوْا مَاشِئْتُمْ :

قاعده: هر ځای که لفظ پر حقیقي معنی نه حمل کیدی بیا به ته مجازي معنی اخلی، که امکان ؤ چي لفظ دي پر خپل معنیٰ حقیقی حمل سي نو بیا به مجازی معنی نه اخلی ، اِعْمَلُوْا مَاشِئْتُمْ دلته امر په معنی دتهدید دئ ځکه دامر خپله حقیقی معنی دلته نه متصور کیږي، که لفظ پر خپل معنی حقیقی حمل سی څه تا وان کوی که چیري دلته لفظ پر معنی حقیقی حمل سي نو دشریعت څخه به کلی چټئ راسی نو دا معنی تاسو ازاد یاست چي څه کوئ ستا سو بلا دی واخلی بس کوئ یعنی که زنا کوئ ، که غلا کوی، که شراب خورئ چي څه کوئ بس کوئ، له دی وجه که دا پر حقیقت حمل سی نو ټول قران به چټئ سی نظام به چټئ سی، ټول شریعت به چټئ سی، نو ته مجبوره یی چي مجاز ته به ځی په مجاز کی به ته تهدید اخلی ځکه داعرفی جمله ده ، شا انور شا کشمیري رحمه الله یوه قاعده لیکلي ده وایی دقران ډیري جملی پر عرف حمل دي یعنی دعرف مطابق به یی ترجمه کوی لکه موږ په پښتو کي وایو ته یه کوه بیا به سره ګورو نو ددی دا معنی چي تا ته اختیار نسته د﴿اِعْمَلُوْا مَاشِئْتُمْ﴾ دامعنی ته یه کوه هغه چي ستا زړه غواړی ته یه کوه بیا به یی سره ګورو ( **والتعجیز نحو** ﴿فَأْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ﴾ په مشکلو ځایو کی یو مشکل ځای دادئ تعجیز معنی مخاطب عاجزه کول دیو شی څخه، ددی مثال په پښتو کی دا کار ما وکړئ ته یه وکړه ونیسه دایی ګز دایی میدان فَأْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّثْلِهٖ : دلته امر په معنی حقیقی نه دئ دلته امر په معنی مجازی دئ هغه معنی مجازی تعجیز دئ، دلته امر په معنی حقیقیی نه دئ ځکه دقران مثل راوړل مستلزم دئ کذب قران لره کذب قران مستلزم دئ وکذب الله لره او حال دادئ کذب محال دئ چي یو شی محال سو نو امر یی ناممکن کن کار دئ ولی امر طلب دشی کوی چی یو شی محال سو بیا یی طلب نه کیږ: له دی وجه طلب دمثل قران کول

محال دئ، الله وايی که جن او انس سره يو ځای سی نو دقران مثل نسی راوړئ له دې وجه دقران مثل راوړل محال دئ او په محال امر نه کيږي نو امر پر معنی حقيقی نه دئ حمل نو مجاز ته به ځو په مجاز کی به تعجيز ته ځو، علامه تفتازاني په مختصر المعاني کی د فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِ) ترکيب کړي، د فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِ) څلور ترکيبونه کيږي، يو ترکيب دادئ د مِّن مِّثْلِهِ تعلق تر فَأْتُوا پوری ورکړه دا به ظرف لغوسی د مِّن مِّثْلِهِ په ضمير کي دوه احتماله دي يو احتمال دادئ چي ضمير نبی عليه السلام ته راجع سی. دوهم احتمال دادئ چي ضمير قران ته راجع سي، دضمير يو احتمال دادئ چي ضمير مانزلنا ته راجع دئ، دضمير دوهم احتمال دادئ چي ضمير وعبدنا ته راجع دئ دوهم ترکيب که مِّن مِّثْلِهِ صفت سی د بِسُورَةٍ دپاره، فَأْتُوا بِسُورَةٍ راوړي يو سورة داسی سورة چي دمثل مانزلنا څخه وی يا دمثل عبدنا څخه وی په دغه ترکيب کی هم دوه احتماله دي يو احتمال ضمير ما نزلنا ته راجع دئ دوهم احتمال ضمير عبدنا ته راجع دئ،

که دمِن مِثْلِهِ تعلق تر فَأْتُوا پوري ورکړي دوه احتماله دی يو احتمال ضمير مِن مِثْلِهُ راجع کړه وانزلنا ته : بل احتمال ضمير دمن مِثْلِهِ راجع کړه وعبدنا ته : که من مثله صفة سی دبسورةٍ بيادوه احتماله دی يو احتمال ضمير دمن مثله راجع دی وما نزلناته ؛ بل احتمال ضمير دمِن مِثْلِهِ راجع دئ وعبدناته که من مِثْلِهِ تعلق تر فَأْتُو پوری ورکړی نو دا صورت خراب دئ :دانوردری صورتو نه صحيح دی اول صورت که دمن مِثْلِهِ تعلق تر فَأْتُو پوری ورکړی او که ضمير وعبدنا ته راجع کړی نو دا صورت صحيح دئ ترجمه فَأْتُوا راوړی أی کافرانو (بسورت هيڅ يو سورت (مِن مِثْلِهِ) أی من مَثَلِ عبد نا لکه مثل زموږ دبنده تاسو هم داسی راتک وکړی : دوهم صورت که من مِثْلِهِ صفة سی دبسورةٍ ضمير دمن مِثْلِهِ راجع سی ومانزّلنَاته نو داصورت صحيح دی :ترجمه راوړی أی کافرانو بسورةٍ هيڅ يو سورت داسی سورت (مِن مِثْلِهِ) أی من مثل ما نزلنا چی په مثل دما نزلنا وی : دريم صورت که( مِن

مثله)صفة سی دبسورةٍ ضمیر د(مِن مِثْلِهٖ)راجع سی وعبدنا ته نو داصورت صحیح دی
:ترجمه راوړی ای کافرانو (بِسُورَةٍ)هیڅ یو سورت داسی سورت (مِن مِثلِهِ) ای مثل عبدنا
چی مثل زمونږ دبنده وی که (مِن مِثْلِهٖ) تعلق تر فَأْتُو پوری ورکړی د(مِن مِثْلِهٖ)ضمیر
ومانزلناته راجع کړی داصورت نه دی صحیح : علامه تفتازانی وایی دا صورت ځکه نه دی
صحیح ددی معنی داده (فَأْتُو)راوړی (بسورةٍ) یو صورت مثل ما نزلنا څخه نو ددی دا
معنی چی دقرآن مثل موجود دی : دقرآ ن مثل سته :ته صرف دقرآن دمثل څخه یو سورت
راوړه خو ته دقرآن دمثل څخه سورت نسی راوړای : په نفس قرآن کی اعجاز نسته ځکه
دقرآن مثل موجود دی یعنی په مَأْتِیْ بِهٖ کی عجز نسته : هغه مَأْتِیْ بِهٖ سورت دی :ځکه مثل
قرآن موجود دی : خو دالله پاک مقصود د عجز په اِتْیَانَ کی نه دی :دالله مقصود عجز په
نفس سورة کی دی بعض وایی عجز په مَأْتِیْ عنه کی دی مثل قرآن دی یعنی ته په مَأْتِیْ عنه
کی عاجز یی ته ئی نسی جوړه وائی لهذا قرآن معجز سو ځکه دقرآن مثل نه جوړیږی
نواوس څلورم صورت صحیح سو :ځکه په مَأْتِیْ به کی هَم راغلی : عجز په مَأْتِیْ عنه هَم
راغلی :ددواړو ترجمه ته په دی کی عاجز يي چی قرآن راوړی دا عجز په مَأْتِیْ به کی دئ:
ته په دی کي عاجز یی چی مثل قرآن راوړی دا عجز په مَأْتِیْ عنه کی دی : علامه تفتازانی
وایی داڅلورم صورت صحیح کیږي په تکلف سره خو په عرف کی سړی (فَأْتُو بِسُورَةٍ مِن
مِثْلِهٖ)ويني نو دماغ دعجز مَاْتِی عنه طرفته نه ځی : ذهن دعجز مَأْتِیْ بِهٖ وطرفته ځی :اوس
که یو چا پوښتنه درڅخه وکړه چی په فَأْتُو بِسُورَةٍ مِن مِثْلِهٖ کی څو احتماله دی : نو ته به
ورته و وائی څلور احتماله دی : که بیا دی درته ووائی کوم یو غلط دی : کوم یو صحیح
دی :نو ته به ورته ووایی څلور سره صحیح دی مګر دری په سر سری نظر صحیح دی :یو په
عقلی نظر صحیح دی فرق یی دادی په درو کی عجز په اعتبار دمَأْتِیْ بِهٖ دی په یو کی عجز
په اعتبار د مَأْتِیْ عنه دی :(والتسخیر نحو کُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِینَ)مخکی ماتاسو ته قاعده

وویل طلب دفعل به هر هغه ځای کوی چی ما یُطاق وی :که ما لا یُطاق وُ بیا هلته طلب دفعل نسی کیدا ی : انسان خپل ځان په خنزیر بدلول :انسان خپل ځان په بزوګی بدلول : داد انسان په قدرت کی نسته : بیا هُم ته مخاطب ته امر وکړی نو ښکاره خبره ده چی امر لطلب الفعل دپاره نه دی امر دبلی معنی دپاره دی : هغه معنی تسخیر دی :تسخیر دیته وائی یو حقیقة په بل حقیقة بدلول :الله پاک دانسانانو حقیقة په بل حقیقة بدل کړی :نو الله پاک وویل (کُونُو قِرَدَةً خَاسِئِینَ)ترجمه سی تاسو بِزو ګان خوار ذلیله (والاهانة )اهانت دیته وائی چی مِتکلم مخاطب ذلیله کیدل غواړی:

متکلم مخاطب ته وائی نو به څه وکړی که ډَبَرَه سی :که وسپینه سی یعنی ته څه شی یی (قُل کُونُوا حِجَارَةً اَوحَدِیدًا) ووایه اِی محمده :سی تاسی ډبره یا اوسپینه :داهانت او تسخیر فرق دادی :اهانة خولی والادي په حقیقة کی دوی حجاره او حدید نه کیده :تسخیر واقعی دی یعنی په کم ځای کی چی الله امر وکړی ددوی حقیقة به بدل سو (والتسویة ) په دې دنیاکی (اَلصَبرُ مِفتَاحُ الفَرَجِ) که سړی په دی دنیاکی صبر وکړی :الله پاک داکیلی جوړه کړی دخلاصون دپاره :کافر به هغه دنیا پر دی دنیا قیاس کړی دوی به وائی په دنیا کی چی به موږ صبر وکړی نو ښه نتیجه به یی ورکول :دوی به په جهنم کی ووائی ناری مه وهی اخیر به خلاسو :الله پاک به ورته ووائي (فَاصبِرُوا ولا تَصبِرُوا)دلته امر دتسویه دی یعنی صبر او نه صبر برابر دی :

## یوسل اوپنځلسم سبق

(والتمنی )اَمرکله دتمنی دپاره وی (نحو الایها اللیل الطویلُ اَلا اِنجلیِ:وماالاصباح منک بِاَمثَلَ)ترجمه اَی اوږدی شپی :الا انجلی سهار سه :ستا په مثل یوه شپه نسی سهار کولی : دلته انجلی امر دی :متکلم شاعر دی مخاطب شپه ده : دلته دشپی په اختیار کی سهار کیدل نسته یعنی طلب دانجلا دلیل څخه نسی کیدای : خو شاعر تمنی کوی دی وائی زه دادیر خوښه وم چی شپه سهار کړی :شپه په خپل ځان کی ممکنه ده چی سهار دی سی نو

پکار ده چې امر د ترجّي د پاره سي : خو پرده باندې عشق غالب سو شپه ډيره زياته وربانډې اوږده سوه ګويا کې دده طمع د سهار کيدو څخه وختل يعنې دي د شپې سهار کيدل ناممکن بولي : نو ددې وجه امر جمل کيږي پر تمنی :نه پر ترجی :

(قاعده)حروف تنبيه درې دي خو په جهدې کثيرکې شيخ بل هم ليکې

۱-اَلا۲ - اَمَا ۳-هَا۴-عَمَا- په کوم ځای کې چې متکلم ډير تينګار غواړي پر يو حکم باندې :اوډير مخاطب پردې تنبيه کړي نو متکلم به حروف تاکيديه اوحروف تنبيه راوړي :الله وائي (اَلا اِنَّ اَولِيَاءَ اللهِ لا خَوفٌ عَلَيهِم وَلا هُم يَحزَنُونَ)ترجمه واورې خبر داسې :چې بيشکه دوستان :دالله :نسته هيڅ قسم بيره : پر دوی :او نه به وی دوی: چې غمجن کيږی(والدعاء) دعا ديته وائی چې طلب دادنی د اعلی څخه وی (نحو رَبِّ اغفِرلِي)(والا التماس)كقولک) لکه دا قول ستا (لمن) وهغه چاته (يساويک رتبة) چې ستا سره برابر وی په رتبه کې (اِفعَل) داکار وکړه (بدون الا ستعلاء)علامه تفتازاني په بدون الاستعلاء يو اعتراض کړی : علامه تفتازانی وائی دبدون الا ستعلاء قيد ته هيڅ ضرورت نسته ځکه مساوات مستلزم دی عدم الا ستعلاء لره :

علامه تفتازاني يوی قاعدی ته اشاره کوی : استعلاء دوه قسمه ده :استعلاء حقيقی استعلاء ادّعائی :استعلاء حقيقی ديته وائی چې امير په نفس الامر او په واقع کې عالی وی پر مأمور :استعلاء ادعائی وديته وائی چې امير ترتا عالی نه وی په واقع کی :خو دی دعوه ددی کوی چې زه ترتا عالی يم :لهذا استعلاء حقيقی او استعلاء ادعائی دواړه امر دی :قزوينی د بدون الاستعلاء قيد لګوی ددی دپاره چې نه به استعلاء حقيقی وی :نه به استعلاء ادعايی: (والتضرع)تضرع به نه وی :ځکه تضرع دعاء وی :

(ثم الامر) دسکاکی پر مذهب فورَ دامر په مفهوم کی داخل دی :يعنی چې امر وسی دا امر تقاضا کوی دفور :قرينه نه غواړی دجمهور علماء پر مذهب امر تقاضا دفور نه کوی :که قرينه وه بيا تقاضا دفور امر کوی : سکاکی دليل وائی عمر زما غلام دی زه ورته وايم قُم ولاړسه عمر ولاړسوی نه دی ما فورًا ورته وويل اِضطَجِع پريوزه :سکاکی وائی ولاړسه پر

ټولو عربو وګرځه که دغه عمر دقم بعد فورًا پر اِضطجع عمل ونکړی یعنی یو وار ولاړسو
بیا پریوتی نو عمر ملامت دی ځکه عمر پر اِضطجع فورًا عمل ونه کړی یعنی عمر مخکی تر
قیامِ پر اِضطجع عمل ونه کړی :که څه هم عمر پر قُم او پر اِضطجع په دواړو عمل وکړ خو ما
فورغوښتی دفور ونه کړی: لهذا امر پر فور دلالة کوی :قزوینی وایی (وفیه نظر )په دی
کی نظر دی :قزوینی وایی دا نه منم چی تا امر وکړی په خلاف دامر سابق چی منل پر غلام
ضروری دی مطلقا دانه منم: چی تر څوپوری په عرف کی قرینه نه وی نو منل پر غلام باندی
فورا ضروری نه دئ: که قرینه وه بیا منل فورًا پر غلام باندی ضروری دی :نو معلومه سوه
چی فوردامر په مفهوم کی داخل نه دی :فور خارجی قرینه غواړی :(قال سکاکی حقه الفور)
سکاکی وائی حق دامر فور دی (لان الظاهر من الطلب )ځکه داظاهره ده له طلبه (والتبادر
الفهم عندالامر بشئ بعد الامر بخلافه )دماغ تلواره کوی ودیخواته چی امر وسی په یو
شی باند ی وروسته تر امر په خلاف دده (الی تغییر الاول)دماغ ئی وتغییر اول ته چی اول
ولاړی ختم سو (دون الجمع) جمع نه غواړی چی دواړه دی وشی (وارادة التراخی ) اراده
دتراخی هم نه وی (وفیه نظر ) (ومنها النهی)دانواع الطلب څخه نهي دي (وله حرف واحد
)دنهی دپاره یو حرف دئ (وهو لا الجازمه )هغه حرف لا ده داسی لا چی جزم کونکی ده
:دنهی تعریف وهو طلب الکف عن الفعل)استعلاء مثال لاتَزنُواتاسو زِنا مه کوی )
[قاعده] حرف لره دوه حیثیته دی یو حیثیت من حیث الاسم بل من حیث المسمی :مثال
مامِن په لاس کی لیکلی زه تاته وایم داڅه شی دی:ته راته وائی دا مِن دی :ماچی تاته
وویل داڅه شی دی نو په دی صورت کی دی من حیث المسمی بلل کیږی لهذا دا حرف دی
:تا چی ما ته وویل دا من دئ نو په دی صورت کی دی من حیث الاسم بلل کیږی نو پرده
باندی داسم احکام جاری کیږی :لا الجازمه)دلته لا من حیث الاسم موصوف : الجازمه
صفة؛

قاعده: حرف من حیث الاسم مذکر دی په تأویل د هذا اللفظ: حرف من حیث الاسم مؤنث دی په تأویل د هذه الکلمة (فی نحو قولک لا تفعل) وهو کالامر فی الاستعلاء) نهی لکه امر په استعلاء کی: وقد یستعمل فی غیر طلب الکف او الترک) کله کله نهی مستعملیږی په غیر د طلب الکف او غیر ترک کی: کالتهدید: لکه زجر:

خالد زما غلام دی زه وربا ندی مستعلی یم ما غلام ته وویل سبق در واخله غلام په بِجُلو: یامَردگو اخته سو ماغلام ته وویل ته ئی مه منه بیا به ما او تا سره گورو: نو دلته نهی د تهدید دپاره ده یعنی دزجر دپاره ده: کقولک لعبد لایَمتَثِل اَمرَکَ) لکه دا قول ستاچي ته غلام ته ووائی داسی غلام چی ستا خبره نه منی: نو ته ورته ووائی (لا تَمتَثِل اَمرِی) ته زما ده مه منه: وهذه الاربعة یعنی التمنی و الاستفهام والامر والنهی):

قاعده که دامر نهی تمنی استفهام: په جواب کی مضارع راغله پر مضارع فاء داخله وه نو دفاء وروسته به اَن مقدر وی مضارع ته به یه نصب ورکړی وی بیا به ته عطف کوی پر مصدر متوهم متصید باندی: که په جواب کی مضارع راغله خو فاء نه وه بیا به ته مضارع مجزوم وائی: مگر شرط دادی چی مضارع به صلاحیت دجواب لری: که مضارع صلاحیت دجواب نه درلودی په دی صورت کی مضارع مرفوع ویل واجب دی:

دخبری خلاصه داده: که امر: نهی: استفهام: تمنی: په جواب کی مضارع راغله نو په دی مضارع کی دری قسمه اعراب جاری کیږي: مرفوع: منصوب: مجزوم: دمنصوب مثال (وَلاتَجعَل یَدَکَ مَغلُولَةً اِلٰی عُنُقِکَ ولاتَبسُطهَا کُلَّ البَسطِ فَتَقعُدَ مَلُومًا مَحسُورًا اَلاٰیه) ترجمه مه نیسه: لاس خپل تړلی سوی: ترغاړی ستا پوری: او مه غځوه هغه: په بیخی غځولو سره: نو کښینی به ته: ملامت کړی سوی: پیشمانه سوی: دلته (فَتَقعُدَ) جواب دی (دلاتبسطها کل البسط دجواب علامه داده چی د ماقبل سره معی نه وی: پر ماقبل تفریع وی: لهذا د (لا تبسطها کل البسط) په جواب کی (فَتَقعُد) راغلی: پر فتقعد فاء داخله: دفاء وروسته اَن مقدر دی مضارع ته یی نصب ورکړی: که پر مضارع فاء نه وه داخله: پر ماقبل تفریع نه وه: خو جواب واقع وه نو په دی صورت کی به مضارع مجزوم ویل کیږی

:مثال ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ يَنْقَلِبْ الخ )ترجمه :بیا وکرځوه:سترګی خپلی: دوه دوه واره:بیرته به راوکرځی:دلته (ینقلب)مضارع ده د(ارجع)په جواب کی واقع ده :خو پر (ینقلب) فاء نه ده راغلی:نو مضارع مجزوم ویل واجب دی:که مضارع په جواب کی واقع نه وه پر ما قبل تفریع نه وه دما قبل نتیجه نه وه صرف وړسره معی وه نو په دی صورت کی مضارع مرفوع ویل واجب ده (مثال:ولا تَمْنُن تَسْتَكْثِر الایه)ترجمه او مه کوه داسی احسان:چی بدل یی ډیر غواړی دلته (تستکثر)دلا تَمْنُن سره معی ده خو (تستکثر) په جواب کی واقع نه ده:ځکه تَسْتَكْثِرُ پر ماقبل تفریع نه ده :قاعده زُرنِي أُكرِمكَ: أُكرمک مضارع ده :دزُرنِي په جواب کی واقع ده :اهل بیا ن والا وائی اُکرِمک مجزوم دی :جزاء دشرط مقدر:زُرنِي أُكرِمك په اصل کی دارکم دی إِن تَزُرنِي أُكرِمكَ خو داشرط مقدر به ته ددغه مذکور امرٌ ځخه جوړه وی:

(وهذه الاربعة يجوز تقدير الشرط بعدها )ددغه اربعه ځخه وروسته جائز دی تقدیر دشرط:(

كقولک ليت لی مالا أُنفِقهُ أی إِن أُرزِقهُ أَينَ بَيتُكَ ارزک أی إِن تعرفنيه واكرمنی اكرمک ای إِن تكرمنی ولا تشتم يكن خيرا الک ای إِن لا تشتم)

## یوسل اوشپاړسم سبق

(واماالعرض كقولک أَلا تنزل بنا تصب خيرا):سوال : مصنف مخکی وویل شرط مقدر کیږی وروسته تر ځلور اَشیاء اَی تمنی ؛ استفهام :امر: نهی :خو نحاة وائی شرط مقدر کیږی وروسته تر پنځو اشیاء :اَی تمنی : استفهام :امر:نهی :عرض :(مثال الا تنزل بنا تصب خیرا :اَی ان تَنزِل بِنا تُصِب خَيرا)مصنف جواب ورکوی (اماالعرض)هر چی عرض دی :کقولک :لکه داقول ستا :الا تنزل بنا تصب خیرا:(فمولد من الاستفهام :عرض جوړ دی له استفهام ځخه :عرض مستقل براَسه نه دی:ځکه همزه په مثال مذکور کی داستفهام دپاره ده :همزه داخله ده پر فعل منفی باندی حمل د استفهام پر حقیقة داستفهام ممتنع دی

:ځکه علِمَ پر عدم دنزول سته :استفهام خو پر مجهول شی کیږی دلته عدم نزول معلوم دی لهذا استفهام پر حقیقة داستفهام نه حمل کیږی :خلاصه دخبری داده عرض ځان ته شی نه دی :عرض داستفهام څخه رایستل کیږی لهذا شرط مقدر کیږی :وروسته تر څلورو اشیاء دپنځم شی ضرورت نسته :عرض په لغت کی وړاندی کیدو :پیښیدو ته وایی :په اصطلاح کی دی ته وائی چی متکلم یوه خبره وکړی وچ په وچه دمخاطب دفائدی دپاره

(ویجوز فی غیر ها قرینة)جائز دی تقدیر دشرط په غیر ددغه مواضعو کی په سبب دقرینی داسی قرینه چی دلالة کوی پر تقدیر دشرط :دا قاعده په قرآن کی ډیره جاری کیږی یوه جمله به راغلی وی فاء به پر داخله وی شرط به یی مقدر وی :ددی صورت دجوړیدو طریقه تقریبًا استفهام به راغلی وی وروسته به بله جمله راغلی وی پر هغه جمله باندی به فاء داخله وی دغه جمله چی فاء ورباندی داخله ده ددی شرط به مقدر وی :یعنی دا جمله جواب دشرط محذوف ده :(اَمِ اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ اَولِيَاءَ:دوی نیول غیرد الله څخه نور دوستان :فَاللّٰهُ هو الوَلِیُّ الخ :دلته فاالله هو الولی :جواب دشرط محذوف دی :تقدیر دعبارت دادی (اِن اَرادُوا وَلِيًّا بِحَقٍ: که چیر ی دوی اراده دحق دوست لری دحق وَلی لری :فَاللّٰهُ هوَالوَلِیُّ:نو الله ددی ډیر وړدی چی سړی ئی په دوستی ونسی :دلته علامه تفتازانی یو زَبر دسته بحث کړی :علامه ئی تفتازانی وائی دلته یو سړی راولاړ سوی په اَمِ اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ اَولِيَاءَ کی دغه استفهام چی اَم دی دا استفهام یی په استفهامی انکاری اړولی :استفهامی انکاری معنی انکار کول :انکار معنی نفی کول :چی نفی دی وکړه هغه ځایونه مخکی تیر سوه په هغه ځایو کی یوځای نفی ؤ :نو دلته )فالله هوالولی ) دنفی په جواب کی واقع دی خو دنفی په جواب اقع کیدل زوړځای دی نوی ځای نه دی :(وفیه نظر )علامه تفتازانی جواب ورکوی : همزه واضع وضع کړی داستفهام دپاره همزه واضع دانکار دپاره نه ده وضع کړی دایوه خبره دوهمه خبره انکار خوعین نفی نه دی په حکم کی دنفی دی :موږ خوویلی وه جمله دنفی په جواب کی رائی دلته دداسی شی په جواب کی جمله راغلی چی هغه په حکم کی دنفی ده عَینِ نفی نه ده :لهذا یو شی عین شی وی یوشی دبل شی په حکم کی وی ددی ډیر فرق دی یعنی یوشی عین نفی وی :یوشی په حکم کی دنفی وی قانون واوره چی یوشی

عين نفي نه وي په حکم کی د نفي وي ددی دامعنی نه وي چی دهغه شی ځومره احکام وي نو دده به هُم دومره احکام وي داضروری نه ده :مثال ملا محمد عمر رحمة الله تعالی مجاهد چی ځومره خوصوصیات درلوده اوس که یو څوک دده رکم ځان جوړه وي نو داضروری نه ده چی دملا محمد عمر مجاهد ټول خصوصیات دی په ځان کی راولی :لهذا کوم شی چی په حکم کی دنفي وي نو ټول احکام دنفي پر ده نه جاري کیږی :لهذا (قزوینی چی :ویجوز في غیرها بقرینةٍ نحو فاالله هو الولی الخ )پنځم ځای شماری بلکل صحیح دی :ومنها النداء) د انواع الطلب څخه نداء ده :دنداء تعریف (وهو طلب الا قبال بحرفٍ نائب مناب ادعو لفظًا نحو یا الله :او تقدیرًا یُوسُفُ أَعرِض عَن هذا الخ) وقد تستعمل صیغته فی غیر معناه )کله کله صیغه دنداء مجا زًا مستعملیږی غیر دمعنی اصلی : کالا غراء فی قولک لمن اقبل علیک یتظلم یا مظلوم) زه یو سړی یم عبدالاحد ما ته وائی داسی بد راسره وسو ه :ما سا وکښل ورته می وویل اَی خوارکیه اَی حرف نداء ده :خوار کیه منادی ده :دلته زما مقصد اواز کول نه دی ځکه دی مخامخ ماته ناست دی که زه اواز ورته وکړم نو تحصیل دحاصل راځی :نو معلومه سو ه چی نداء په خپل محل کی نه ده نداء په غیر محل کی ده لکه اِغراء:اغراء معنی یو سړی پر یو کاراپارول : لهذا دی راته شروع دی :یتظلم زما سره ظلم کیږی ماورته وویل یا مظلوم اَی خوارکیه مقصد می دادی چی نور شکایة راته بیان کړه :(کالاغراء:لکه راپارول (فی قولک )په دی قول ستا کی (لمن )هغه چاته :(اقبل علیک )چی تاته مخامخ وی :(یتظلم )چی شکایة کوي دظلم:ته ورته ووائی یا مظلوم اَی خوارکیه :(والاختصاص ) نداء کله مستعملیږی داختصاص دپاره منصوب علی سبیل الاختصاص دیته وائی چی منصوب وی په صیغه داَخُصّ یا منصوب وی په صیغه دمُخَصّص یا منصوب وی په صیغه دمُختَصّ:مثال نحن معاشر الا نبیاء لانَرِثُ ولانُورَثُ ماتَرَکنَاهُ صَدَقَةٌ) نبی علیه السلام وویل موږ گروپ یو دانبیاء موږ دچا وارثان نه جوړیږو :ولانُورَثُ :زموږ میراث چاته نه پاتیږی (ما ترکناه صدقةٌ)انبیاء چی څه پریږدی هغه صدقه وی :

دلته نحن ولا نرث مبتداء او خبر دی :په مینځ کی معاشر الانبیاء راغلی :معاشر الانبیاء منصوب دی په صیغی دأَخَصّ :تقدیر دعبارت نحن اَخَصّ معاشر الانبیاء موږخاصه ؤ معاشر الانبیاء :دمنصوب علی سبیل الاختصاص یوڅوصورتونه دی :یوصورت اَیّ دی

:اَیّ هم منصوب وی علی سبیل الاختصاص :اَيُّهاالرجل:په اصل کی ایهاالرجل منادیٰ خاصه وی :بطلب اقبال علیه :چی منادی دی ته مخامخ سی اوس ایهاالرجل مستعملیږی

دمنصوب علی سبیل الاختصاص دپاره مجازًا :دمنصوب علی سبیل الاختصاص مخته ضمیر متکلم وی : یاضمیر دمخاطب وی :مثال نحن معاشر الانبیاء الخ

(اَنَا اَفْعَلُ کذا)داکار زه کوم :وائی اَنَا :کرسره څوک دی وائی ایهاالرجل :اَنَا دغه سړی دی

چی خا ص دی په ماپینځ کی درجالو :اَیْ مُتَخَصِّصًا من بین الرجال )ایهاالرجل په ترکیب

کی حال دی دأَنَا ضمیرڅخه :(ثم الخبر قد یقع موقع الانشاء اما للتفاول او الاظهار

الحرص فی وقوعه )دمجاز په علاقو کی یو ه علاقه داده :کله بهٔ خبر دانشاء پر ځای

استعمالیږی کله به انشاء دخبر پر ځای استعمالیږی (فَلْیَضْحَکُوا قَلِیلاً وَلیبکُوا کَثِیرًا )دا

انشاء ده خو معنی ئی داخبار ده نو دلته انشاء داخبار پر ځای استعمال ده :وَالوَ الِدٰ اتُ یُر

ضِعنَ اَو لا دَهُنَّ الخ :دیرضعن:شکل دخبر دی

خو په حقیقة کی انشاء ده :(ثم الخبر قد یقع موقع الانشاء:خبر کله کله دانشاء پرځای

واقع کیږ ی :مثال لکه بَدان اَرشَدَکَ الله تعالٰی :یوه سه طالبه الله دي تا نیک بخته کړی :الله پاک تانیک بخته کړی دا دعاء ده دعاء انشاء ده خو ارشد ک الله تعالی خبر دی دماضی صیغه ده دانشاء پرځای واقع ده : موږ قزوینی ته وویل ددی څه فائده ده قزوینی

وائی(اِمّا للتفاول او الاظهار الحرص فی وقوعه )ددی دوی فائدی دی:یوه فائده نیک فالی

نیول :بله فائده اظهار دحرص :ما عبد الاحد ته وویل (ارشدک الله ) الله دی تا نیک بخته کړی :نیک بخته کړی مضارع ده خو زه ماضی استعمالوم اودانشاء په ځای کی استعمالوم مقصد می دادی چی زه دته وربنکاره کرم چی دونه زیات حرص لرم چی زما په دماغ کی

ددیر کرځیدو را کرځیدو نیک بختی واقع سوی بولم :دا تفاول هُم دی :اظهار دحرص هم دی (والدعاء بصیغة الماضی من البلیغ یحتملها)هر وخت که دعاء په صیغه دماضی دبلیغ سړی څخه صادره سوه دڅوارو احتمال لری(أی التفاول واظهار الحرص :مثال بلیغ سړی ووائی رَحِمَهُ الله نو دا احتمال دتفاول هم لری : احتمال داظهار الحرص هم لری که غیر بلیغ دادعاء وکړه رحمه الله :نو دا غیر بلیغ غافله دی ددغه اعتبار تو

څخه او للا حتراض عن صورة الامر : کلہ کلہ ځای دانشاء وی خو استعمالوی خبر مقصد دمتکلم صرف او صرف داوی چی زه ځان ساتم دسوءِ اَدَب څخه : که چیري متکلم انشاء استعمال کړی نو سوء اَدَب راځی :مثال زه غلام یم عبد الاحد زما مولا دی اوس که زه عبد الاحد ته مخامخ حکم کړم چی سهار راسه نو عبد الاحد ماته ووایی ته څوک یی چی ماته وائی سهار راسه ته خو زما غلام یی غلام خپل مولی ته داسی حکم نه کوی لهذا دا سوء ادب دی :که زه خپل مولی ته داسی ووایم تاسو سهار راځی :تاسو سهار راځی ددی شکل دخبر دی خو داپه حقیقة کی انشاء ده هر وخت چی غلام خپل مولی ته دانشاء پر ځای خبر استعمال کړی نو احتراز به را ځی عن سوء الادب (او للا حتراز :چی ځا ن وساتی (عن صورت الامر )دامر دظاهری صورت څخه :او لحمل المخاطب علی المطلوب بأن یکون ممن لایحب ان یکذب الطالب ):که زه نصیب الله ته داسی ووایم هلکه صباء راسه نو دا امر دئ :خو زه دانشاء پرځای خبر استعمالوم زه تاسو ته وایم أی صبا نصیب الله راځی :دی خو امر خو ما خبر استعمال کړی ددې وجي چي زه نصیب الله ته خبر ورکوم چي نصیب الله ښیتا په ذهن کی زه لوی شان والا یم که صبا نصیب الله ته نه راغلي نو ته ما شرموی دخلکو په مخ کی :یعنی ما به دخلکو په مخکی درواغجن کړې ځکه ماتاسو ته وویل صبا نصیب الله درځی خو نصیب الله نه راغلی نو زه تاسو ته درواغ جَن سوم :خو اوس چی ما دانشاء پر ځای نصیب الله ته خبر استعمال کړی نو نصیب الله به صبا خامخا راځی ځکه ما نصیب الله ته بنده وراچول چی اَی خلگو صبا نصیب الله راځی :(او لحمل المخاطب )مثال مخا طب نصیب الله دی :تر جمه چی مخاطب حمل سی (علی المطلوب )پر راتگ (بان یکون :په دی

دول چي وی نصيب الله (ممن لايحب :دهغه چا څخه چي نه خوښه وی نصيب الله :(لن
يكذب الطالب)چي دروا غ جن دی سی (الطالب : مو لی صاحب :(تنبيه)پوه سه :(الانشاء
كالخبر في كثير مما ذكر في الابواب الخمسة السابقة)انشاء لکه خبر په زيات هغه مباحثو
کی چي ذکر سول په هغه مخکنی پنځو ابوابو کی : قزوينی دا ويل غواړی قزوينی وائی په
انشاء کی چي گم بحثونه ذکر سوه دا ابحاث خواص دانشاء وه : خو احوال الا سناد:
والمسند اليه : والمسند :ومتعلقات الفعل :والقصر : دا چي څرنگه په خبر کی چليدل هم
دارنگه په انشاء کی چليږی :(فليعتبره الناظر دهغو اجراء دی کړی سبق ويونکی

## يوسل اواولسم سبق الفصل والوصل

(الفصل والوصل )سوال فصل ولی مقدم سو تر وصل : جواب فصل اصل دی :اصل
عارض دی :څه معنی په فصل کی عدم العطف وی عدم العطف عدم دی که په وصل کی
عطف وی عطف وجودی دی :عدم په ممکناتو کی مقدم وی تر وجود : (الوصل عطف بعض
الجمل علی بعض والفصل ترکه) سوال په اجمال کی فصل پر وصل باندی مقدم سو خو په
تفصيل کی ولی وصل مقدم سو پر فصل باندی :جواب وصل په منزله دملکی دی : فصل په
منزله عدم دی : ملکه مقدمه وی تر عدم که په جدار (ديوال )کی دسترگو دليدلو استعداد
نسته نو ته ړوند نسی ورته ويلای ته ړوند هغه وخت ورته وائی چي په ده کی يوار ملکه
وی سترگه والی وی :زه سترگی لرم که زه نن ړوند سوم په دی صورت کی ته ماته ړوند
ويلای سی لهذا ملکه مقدمه وی تر عدم :
(الوصل ) دوصل تعريف: عطف بعض الجمل علی بعض )يو ه جمله پر بلی جملی عطف
کول ديته وصل وائی : مثال يُؤمِنُونَ بِاالغيب وَيُقِيمُونَ الصَلوٰاتَ الی اخره)
(والفصل) دفصل تعريف :(ترکه )يوه جمله پر بلی جملی نه عطف کول ديته فصل وائی
(مثال مات فلان رحمه الله ) دمختصر المعانی اوله حاشيه يو زَبر دسته نکته پورته کوی
محشی وايی ستا دخبری څخه دا رامعلوميږی چي فصل وصل په جملو کی چليږی فصل

وصل په مفرداتو کی نه چلیږی او حال دادی چی فصل وصل چی څرنګه په جملو کی چلیږی همدارنګه په مفرداتو کی فصل وصل چلیږی لهذا د فصل وصل تعریف جامع نه سو مثال دهغه وصل چی په مفرداتو کی وی:(هُوَالأَوَّلُ وَالأٰخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالبَاطِنُ)مثال دهغه فصل چی په مفرداتو کی وی :هُوَ اللّٰهُ الَّذِیْ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ المَلِکُ القُدُّوسُ السلامُ المُؤمِنُ المُهَیمِنُ العَزِیزُ الجَبَّارُ المُتَکَبِّرُ)جواب منم چی فصل او وصل په مفرداتو او جملو کی چلیږی خو اهل بیان والا دهغه فصل وصل څخه بحث کوی چی هغه په جملو کي چلیږی لهذا قزوینی دمطلقا فصل وصل تعریف نه دئ کړی که ستا په ذهن کی سوال دروکرځی چی یو ځای دالله په صفاتو کی واوسته :مثال لکه :هو الاول والاخر والظاهر والباطن :بل ځای دالله په صفاتو کی واو نسته :مثال لکه (الملک القدو س السلام المؤمن المهیمن الی اخره )جواب (هو الاول والاخر والظاهر والباطن دلته جهته جامعه سته ځکه واو راغلی :په الملک القدوس السلا م المؤمن الی اخره )دلته جهته جامعه نسته د جهته جامعه تفصیل پر مخ راروان دی :اجمالاً جهته جامعه دیته وائی چی معطوف او معطوف علیه یو مناسبة ولری:هوالا ول و الاخر اضداد دی :والظاهر والباطن اضداد دی :دلته مناسبة داضداد دی :په المُؤمِنُ المُهَیمِنُ العَزِیزُ الجَبَّارُ المتکبر الی اخره : دالته واو نسته : ځکه دلته یو منا سبة نسته : (فاذا أتت جملة بعد جملة که چیری یوه جمله راغله وروسته تر بلی جملی :

(فا الاولی اما ان یکون لها محل من الاعراب او لا )نو اولی جملی لره به اعراب محلی وی یا به اولی جملی لره اعراب محلی نه وی : (وعلی الاول)أی علی تقدیر ان یکون للا لی محل من الاعراب :(ان قصد تشریک الثانیه لها فی حکمه )که چیری متکلم قصد وکړی چی دوهمه جمله دی داولی جملی سره په حکم کی شریکه سی یعنی په اعراب کی مثلا اوله جمله خبر واقع وه یا اوله جمله حال واقع وه متکلم دا غواړی چی دوهمه جمله دی هم خبر واقع سی :یا حال واقع سی (عطفت علیها)نو دوهم جمله دی عطف کړی پر اولی جملی باندی مثال :جَاءَنِی زَیدٌ یَرکَبُ وَیَشعُرُ : ما ته راغلی زید په داسی حال کی چی سپور ؤ :په

داسی حال کی چی سندر یی ویلی :دلته یر کب په محل دنصب کی حال دی دزید څخه :
یشعر عطف دی پر یرکب :لهذا یشعر هُم په محل دنصب کی حال دی دزید څخه :
(کالمفر د) لکه مفرد مثال جاءنی زید وعمرٌ :**فشرط کونه مقبولاً بالواو ونحوه ان یکون بینهما جهة جامعه**)شرط دکون العطف چی عطف مقبول بالواو وی یا نحو العطف کالفاء
نو شرط ددی عطف دادی چی په ما بین دجملتینو کی به جهة جامعه وی نحو زید یکتب
ویشعر او یعطی ویمنع : دلته جهة جامعه سته :دیکتب او یشعر په ما بین کی تناسب
ظاهرًا سته ځکه هر یو تألیف دکلام دی یعنی کتابت تالیف دکلام منثور دی شعر تالیف
دکلام منظوم دی: داعطاء او دمنع په مابین کی تضاد دی :دخبری خلاصه داده که تایوه
جمله پر بلی جملی عطف کول په واو سره خامخا به جهة جامعه وی :

(ونحوه) مراد دنحوه څخه فاء:ثم: حتی :سوال ذکر دنحوه لغوه دی :حشوه ده مفسد دئ
:ځکه عطف دیوې جملې پر بلي جملې باندي په فاء: ثم:حتی : سره قطعا جهة جامعه نه
غواړی :دادرې سره خپلی ذاتی معنا ګانی را وړی :هغه ذاتی معنا ګانی دادی ترتیب مع
التعقیب فی الفاء : ترتیبٌ مع التراخی فی ثمّ : و ترتیبٌ مع الا جزاء ذهنًا فی حتی : خو
دنحوه څخه دامعلو میږی چی جهة جامعه په فاء ثم حتی کی سته :جواب ذکر دنحوه لغوه
نه دی حشوه نه دی :مفسد نه دی : ځکه دنحوه څخه مراد په دی مقام کی اَو بمعنی الواو
دی ځکه او په کلام دعربو کی مجازًا راځي بمعنی الواو مثال قوله تعالی **وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ اٰثِمًا اَوْ كَفُوْرًا اَیْ وَكَفُوْرًا**: قاعده حروف عاطفه لس دی لکه په دی شعر کی :واو :فاء :وثم:
حتی نیز او : با ام :واما : ولکن :لا: بل : (**لهذا عیب علی ابی تمام فی قوله شعر لا والذی هو عالم ان النوی صبر : ان ابا الحسین کریم**)(لهذا : له دې وجی چی په واو کی به جهة
جامعه وی (**عیب علی ابی تمام فی قوله** :عیب وویل سو پر ابی تمام په دی شعر کی (لا والذی
:قاعده لا که پر قسم داخله سو ه :بعض علماء وایی دقسم مخته یو خبره وه : یا یوه خبره
مشهوره وی یا ستا په ذهن کی یوه خبره وی نو لا دغه مضمون نفی کوی : نو دا معنی لا
داسی نه ده : که لا داکار ونکړی :او لا پر قسم دا خله وه په دی صورت نحاة وائی دغه لا تا

کید قسم کوی لا نفی نه کوی : مثال لا اُقسِمُ بِهٰذَا البَلَدِ: تاکید خو تکرار وی :نو دا معنی اُقسِمُ اُقسِمُ بِهٰذَا البَلَدِ: لا والذی هو عالم ان النوی صبر : و ان ابا الحسین کریم : دلته په دی شعر کی لا دمخکی مضمون نفی کوی : نو دا معنی (لا: دا سی نه ده (والذی هو عالم :زما دی قسم وی په ذات چی هغه عالم دی (ان النوی صبر:واقع فراق ډیر تریخ دی : و ان ابا الحسین کریم : واقع پلار دحسین ښه دی : دلته مناسبة نسته په ما بین کی دکریم ابی الحسین او دمرارة النوی : لهذا دغه عطف غیر مقبول دی (و الا فصلت عنها: که چیری متکلم قصد ونه کړی چی دوهمه جمله دی داولی جملی سره په اعراب کی شریکه سی نو په دی صورت کی ترک العطف واجب دی :نحو﴿ وَإِذَا خَلَوْا إِلَى شَيَاطِينِهِمْ قَالُوا إِنَّا مَعَكُمْ إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِئُونَ اللَّهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ﴾:ترجمه هر کله چی یوازی سی :له شیطانانو خپلو سره :وایی دوی : بیشکه موږ ستا سره یو :بیشکه هم دا خبره ده : موږ چی یو : ټوکی کونکی یو پر مؤمنانو : الله سزا دټوکو ورکوی دوی ته :(منافقینوته ) طالبه ماته ګوره (واذا خلوا الی شیطینهم شرط: قالواقول : انا معکم : مقوله دقول :قول سره دمقولی جزاء: (ولم یعطف الله یستهزء بهم علی انا معکم لا نه لیس من مقولهم )دلته (الله یستهزء ) عطف نه دی پر انا معکم باندی :که تا سوال وکړی چی انا نحن مستهزءون ولی نه یادوی :جواب انمانحن مستهزءون بیان د انا معکم دی :ددواړو حکمونه یو دی : لانّ کلاً منهما من مقول المنافقین) ځکه هر یو مقوله دمنافقینو ده :کویاکی انا نحن مستهزءون تابع دی : انّا معکم متبوع دی : ځال دادی عطف علی المتبوع اصل دی : لهذا الله یستهزء پر انا معکم باندی نسی عطف کیدای ځکه الله یستهزئ مقوله نه ده دمنافقینو : انّا معکم مقوله دمنافقینو ده : خو که چیری الله یستهزئ عطف سی پر انا معکم باندی نو به دواړه مقوله دقالو سی (ولیس ذالک )داسی نه ده : (وعلی الثانی : بناء پر دی تقدیر چی اولی جملی لره اعراب محلی نه وی (ان قصد ربطها بها علی معنی عاطف سو الواو )که چیری متکلم قصدوکړی ربط دجملی ثانی داولی جملی سره (علی معنی عاطف )دوجی دوجود دمعنی

دحرف عطف په مابین کی دمضمون دجملتینو (سوی الواو )علاوه دواو (عطفت به) نو ثانی جمله به عطف سی پر اولی باندی (نحو دَخل زید فخرج عمرٌو : دا مثال دتعقیب مع الوصل دی :ځکه فاء راځی دتعقیب مع الوصل (او ثم خرج) دامثال دتعقیب مع المهملة دی ځکه ثم راځی دتعقیب مع المهملة : (اذا قصد التعقیب او المهملة ) هغه وخت چی قصدوی تعقیب کما فی المثال الاولی : یا مهمله قصد وی کما فی المثال الثانی (والا)که چیری ربط دثانی داولی سره قصد نهٔ دحرف عطف په معنی باندی علاوه دواو (فان کان للاولی حکم لم یقصد اعطاءه للثانیة )که چیری اولی جملی لره حکم ؤ داسی حکم چی اعطاء دهغه مقصود نه وی ثانی لره (فا لفصل واجب ) نو فصل واجب دی : وَاِذَاخَلَوا اِلی شَیٰطِینِهِم الأیه لم یعطف الله یَستَهزِئُ بِهِم علی قَالُوا لئلا یشارکه فی الاختصاص بالظرف لمامر)الله یستهزئ بهم نه دی عطف پر قالو ځکه قالوا مقیّد بظرفٍ دی که چیری عطف سی نو الله یستهزئ به مقیّد بظرف سی نو دا معنی که منافقین دشیطانانو سره یو ځای سوه نو الله استهزاء ورباندی کوی که منافقین دشیطانانو سره یو ځای نه سوه نو بیا الله استهزاء نه وراندی کوئ :ولیس کذلک : داسی نه ده ځکه الله همیشه پر منافقینو استهزاء کوی

## یو سل او اتلسم سبق

(والا فان کان بَیْنهما کمال الانقطاع بلا ایهام او کمال الاتصال او شبه احدهما فکذالک والا فالوصل)

دفصل او وصل ټول شپږ صورتونه دي دفصل څلور صورتونه دي، دوصل دوه صورتونه دي اول دفصل صورتونه اجمالاً اول صورت که دجملتینو په مابین کي کمال انقطاع بلا ایهام وو فصل واجب دویم صورت که دجملتینو په مابین کي کمال اتصال وو فصل واجب دئ دریم صورت که دجملتینو په مابین کي شبه دکمال انقطاع وه فصل واجب ده څلورم صورت که دجملتینو په مابین کي شبه دکمال اتصال وه فصل واجب ده :

دویم دوصل صورتونه اجمالاً :

اول صورت: کمال انقطاع مع ایهام وصل مواجب څه معنی دا معنی که دجملتینو په مابین کي کمال انقطاع وو نو واو به خامخا راوړي که واو رانه وړي وهمه دخلاف مقصود کیږي .

دویم صورت من وجه اتصال من وجه انقطاع او جهة جامعة هم سته نو وصل واجب مثال إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ وَإِنَّ الْفُجَّارَ لَفِي جَحِيمٍ.

ابرار دفجار ضد دئ نعیم دجحیم ضد دئ ان الابرار لفی نعیم وان الفجار لفی جحیم من وجه اتصل لري من وجه انقطاع لري او جهة جامعة سته نو واو راوړل واجب دي (والا) که دجملي اولی دپاره قید زائده نه وو یا دجملي اولی دپاره قید زائده سته خو هغه دجملي ثانی سره منافی نه وو په دې کي ټول شپږ صوتونه دي :

**فان كان بينهما كمال الانقطاع بلا ايهام:**

که چیري دجملتینو په مابین کي کمال انقطاع بلا ایهامه وو نو فصل واجب دا اول صورت .

(او كمال الاتصال) که چیري دجملتینو په مابین کي کمال اتصال وو نو فصل واجب دا دویم صورت (اوشبه احدهما) که شبه دکمال انقطاع وه نو فصل واجب ددا دریم صورت که شبه دکمال اتصال وه نو فصل واجب ده دا څلورم صورت :

(والا فالوصل) که چیري کمال انقطاع مع ایهام وه نو وصل واجب دا اول صورت که من وجه اتصال وو من وجه انقطاع وه نو وصل واجب دئ دا دویم صورت

## كمال انقطاع

(اما كمال الانقطاع فلاختلافهما خبرا او انشاء لفظا ومعنى)

اوس قزوینی کمال انقطاع را ښووي که یوه جمله خبریه وه لفظا ومعنی بله جمله انشائیه وه لفظا ومعنی دې ته کمال الانقطاع وائي لکه دا قول دشاعر (نحو وقال رائدهم أرسوا نُزاولها) قال رائدهم وویل قومندان او مشر ددې فوج ارسوا ودریږي نزاولها چي موږ علاج وکړو ددې جنګ آخر البيت دادئ (فكل حتف امرئ يقضي بمقدار) ټول اسباب دمرګ دسړي راځي په خپل مقرر وخت کي) لا يتأخر ولا يتقدم لهذا مقاومة سبب دمرګ نه

دئ او تبندیدل سبب دحیات نه دي په دې شعر کي ارسوا انشاء ده لفظا ومعنی نزاولها خبریه ده لفظا ومعنی نو دلته فصل واجب دئ یعنی واو به نه راوړي ځکه دلته کمال انقطاع دئ که څه هم دواړه مفعولان دي دقال اعراب محلی ددواړو نصب دي لیکن قطعه دنظر ددې څخه (او معنی فقط نحو مات فلان رحمه الله) که یوه جمله خبریه وه معنی بله جمله انشاء ده معنی دې ته کمال انقطاع وایی نحو مات فلان رحمه الله ترجمه فلان کي مړ سو خدای پاک دې یې وبخښي داسي ترجمه به نه کوي فلان کي مړ سو او بله خبره داده خدای پاک دې یې وبخښي له دې وجه دلته فصل واجب دئ ځکه عطف نه دئ صحیح ځکه رحمه الله انشاء ده معنی مات خبریة ده معنی (او لانه لا جامع بینهما) بېشکه خبره خو دي ده جامع نه سته په مابین دجملتینو کي نو په دي صورت کي چي جامع نه وي فصل واجب دي.

## یو سل او نولسم سبق

(واما کمال الاتصال فلکون الثانیة مؤکدًا للاولی لدفع توهم تجوز او غلط نحو لاریب فیه)

که دوهمي جملې اولی جملي لره حیثیت دتاکید لفظی درلودي یا دویمي جملي اولی جملي لره حیثیت دبدل درلودي بیا عام تر دې بدل الکل وي.

بدل الاشتمال وي بدل البعض وي دې ته کمال اتصال وایی نو فصل واجب دئ دکمال اتصال اوله ماده: دکمال اتصال اوله ماده داده چي دویمه جمله داولی جملي دپاره تاکید معنوي وي مثال﴿ ذٰلِکَ الکِتٰبُ لاریب فیه هدی للمتقین ﴾ لاریب فیه تاکید معنوي وي د ذالک الکتاب دپاره دلته دجملتینو په مابین کي واو نه سته ځکه کمال اتصال دئ نو فصل واجب دئ واو راوړل ناراه: طالبه دلته تاکید معنوی جوړول ډیر مشکل کار دئ سړي نه په پوهېږي چي تاکید معنوي به څرنګه جوړ سي علامه قزوینی او علامه تفتازانی تاکید معنوي دارکم جوړه وي ( ذالک اشاره ده دبعید دپاره او پر تعظیم دلالت کوي ( الکتابُ معرف بالام.

لهذا ( ذالک )معرف بالاشارة مبتداء ( الكتاب معرف بالام خبر مبتداء او خبر چي معرفه سي نو قصر فائده کوی معنی د ذالک الكتاب داده کتاب خو همدغه دئ بل کتاب کله وو که ته ووايي چي دنيا دکتابو ډکه ده ته څه وائی زه وايم دا په کتاب والی کي کمال ته رسيدلی يعنی آخيري درجې ته رسيدلی گويا کي ددې کتاب څخه علاوه نور کتب سماوية ناقص دي .

بل ليس بکتاب بلکي دا کتابونه نه دي :

دا يو کتاب آخيري درجې ته دکمال رسيدلي که ته ووائی چي کمال يې په کوم ځای کي دئ نو ته به ورته ووايي په دنيا کي داسي کتاب نه سته چي شک او شبه دي پکښي نه وي يوازی دا يو کتاب دئ چي هيڅ شک او شبه پکښی نه سته ځکه داسي دلائل داسي مالها وماعليها په خارج کي سته که سړي دا دلائل په کار واچوي نو شک او شبه به دييخه وباسي.

(لاريب فيه هيڅ شک او شبه پکښی نه سته دا دکمال دليل دئ گويا کي (لاريب فيه دذالک الكتاب کمال بيانوي ذالک الكتاب ويل کامل دئ .

( لاريب فيه هم ويل کامل دي نو تاکيد معنوي سو، سوال په لاريب فيه کي شک ولی نه سته جواب : هدی للمتقين ځکه شک پکښي نه سته ځکه دا خلگ جوړوي هغه نور سماويه کتابونه هغو به ويل وروسته عجيبه کتاب را روان دئ خلگ جوړوي هداية ورته کوي د تلخيص مولوي صاحب يوبل انداز ورکوي وايي بس کتاب همدغه دئ اخيري درجي دکمال ته رسيدلي مخاطب داسي ورته کتل توهم يې وکړي چي غلط سوي به يې داخبره دي جزافا يعنی اټکلن کړي چي متکلم لاريب فيه وويل دمخاطب توهم يې ورختم کړي له دې وجه لاريب فيه تاکيد معنوي دي د ذالک الكتاب دپاره ځکه تاکيد هم دفع دمجازي کول دفع دسهو کول ( واما کمال الاتصال هرڅه چي کمال اتصال دئ (فلکون الثانية مؤكدة للاولى) دويمه جمله به موکد وي داولی جملي دپاره (لدفع توهم تجوز او غلط) ددې دپاره چي دفع کړي توهم دمجاز توهم دغلط (نحو لاريب فيه) (فانه) بيشکه خبره خو دې ده (لما بولغ في وصفه څه وخت چي مبالغه وکړل سوه په وصف دکتاب کي (

ببلوغه الدرجة القصوي فی الكمال ) چي دې آخيري درجې دكمال ته رسيدلي دئ ( بجعل المبتداء ذالک) دلته ذالک مبتداء کرزېدلي ( وتعريف الخبر باللام) خبرمعرف با لام کرځيدلی (جاز ان يتوهم السامع قبل التأمل فی شان القرآن )امکان پيدا سو ددی چی سامع دی توهم وکړی په شان دقرآن کی (انه مما يرمی به جزافًا)

(انه :دا ذالک الكتاب (مما يرمی به :په دی سره تلفظ کيږی (جزافا: اټکلی: (فاتبعه نفيًا لذالک) نو ورپسی سو : تابع کړه سو لاريب فيه په ذالک الكتاب پوری له وجی دنفی دهغه توهم (فوزانه وزان نفسه )مرتبه دلاريب فيه مرتبه دنفسه ده :

(فی جاءنی زيد نفسه )لکه نفسه چی تاکيد معنوی دی دزيد څخه نو لاريب فيه هم تاکيد معنوی دی دذالک الكتاب څخه

## يوسل او شلم سبق

(دوهمه ماده دكمال اتصال )ونحو هُدًی لِلمُتَّقِينَ فان معناه انه فی الهداية بالغ درجة لا يدرک کنهها حتی کانه هداية محضة و هذا معنی ذالک الكتاب ) دوهمه ماده دكمال اتصال دتاكيد لفظي ده:قزوينی وائی هدًی للمتّقين تاکيد لفظی دئ دذالک الكتاب دپاره نو کمال اتصال سو :نو فصل واجب دی يعنی واو راوړل ناروا :

خو تاکيد لفظی جوړول مشکل دی : اجمالاً تاکيد ديته وايی په مؤکد کی تا يو خبره وکړه په دی خبره کي يو احتمال پيداسی تاکيد راولاړ سی دااحتمال ختم کړی مثال ماتکلم ته وويل جاءنی زيد ماته زيد راغلی مخاطب داتوهم وکړی چی زيد خو غټ سړی دی زيد به نو ی راغلی عمر به راغلی وی ما چی وويل جاءنی زيد زيد نو دده توهم می ورختم کړی : تاکيد لفظی داسی جوړيږی :ذالک الكتاب دغه دی کتاب په کمال کی اخيری درجی ته رسيدلی خصوصًا په اسمانی کتابو کی دغه کتاب په هداية کی کمال ته رسيدلی :هدًی للمتقين يی تاکيد وکړی ځکه معنی دهدًی للمتقين داده داکتاب په هداية کی هغه درجی ته رسيدلی چی انسانان دهغه دحقيقة ادراک نسی کولی :

دهدًی للمتقین او دذالک الکتاب ددواړو یوه معنی ده لهذا هدًی للمتقین تاکید لفظی دی دذالک الکتاب دپاره :ځکه دذالک الکتاب چی کم مضمون دی هغه مصمون دهدًی للمتقین دی :سر می نه سو خلاص : بیا ورته کوری خلاصی ته اجمالاً :
ذالک الکتاب : بس هم دغه کتاب په هدایة کی کمال او انتهار ته رسیدلی نو مخاطب توهم وکړی چی متکلم غلط سوی داخبره به متکلم جزافا یعنی اټکلن کړی وی :نومتکلم ورته وویل هدًی للمتقین دا کتاب سر تر فایه هدایة دی لهذا دا تاکید لفظی دی : دمخاطب توهم یی ختم کړی

(**قاعده**: دتاکید علامه )هر هغه وخت که مخکنی جملی حیثیت ددعوا درلودی :دوهمی جملی حیثیت ددلیل درلودی بس دا تاکید دی :ذالک الکتاب داکتاب په هدایةکی کمال ته رسیدلی ولی : دادعوه ده :ځکه هدًی للمتقین سر تر فایه هدایة دی :

(**ونحو هدًی للمتقین** :(**فان معناه** : معنی دهدًی للمتقین (**انه فی الهدایة بالغ درجة**)دغه کتاب په هدایة کی رسونکی دی یو درجی لره : (لا یدرک کنهها ) داسی درجه چی ددی دحقیقة ادراک نه کیږی :

(**حتی کانه هدایة محضه**) گویا کی دا خالص هدایة دی :

(**وهذا معنی ذالک الکتاب** : دغه معنی دذالک الکتاب ده : دهدًی للمتقین معنی داده دا کتاب په هدایة کی داسی درجی ته رسیدلی چی دحقیقة او انتهاء یی ادراک نه کیږی دامعنی دهدًی دتنوین څخه معلومه سوه :په هدًی کی تنوین دتعظیم دی : نو دا معنی داکتاب په هدایة کی دونه لوړ ختلی چی ادراک یی نه کیږی (وهذا معنی ذالک الکتاب : دذالک الکتاب معنی داده دغه خودی کتاب نور کتابو نه نسته ځکه په ده کی چی څومره هدایة دی هغه په نورو کتابو کی نسته : (**لان معناه کما مر الکتاب الکامل** )(**والمراد بکماله** )مراد په کمال دکتاب کی (**کمال فی الهدایة** : کمال فی الهدایة دی :

(**لان الکتب السماویه بحسبها متفاوتة فی درجات الکمال** )ځکه اسمانی کتابونه په اعتبار دهدایة سره متفاوات دی په درجاتو دکمال کی :لا بحسب غیرها یعنی په حسب دنزول سره

کتب سماویه برابر دي : (فوزانه وزان زيد الثاني : مرتبه د هدًي للمتقين مرتبه دزید الثاني ده په دی مثال کی جاءنی زید زید : او لكونها بدلاً منها)

(دریمه ماده دکمال اتصال )دریمه ماده دکمال اتصال داده چی دوهمه جمله داولی جملي څخه بدل واقع سی : که هر ځای اوله جمله مبدل منه وه :دوهمه جمله بدل وه نو فصل واجب دی یعنی واو راوړل ناروا :

دکمال اتصال دریمه ماده داسی جوړیږی زه متکلم یم مایو جمله وویل په دغه جمله کی زما یو مقصود دی :دا جمله زمامقصود پوره نه اداء کوی : یعنی دغه جمله زما په مقصود ورکولو کی غیر وافیه ده یا داسی ده له غیر وافیه دوهمه جمله چی راغله دغه نقص اوتاوان یی ختم کړی نو په دی صورت کی دوهمه جمله ذاولی جملی بدل واقع سوه :

او لكونها بدلاً منها) یا جمله ثانیة بدل وی داولی جملی څخه :

(لانها غير وافية بتمام المراد)ځکه جملة الاولی پوره مراد نه اداء کوی (او كغير الوافية )یاداسی وی لکه غیر وافیة :(بخلاف الثاني :دوهمه جمله پوره پوره مراد ورکوی

(و المقام يقتضي اعتناء بشانه لنكتة )الا عتناء هو الا هتمام مقام تقاضا کو ی دمراد شان مُهتَم دی دوجی دیو نکتی :

(ككونه مطلوبًا في نفسه او فظيعًا او عجيبًا او لطيفًا) مراد به مطلوب وی فی نفسه یابه مراد شنیع وی فی نفسه :یابه مراد نادروی :یابه مراد باریک وی نحو :أَمَدَّكُم بِمَا تَعلَمُونَ أَمَدَّكُم بِأَنعَامٍ وَّبَنِينَ وَجَنَّاتٍ وَّعُيُونَ )

ترجمه خدای وائی ماستاسو امداد کړی په هغه شیانو چی تاسو خبر یاست یعنی ماستاسو امداد کړی (با نعام :په نعمتو (وبنين : په زامنو :وجنات : په باغونو ،وعيون په چنو : مقصود دالله په (امدکم بما تعملون )کی څه شی دی : اودا مقصود غیر وافیه دی : مقصود دالله په جملة الاولی کی با لتفضیل انعامات په موږ باندی شمارل دی خو داجمله الاولی پر انعاماتو دالله اجمالا دلالت کوی :تفصیلا دلالت نه کوی اوحال دادئ چي دالله مقصود تفصیل دئ : بل دا چی الله پاک موږ ته حواله کړه او موږ انکار کوو چي الله پاک پر موږ

باندی نعمتونه نه دي کړی : دستی الله دوهمه جمله وویله دوهمه جمله پر انعاماتو دالله تفصیلا دلالت کوی : (فان المراد : مراد دالله مقصود دالله (التنبیه علی نعم الله )تنبیه ورکول دی پر نعمتو دالله : (والثانی اوفیٰ)دوهمه جمله ډیره اوفی ده :(بتادیته )په اداء کولو کی دمراد :(لدلالته علیها بالتفصیل )ځکه ثانی دلالت کوی پر نعمتو دالله بالتفصیل (من غیر احالة) حواله نه ده : (علی علم المخاطبین المعاندین ) یعنی جمله ثانی حواله نه ده وعلم دمخاطبینوته دلته دوهمه جمله داولی جملی څخه بدل واقع ده خو بدل څلور قسمه دی ۱بدل الکل ۲ بدل البعض ۳بدل الاشتمال ۴بدل الغلط :بدل الغلط په قرآن کی نه راځی : سوال بدل څلور قسمه دی دلته کوم یو قسم دی :جواب دلته بدل البعض دی : مخکی دڅلورو بدلو تحقیق ذکرسو :خو زه اجمالا د دوه بدلو ذکر کوم : ۱بدل البعض :بدل البعض دیته وائی چی بدل دمبدل منه جزوی مثال :اَکَلْتُ الرَّغیفَ نِصفَهُ) ۲بدل الاشتمال دې ته وائی چی مبدل منه ذکرسی بدل اجمالاً په تصور کی راسی خو بدل اومبدل منه په مابین کی به علاقه دکلیة اوجزیة نه وی خو بدل چی اجمالاً په تصور کی راځی دابه هغه نسبة څخه دفعل چی ومبدل منه ته دی : دمبدل منه څخه به نه وی مثال سُلِبَ عَمْرٌو ثَوبُهُ بل مثال اعجبنی زید علمه (فوزانه وزان وجهه فی اعجبنی زید وجهه ) مرتبه دثانی مرتبه دوَجهَهُ ده په دی مثال کی اعجبی زید وجهه (لدخول الثانی فی الاول) ځکه دوهمه داخله ده په اوله کی (امدکم بماتعملون )دکلی حیثیت لری :

الله پاک پرما اوتاباندی ډیر انعامات کړی خو :بنین :عیون: بعض دی ددی کلی انعاماتو څخه :

قاعده : که بدل دمبدل منه نفروٌ اوبدل په مبدل منه کی داخل ؤ بس دا بدل البعض دی :

والثانی نحوشعر اقول له ارحل لا تقیمنّ عندنا« والا فکن فی السر والجهر مسلما+ فان المراد به کمال اظهار الکراهة لا اقامته وقوله لا تقیمنّ عندنا اوفی بتادیته لدلالته علیه بالمطابقة مع التاکید فوزانه وزان حسنها فی اعجبنی الدار حسنها لان عدم

الاقامة مغاير للارتحال وغير داخل فيه مع بينهما من الملابسة) قزويني په دي شعر
كي دبدل الاشتمال مثال وركوي، ( **اقول له** : ماده ته وويل **اِرْحَل**: ځه ولاړ سه كوچ
وكړه، په ارحل كي پوره اظهار دكراهت دئ خو ارحل په كمال اظهار دكراهت كي اوفي
نه دئ ولی په ارحل كي امكانات سته هغه امكانات دادي ته كوچ وكړه له دي وجي له
دي وجي له دی وجي له دي وجي لا تقيمنّ عندنا: هرګيز ته زموږ سره مه اوسيږه
دغه جمله او فیٰ ده په تاديت دكمال كي ځكه لا تقيمنّ دلالت كوی پر پوره اظهار
دكراهت باندي بالمطابقة: سره دتاكيده داسي تاكيد چي حاصل دئ دنون ثخه :
فائده : كه چيري دوهمه جمله اولی جملی لره اوفیٰ وه په تاديت دمعنی مراده كي
بيا ورته وګوره دوهمه جمله په اوله جمله كي دننه داخله ده كه نه ده داخله كه داخله
وه دابدل البعض دئ كه نه وه داخله دابدل الاشتمال دئ **اقول له ارحل لاتقيمنّ عندنا**
: دلته دمسند په مابين كی مناسبت سته ځكه ارحل هم انشاء لا تقيمن هم انشاء په
فاعل كي هم مناسبت سته ځكه دارحل فاعل هم مخاطب دلا تقيمن فاعل هم مخاطب
نو ځای دعطف دئ ځكه په منسد ينو كي هم مناسبت دئ په مسند اليه كی هم مناسبت
دئ خو عطف نه كوي ځكه دلته كمال اتصال دئ دوهمه جمله داولی جملي مضمون
وركوي صرف اوله مبهمه ده اوفیٰ نه ده دوهمه جمله اوفیٰ ده په تاديت دكمال اظهار
دكراهت كي **والا فكن في السر والجهر مسلما** كه چيري نه ځی نو بيا به ته په سر او جهر
كي زموږ ده مني، **فان المراد به كمال اظهار الكراهة** : مراد په ارحل سره كمال اظهار
دكراهت دئ له وجی داقامته دمخاطب، **وقوله لا تقيمن عندنا اوفیٰ بتاديته لدلالته
عليه بالمطابقة مع التاكيد**: لاتقيمن عندنا ډيره اوفیٰ ده په اداكولو كي دمعنی مراد
• ځكه لا تقيمن دلالت كوی پر كمال اظهار دكراهت **مطابقةً** سره دتاكيده داسي تاكيد
چي حاصل دئ دنون ثخه دخبري خلاصه داده په ارحل سره اظهار دكراهت وسو خو
نور امكانات پكښي سته مجمله ده، لا تقيمن عندنا او فیٰ ده په دغه معنی وركولو
كی ټول امكانات ختم كوي خو شرط په بدل الاشتمال كي دادئ چي دوهمه جمله به په

اوله جمله کي داخله نه وي **فوزانه وزان حسنها فی اعجبني الدار حسنها**: مرتبه دلاتقیمن عندنا مرتبه دحسنها ده په دي مثال کي اعجبني الدار حسنها دغه مثال دبدل الاشتمال دئ زه په تعجب کی واچولم سرای امکانات پیدا سوه هغه امکانات دادي ته دسرای اوږدوالی په تعجب کی واچولی: ته دسرای پیراخوالی په تعجب کي واچولی نورهم سته چي حسنها وویل سو امکانات ختم سوه یعني زه دسرای حسن په تعجب کي واچولم **لان عدم الاقامة مغایر للارتحال** عدم اقامت مغایر دئ دارتحال سره ای بحسب المفهوم وان تلازما بحسب الوجود وغیر داخل فیه: عدم اقامت داخل نه دئ په مفهوم دارتحال کی، مع بینهما من الملابسة : دعدم اقامت او ارتحال په مابین کي مناسبت سته ( **او بیانا لها لخفائها نحو فَوَسْوَسَ اِلَیْهِ الشَّیْطٰنُ قَالَ یٰاٰدَمُ هَلْ اَدُلُّکَ عَلٰی شَجَرَةِ الْخُلْدِ وَمُلْکٍ لَّا یَبْلٰی**) پنځمه ماده دکمال اتصال: دوهمه جمله اولی جملی لره حیثیت دبیان لري، :

**فائده : مُبَیِّن** او **مُبَیَّنْ** ددوارو مصداق یووي خو یو غیر مشهوره وی بل مشهور وي : خو مشهوره بیان وي دغیر مشهوره دپاره دلته هم دیو جملی مصداق او مفهوم مشهوره نه وي دا مصداق او مفهوم به په بلی جملی کي مشهوره وی: **او بیانا لها لخفائها**: یادوهمه جمله داولی جملی بیان وي ځکه په اولی کی خفاء وي خفاء پر دوه قسمه ده : یوه خفاء من حیث الالفاظ بله خفاء من حیث المصداق، په عطف بیان کي دتورو معنی زما زده ده زه یی مصداق غوارم **فَوَسْوَسَ اِلَیْهِ الشَّیْطٰنُ** شیطان ادم علیه السلام ته وسوسه ورواچوله دلته دنفس تورو معنی زما زده ده خو ددی تورو مصداق ما ته نه دئ معلوم شیطان وسوسه یی ورواچوله څرنګه یې ور واچوله ابهام دئ دوهمي جملی یی بیان وکړئ د**قَالَ** بیا تر **مُلْکٍ لَّا یَبْلٰی** پورې داداولی جملی بیان او تفصیل او وضاحت کوی.

**قَالَ یٰاٰدَمُ** : وي ویل ای آدمه **هَلْ اَدُلُّکَ** : آیا زه وښیم تاته **عَلٰی شَجَرَةِ الْخُلْدِ** : یوه درخته دتل ژندی پاتی کیدلو : **وَمُلْکٍ لَّا یَبْلٰی** او پاچاهی چي نه زاړیږي قال یادم دا بیان

او توضیح دئ ددي قول فوسوس الیه الشیطن لکه عمر چي بیان او توضیح دئ دابی حفص، **فان وزانه (وزان عمر فی قوله اقسم بالله ابو حفص عمر)** مرتبه دقال یادم مرتبه دعمر ده په دي قول کي اقسم بالله ابو حفص عمر **ما مسّها من نقب ولا دبر** دشعر ترجمه قسم واخیستي په الله سره پلار دحفص چي عمر دئ په دي سره چي نه دئ رسیدلی تاوان لاندي طرف ته داوښي او نه یي پرشا زخم سته **(واما کونها کالمنقطعة عنها فلکون عطفها علیه موهما لعطفها علی غیرها)** کمال انقطاع : کمال اتصال ختم سوه شبه دکمال انقطعا شروع سوه **(واما کونها کالمنقطعة عنها)** دوهمه جمله به داسي وي لکه منقطع دجملی اولی څخه (فلکون عطفها علیها موهما لعطفها علی غیرها) له دی وجی که دوهمه جمله عطف سی پر اولی جملی باندی نو سامع به توهم وکړي چي دا جمله ثاني عطف ده پر غیر داولی باندی یعني دا پر بلی جملی عطف ده نو فساد دمعنی به راسی **(ویسمی الفصل لذالک قطعا مثاله وتظن سلمی انني ابغی بها بدلا اراها فی الضلال تهیم)** دشعر ترجمه وتظن سلمی: سلمی ګمان کوی دڅه شی ګمان کوی ددی ګمان کوی (انني : زه چي یم (ابغی : زه طلبوم (بها : په مقابل ددي کي (بدلا: بل بدل یعني داسلمی داګمان کوي پر ماباندي چي تابله معشوقه پیداکړي ده زما په مقابل کي او حال دادې چی ما بله معشوقه نه ده پیدا کړي (اراها: زه ګمان کوم پر دي سلمی باندی چي دا سلمی (فی الضلال : په ګمراهی کي ده (تهیم حیرانه ده یعني ګمان دسلمی خطاء ده: **وَتَظُنُّ** جمله خبریه ده، ارها جمله خبریه ده ددي دواړو جملو په مابین کي مناسبت ظاهره دئ ځکه دواړي جملی متحدي دي په مسند کي ځکه اراها په معنی داظنها ده مسند الیه دتظن محبوب دئ، مسند الیه دارها محب دئ، خو اُرَاها عطف نه سوه پر تظن باندي ددي وجه چي سامع توهم ونه کړي چي دا اراها عطف ده پر ابغي باندي ولی که چیري عطف سي : نو بیا به سي **مِنْ مَظْنُونَاتِ سلمی** دسلمی دظن څخه ولیس کذالک : دارکم نه دئ

**( ويحتمل الاستيناف واما كونها كالمتصلة بها فلكونها جوابا لسؤال اقتضته الاول فتنزل منزلته فتفصل عنها كما يفصل الجواب عن السؤال)** څه وخت چې مصنف فارغه سو دشبه کمال الانقطاع څخه شروع يې وکړه په شبه دکمال الاتصال کي (څلورم صورت شبه دکمال اتصال شبه ذکمال ديته وايي هر هغه ځای چې دمخته جملی څخه سوال را پيدا کيدی ورپسي جمله دهغه سوال څخه جواب جوړيده ددغه جملتينو په مابين کي شبه دکمال اتصال ده مثال ابراهيم عليه السلام ته فريشتي راغلی سوال پيدا سو فريشتو به څه ورته ويلي وي الله پاک وايي **قَالُوا سَلَامًا** ملائکو وويل سلامًا سوال پيدا سو چې دی ابراهيم به څه ويلي وي الله پاک وايي ابراهيم ورته وويل **قَالَ سَلَامٌ**:

**دقَالُوا سَلَامًا قَالَ سَلَامٌ** په مابين کي واو نسته ځکه داولی جملی څخه سوال را پورته کيدی دوهمه جمله دهغه سؤال دپاره جواب ده په کم ځای کي چې دوهمه جمله جواب دسوال جوړيده هغه سوال چې داولی جملي څخه را پورته کيږي ديته شبه دکمال اتصال وايي اهل بيان والا ديته استيناف هم وايي **وتظن سلمى انني ابغي بها بدلا أراها في الضلال تهيم**. دا مثال دشبه کمال الانقطاع دئ **( ويحتمل الاستيناف)** دا قول چې أراها دی احتمال لري داستيناف : استيناف داركم جوړيږي **( تظن سلمى)** سلمی ګمان کوی **( انني ابغي بهابدلا )** زه چې يمه طلب کومه دسلمی په مقابل کی دبلي معشوقی. سوال پيدا سو وائی ته څه پکښی وائی بر حق ده که بر غير حق ده: ده جواب ورکړی اراها فی الضلال : تهيم لهذا داشبه دکمال اتصل ده ددواړو احتمال لري هم شبه دکمال انقطاع هم شبه دکمال اتصال. **( واما كونها كالمتصلة** دوهمه جملة کالمتصلة بالاولی کيدل **( فلكونها جوابا لسؤال)** دوهمه جمله به جواب دسوال وي داسي سوال **( اقتضته الاولى** چې دهغه تقاضی کوی اوله جمله **( فتنزل نازلة** به کړه سي اوله جمله **(منزلته** په منزلة دسوال **(فتفصل عنها** جلا به سي دوهمه جمله داولی جملي څخه **( كما يفصل الجواب عن السوال** لکه جواب چې جلا کيږي دسوال څخه .

(قال السکاکی فینزل منزله الواقع) سکاکی وائی دغه سوال به نازل سی په منزلة دسوال واقع دپاره دیو نکتی قالوا سلامًا قال سلامٌ . قال سلامٌ جواب دی دهغه سوال څخه چي راپورته کیږي دقالوا سلامًا څخه (قالوا سلامًا عین سوال نه دئ صرف سوال ورڅخه پیدا کیږي که یو څوک سوال وکړي چي قالوا سلامًا قالَ سَلامٌ سوال او وجواب دی نو ته به ورته وائی یا نو واونه راوړل کیږي دسوال او جواب په مابین کي قالوا سلامًا عین سوال نه دی دقالو سلاما څخه صرف سوال را پورته کیږی لهذا ته واو ولی نه راوړي نو سکاکی وویل چي دا سوال نازل سي په منزلة دواقع یعنی دا سوال داسی سی لکه واقع دپاره دیونکتی هغه نکته داده دویمه جمله جواب ده دسوال او سوال په عبارت کی نسته زه را ولاړسوم اوله جمله می دسوال پر ځای واقع کړه ددی دپاره چي سامع دسوال څخه خلاص سي ګویا کی سامع تا سوال کړی مقصد دمتکلم داوی چي سامع دسوال څخه خلاص سی. دویم مقصد دمتکلم دا وی چي زه خبره وکړم بیا ته سوال وکړی زه بیا جواب درکړم یعنی متکلم دخپلي وینا په مابین کي دسامع ږغیدل نه غواړي (کاغناء السامع عن ان یسئل: متکلم دا غواړي چي سامع دي مستغنی سی ددی څخه چي سامع سوال وکړي (او ان لا یسمع منه شئٌ: یا متکلم وائی چي دسامع څخه شی وانه وریدل سی

## استیناف وتقسیمه

(ویسمی الفصل لذالک استینافًا) مسمی سو ترک العطف دهغه وجی از رویی استیناف (وکذا الثانیة) همدارنګه مسمی ده دوهمه جمله په استیناف سره

## یوسل اویوشتم سبق

(وهو علی ثلثة اضرب : استیناف دري قسمه دی : (لان السوال اما عن سبب الحکم مطلقًا نحو شعر قال لی کیف انت قلت علیل + سهرٌ دائمٌ وحزن طویلٌ ای ما بالک علیلا)
یو قسم استیناف دادی مثلا دایو جمله ده تا په دی جمله کی حکم وکړی ما ستا څخه

ددی حکم دمطلق سبب پوښتنه وکړه ( لان السوال عن سبب الحکم مطلقاً ) سوال به وی دمحکوم بِہ دسبب څخه په داسی حال کی چي دا سبب به مطلق وی . ( نحو قال لی کیف انت: شاعر وایی وویل ماته څرنگه دی ستا حال . ( قلت علیل: اَی انا علیل ما ورته وویل زه مریض یم: سائل سوال وکړی ستا دمریض والی څه سبب دی متکلم چي شاعر دی جواب ورکوی سهرٌ دائمٌ وحزن طویلٌ زما دمریض والی سبب بَدخابی ده داسی بدخابی چي همیشه وی. زما دمریض والی سبب غم دی داسی غم چي اوږد دئ: سوال دوه قسم دی یو غلط دی زموږ په عرف کی نسته. بل صحیح دی مثلاً عبدالاحد وویل مریض یم ما ورته وویل ولی مریض یې دا یو سوال. داسوال صحیح دی ځکه ما سوال وکړي دمطلق سبب څخه. عبدالاحد وویل مریض یم ماورته وویل دبدخابی دوجی مریض یې. ددیر غم دوجی خوبه مریض نه یی داسوال غلط دئ شاعر وایی انا علیل زه مریض یم سائل سوال وکړي ولی مریض یی شاعر جواب ورکړی سهر دائم وحزن طویل + اَی ما بالک علیلا ولی ته مریض یې (او ماسبب علتک ستا دمریض والی څه سبب دی .( واما عن سبب خاص نحو وما اُبَرِّئُ نَفسِی اِنَّ النَّفسَ لَاَمَّارَةٌ بِالسُّوْءِ : کانه قیل هل النفس امارة بالسوء وهذا الضرب یقتضي تاکیدالحکم کمامر ) یا به سوال وی دخاص سبب څخه مثال وما اُبَرِّئُ نَفسِی زه خپل نفس بری نه بولم. سوال وسو ولی یی بری نه بولی نفس دگناه څخه. نو ده وویل اِنَّ النَّفسَ لَاَمَّارَةٌ بِالسُّوْءِ ( کانه قیل هل النفس امارة بالسوء :( وهذاالضرب دغه ضرب (یقتضي تاکیدالحکم. تقاضی کوی چي مجیب به په جواب کي تاکید کوي (کما مر. لکه دا مخکی تیر سو په احوال الاسناد الخبري کي. قاعده که سوال دسبب مطلق څخه ؤ نو مجیب به په جواب کي تاکید نه کوی. که سوال دسبب خاص څخه ؤ نو مجیب به په جواب کي تاکید کوي. ( واما عن غیرهما نحو قالوا سَلامًا قال سَلامًا ای فماذا قال یا به سوال وي دغیر السبب المطلق والخاص څخه مثال قالوا سلامًا قال سلامٌ ملائکو وویل سلامًا سوال

ستاسو ورونه قریش دی. (لهم الف ددوی دپاره الفت او محبت دی په دوو کوچو سره چي یو په ژمی کي ویمن ته ؤ بل کوچ په دوبی کی شام ته ؤ. (ولیس لکم الاف. نستته ستاسو دپاره الفت دسفر په ژمي کي یمن ته او په دوبی کی شام ته (زعمتم ان اخوتکم قریش دا جمله منشأ دسوال ده سائل سوال وکړي اصدقوا ام کذبوا مجیب جواب ورکړي چي کذبتم تاسو درواغ وایاست دا جمله مستأنفه حذف سوه (لهم الف دا دلیل قائم سو په مقام دجملي مستأنفی (او بدون ذالک. جمله مستأنفه به تول حذف وي لیکن دجملي مستأنفی قائمقام او نائب به نوی. (نحو فَنِعْمَ الماهدُوْنَ اي نحن على قول) ای على قول من يجعل المخصوص بالمدح خبر مبتداء محذوف. بنا پر قول دهغه چا چي مخُصوص بالمدح خبر دمبتداء محذوف بولي تقدير دعبارت داد ئ هُمْ نَحْنُ واما على قول من يجعله مبتداء وماقبله خبرًا فليس من الباب. بنا پر هغه قول چي مخصوص بالمدح مبتداء ګرځوي مقابل دده خبر ګرځوی نو ددی باب څخه نه دی (واما الوصل لدفع الايهام فقولهم لا وَاَيَّدَكَ اللهُ) مثلا دادوی جملی دي ددی دووجملو په مابین کی واو راوړل ضروري دی که ددی دوو جملو په مابین کی واو را نسی وَهمه دخلاف مقصود پیښیږي دیته کمال الانقطاع مع الايهام وایی ( واما الوصل. عطف دجملی ثانی پر جملی اولی باندی ( لدفع الايهام. ددی دپاره چي دفع سي توهم دمعنی فاسدی (فقولهم. دا قول دعربو ( لا وايدك الله. زه متکلم یم. ته زما مخاطب یی دمتکلم او مخاطب یو مجلس وی نو متکلم دمخاطب مجلس او خبره ورختم کول غواړي پر مخ دعاء ورته کول غواړي نو متکلم ورته ووایی لا آی ليس الامر كذالک دا خبره داسی نه ده. وایدک الله خدای دی ستا نصرت وکړي دلته لا. مستقله جمله خبریه ده ځکه لا مخکي یو مضمون ختم کوي. وایدک الله دعاء ده انشاء ده. دلا. او دایدک الله په مابین کي کمال انقطاع ده ځکه یوه خبریه ده بله انشاء ده. که ته سوال وکړې چي دلته کمال انقطاع ده نو واو راوړل نا جائز دی جواب دلته واو راځي لدفع الايهام ددی

دپاره چي دعاء په بد دعاء وانه وړي. که واو رانه وړی نو دامعنی لا أَيَّدَكَ اللهُ خدای دی ستا نصرت نه کوی ددی معنی ددفع دپاره واو راوړي لا وايّدک الله. معنی داسی نه ده خدای دی ستا نصرت وکړي ابوبکر صديق رضی الله عنه ديو سړی څخه جامه وليده دهغه سړي څخه يې پوښتنه وکړه أَتَبِيْعُ هذاالثوبَ هغه سړي ورته وويل لا يرحمک الله ابوبکر صديق رضي الله عنه هغه سړی ته اويل لا يرحمک الله مه وايه داسي ووايه لا ويرحمک الله علامه تفتازانی زوزنی په مخه کړي زوزنی وائی وايّدک الله عطف دی پر قُلتُ ليکنْ زوزنی ديو غټ ملا عبارت را نقل کړی زوزنی وائی هغه ملا حکاية کوي هغه حکاية مشتمل دی پر دی قول قُلتُ لا وأَيَّدَكَ اللهُ لهذا دی وايی وايدک الله عطف دی پر قلت موږ علامه تفتازنی ته وويل ته څه وائی تفتازانی وائی وايدک الله پر قلت عطف نه ی ځکه دوه تاوانه کوي يو تاوان به دا وکړي که چيري وايّدک الله عطف سيْ پر قلت نو دعاء به لاندي تر قول داخل نسي معنی يې داده قُلتُ لا وقُلتُ ايّدک الله زه وايم داسی نه ده او بل دا وايم چي خدای دی ستا نصرت وکړي دوهم تاوان هغه څه چي ده ذکر کړی چي هغه عطف پر قُلتُ ؤ دا عطف تر هغه حکاية پوري خاص دی ليکن که يو سړی ووائی لا وايدک الله به غير دقلت نو احتياج به معطوف عليه ته پيدا سی ليکن معطوف عليه موجوده نه ده او حال دادی وجود العطف بدون معطوف عليه باطل. فبطل کلام ذالک القائل. نو کلام ددغه قائل باطل سو. ( واما للتوسط. زوزنی وايی اِمّا بکسر الهمزة فرق داَمّا اواِمّا . اَمّا په ځپل ځان کي متعدده وي يعنی اَمّا چي سره خلاس کړي مستقله جمله ده اِمّا چي سره خلاس کړی مستقله جمله نه ده يعنی په ګيده کي هيڅ نه لري اَمّا چي خلاس کړي مستقله جمله ده مثلا اَمّا بعد مهما يکن شئ من الاشياء بعد الحمد والصلوة . اَمّا په عنواناتو کي راځي اِمّا نه راځي. په کم ځای کي چي اجمال راسی. په تفصيل کي اَمّا راځي . اِمّا نه راځي په کم ځای کي چي عطف په اِمّا وسي نو په جانب دمعطوف عليه کي بله اِمّا راوړل واجب دی

مثال العدد اما زوج واما فرد . علامه تفتازانی وایی آمّا للتوسط عطف دی پر اما الوصل لدفع الایهام یعنی آمّا للتوسط تعلق نیسي تر الوصل پوري . الوصل مبتداء تقدير دعبارت دادی اما الوصل لتوسط الجملتين بين كمال الانقطاع وكمال الاتصال ( فاذا اتفقتا خبرا او انشاء لفظاً ومعنى او معنى فقط . تول اته صورتونه دی ( الجملتان المتفقتان خبرا او انشاء لفظاً ومعنى) دلته دوه صورتونه دی ١صورت دواړی جملی خبريتين لفظا ومعنی. ٢صورت دواړی جملی انشائيتين لفظا ومعنی . ( والمتفقتان معنى فقط ) دلته شپږ صورتونه دي ١ صورت دواړي جملی انشائيتين معنی لفظا دواړي خبريتين ٢صورت دواړی جملی انشائيتين معنی اوله جمله لفظا خبري ده دوهمه جمله لفظا انشائيه ٣صورت دواړي جملی انشائيتين معنی اوله جمله لفظا انشائية. دوهمه جمله لفظا خبريه . ۴صورت دواړي جملی خبريتين معنی لفظا دواړي جملی انشاييتين ۵صورت دواړي جملی خبريتين معنی لفظا اوله جمله انشاء. دوهمه جمله لفظا خبريه ۶صورت دواړی جملی خبريتين معنی اوله جمله لفظا خبريه . دوهمه جمله لفظا انشاييه مصنف داولو دوو صورتو دپاره دوه مثاله راوړي ( كقوله تعالى ﴿ يُخٰدِعُونَ اللهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ ﴾ يخٰدعون الله خبريه لفظا ومعنىً. وهو خادعهم خبريه ده لفظا ومعنی. په يخٰدعون الله كي مسند يُخٰدِعُ دی . په وهو خادعهم كي مسند خادعٌ دئ والجامع بينهما اتحاد المسندين دی ځکه دواړه مشتق دي من المخادعة څخه . ضمير په يُخٰدعُون الله كی راجع دی ومنافقينو ته دهُوَ ضمير په هُوَ خَادِعُهُمْ كي راجع دی والله ته لهذا دمسند اليهما په مابين كي شبه التضايف ده يا شبه التضاد ده (وقوله ﴿ إِنَّ الاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْم وانَّ الفُجَّارَ لَفِيْ جَحِيْمَ ﴾ إِنَّ الابرار لَفِي نعيم خبريه ده لفظا ومعنی . وان الفجار لفی جحيم خبريه ده لفظا ومعنی والجامع بينهما تضاد دی بين المسندين والمسند اليهما ( وقوله تعالى﴿ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا ولاتُسْرِفُوْا ﴾ .

دري سره انشاء دى لفظا ومعنى. په مابين داكل وشرب واسراف کی تناسب دی فی المعنى نو جامع خيالي دی.

## يو سل او درويشتم سبق

(وكقوله تعالى وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِيْ إِسْرَائِيلَ لَاتَعْبُدُوْنَ إِلَّا اللهَ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِيْنِ وَقُوْلُوْا لِلنَّاسِ حُسْنًا اى لا تعبدوا وتحسنون بمعنى احسنوا او واحسنوا) وبالوالدين احسانا مُتعلِق دي تر تُحْسِنُوْن پوري: تحسنون بمعنى أَحْسِنُوْا لهذا تحسنون عطف دي پر لا تَعْبُدُوْنَ الا الله باندي. دواړي انشايى دي معنى ځکه يو امر دی. بل نهي دي: يا وبالوالدين احسانا متعلق دى تر أَحْسِنُوا پوري اَحْسِنُوا عطف دى پر لا تعبدون الاالله باندي لا تعبدون لفظا خبرية ده. معنى انشائية ده. لا تعبدون په معنى دلا تعبدوا دى. موږ مخکي ويلي وه دعطف دپاره معنى کافى ده وَقُوْلُوا لِلنَّاسِ عطف دى پر لا تعبدون الا الله باندي قولوا لفظا او معنى انشائية ده لا تعبدون لفظا خبريه. معنى انشاء يا قولوا للناس عطف دى پر وبالوالدين احسانًا باندی په اعتبار دعامل محذوف ۀ سره چی هغه تحسنون بمعنى احسنوا دی يا قولوا للناس عطف دی پر احسنوا مقدرباندي.

قاعده: په نهى کی به منهى عنه متصور الوجود وی. په نفى کی دمنفى عنه وجود ضروری نه دی مثال لا تَنْظُرْ ته ړانده ته ويلای سی لا تَنْظُرْ نسی ويلای هر وخت که تا منهى عنه دبيخه ايستل نو نهى په شکل کی دنفی راوړه مثال لا تعبدون نهی دی ليکن شکلا نفی دی.

## والجامع بينهما

(والجامع بينهما يجب ان يكون باعتبار المسند اليهما والمسندين جميعا) ترجمه جهة جامعه په مابين دجملتينو کي ضروری ده په اعتبار دمسند اليهما کی. په اعتبار دمسندينو کي جميعا دامذهب دقزوينى دی يعنى په مسند اليهما کي به هم جهة جامعه

وي په مسندينو کي به هم جهة جامعه وي بيا عطف بالواو صحيح دی ليکن دسکاکی په نيز مناسبة په ټولو اجزا کي شرط نه دی .که مناسبة په بعضو اجزاؤ کی ؤ بيا عطف بالواو صحيح دی .دسکاکی مذهب خوندور دی.نحو **يشعر زيد ويكتب**. دلته يکتب جمله فعلية عطف ده پر يشعر زيد جمله فعليه باندي دوجي دمناسبة . په مسند اليهما کي علاقه دعينيت او اتحاد ده. په مسند ينو کی علاقه دتماثل ده ځکه هريو تاليف دکلام دی. ( **ويعطي ويمنع**. دلته يمنع عطف دی پر يعطی باندی په مسند اليهما کی علاقه داتحاد ده . په مسندينو کي علاقه دتضاد ده . (**وزيد شاعر وعمرو كاتب وزيد طويل وعمرو قصير لمناسبه بينهما** : **بخلاف زيد شاعر وعمرو كاتب بدونها وزيد شاعر وعمرو طويل مطلقا**) .

## يو سل او ځلرويشتم سبق

(السکاکی اوله خبره الله پاک په انسان کي پنځه حواس ظاهره پيدا کړي ديته جواسس ظاهره وائی ځکه دا په حقيقة جاسوسان دي دحواس باطنه دپاره. هغه حواس ظاهره دادی ١ قوة باصره ٢ شامه ٣ سامعه ۴ ذائقه ۵ لامسه :

پنځه حواس باطنه دی. ١ حس مشترک ٢- خيال ٣ وهم ۴ حافظه ۵ متصرفه :

اول حس مشترک ادراک دصور جزئياتو کوی په امداد او کومک سره دحواس ظاهر . دا صورت جزئيه خيال ته غورځي خيال دحس مشترک دپاره خزانه ده **دوهم** : قوة واهمه ادراک دمعانی جزئيو کوی لکه صدق او عداوت دزيد . دا معانی جزئيه حافظي ته غورځي حافظه دقوة واهمه دپاره خزانه ده : الله پاک په زړه کي قوة عاقله پيدا کړي. قوة عاقله ادراک دکلياتو جزئياتو مجردو کوی. قوة متصرفه صورت جزئيه. معانی جزئيه سره يو ځای کوی : حس مشترک ادارک دصورت جزئيه کوی واهمه ادارک دمعنی جزئيه کوي. عاقله ادارک دکلياتو کوي مثال ميږي ليوه وليدی. دميږی حس مشترک اول وار صورت هذا الذئب را پورته کړي قوة واهمه عداوت هذا الذئب راپورته کړي قوة عاقله عداوت الذئب راپورت کړي ( صورت هذا الذئب . صورت جزئيه دی

دادحس مشترک کار دی عداوت هذالذئب معانی جزئیه دي دا دواهمي کار دی . عداوة الذئب کلی دیٔ دا دعاقلي کار دی. حس مشترک. واهمه. عاقله. دادري سره اسباب ددرک دی لیکن دادری سره محتاج دی وقوة متصرفه ته . سکاکی وايی جهة جامعه دری قسمه دی ١ عاقله ٢ واهمه ٣ خياليه . (السکاکی الجامع بين الشيئين اما عقلی اووهمی اوخيالی. جهة جامعه په مابين دشيئينو کي يا دجملتينو کي عقلی وی . يا وهمی وی . يا خيالی وي. جامع عقلی ددوی په اصطلاح کی هغه ربط او علاقه بين الجملتين ته وايی چي په سبب ددی علاقی سره عقل حکم کوی متصرفی ته چي عطف د ثانيه کوه په اولی باندی . (اماعقلی بان يکون بينهما اتحاد فی التصور او تماثل هناک الخ جامع عقلی دری قسمه دی ١ اتحاد ٢ تماثل ٣ تضايف تماثل عند المناطقه ديته وائی چي دشيئينو په مابين کی اتحاد في النوع وی. مثال لکه زيد او عمر. دزيد او عمرپه مابين کی اتحاد فی النوع ده يعنی ددواړو يوه نوع ده هغه نوع انسان دی: دزيد او چرگي يوه نوع نه ده ځکه دزيد نوع انسان دی. دچرگی نوع دجاجه ده : تماثل عندالبيان ديته وايی چي داتحاد فی النوع سره سره اتحاد فی الوصف الخاص هم وی. مثال لکه دوست او نيک داتحاد فی النوع سره سره اخوة هم لری زما او د دوست داتحاد فی النوع سره صداقت انډيوالی هم سته سوال عقلی درک دکلياتو کوي ددوست او نيک په مابين کي اخوة جزي دی کلی نه دی اخوة ددوست للنيک اخوة دنيک للدوست جزی دی. کلی نه دی زما او ددوست په مابين کي صداقت او انډيوالی جزي ده. کلی نه ده. قزوينی ددی جواب ورکوي عقل چي څه وخت درک دکلی شی کوی دمشخصاتو څخه يې خالی کړي وروسته مشخصات ورواغوندی ( فان العقل. قوة عاقله ( بتجريده المثلين) په سبب دخالی کولو دعقل مثلينو لره ( عن التشخص فی الخارج) دتشخص خارجی نه ( يرفع التعدد بينهما تعدد ختم کړي په مابين کي ددوی دواړو. مثلا دوست حيوان ناطق مع هذا التشخص نيک حيوان ناطق مع هذاالتشخص عقل چي ورمتوجه سی مع هذ ا التشخص ختم کړي خالی حيوان ناطق: حيوان ناطق پاته سي نو تعدد ختم سو ( او تضايف. تضايف ديته وايی چي تصور

داحدهما موقوفه وي اخر لره مثال اَب او ابن تصور داب موقوف دی ابن لره تصور
دابن موقوف دی اب لره. (کما بین العلة والمعلول علت ته علت ځکه وایی چي دی
معلول په وجود کي راولی. معلول ته معلول ځکه وایی چي دی علت په وجو کي راولی
. (والاقل والاکثر نحو الثلثة فرد والاربعة زوج په مابین دفرد او زوج کي علاقه
دتضاد ده او په مابین دثلثة او اربعة کی علاقه دتضایف ده ځکه ثلثة اقل دی او اربعة
اکثر دی او اقلیت دثلاثة ؤ معلومیږي داربعه څخه او اکثریت داربعه دثلاثة څخه
معلومیږي:
او وهمي. یا به په مابین شیئینو کي داسي ربط او علاقه موجوده وي چي سبب دهغه
ربط سره وهم متصرفی ته حکم کوی چي عطف دثانی کوه په اول باندي اما عقل وایی
مه کوه او.وهم رییس القوی دی داغالب کیږی په عقل باندي غلط حکمونه کوي. جامع
وهمي دری قسمه دی ۱ شبه التماثل ۲ تضاد ۳ شبه التضاد. (بان یکون.موجود به وي
(بین تصوریهما. په مابین دشئینو کي (شبه تماثل کلونی بیاض وصفرة فان الوهم
یبرزهما فی معرض المثلین) شبه تماثل دیته وایي چي وهم ورته متوجه سي دواړه وهم
یو شی جوړ کړي دارکم دوه شیان راواخله دادوه شیان په حقیقت کی یو دی مگر په
دغه شي کي دبل یو شی لږ زیاتوب سو وی وهم ورته متوجه سی له ده څخه هغه زیاتوب
شی لری کړی وایي دا خویو سو. مثال لکه بیاض وصفرة سپین رنگه ته چي معمولي
سور رنگه ور زیات کړي نو زیړ واوړي وهم چي ودادوو رنگو ته متوجه سو وایي زیړ
رنگه خو سپین رنگه دی ماسی معمولی سور والی ورزیات سوی دی لهذا وهم چي
ورته متوجه سی هغه زیادت چي سور والی دی هغه لري کړي نو زیړ او سپین یې دواړه
سپین ښکاره کړه پاته تور او سپین که هر څو وهم ورته متوجه سی دتور څخه سپین نسي
جوړه وای ځکه دتور او سپین په مابین کی تضاد دی شبه دتماثل نسته (فان العقل
قوة واهمه (یبرزهما: ښکاره کوي دوی دواړه (فی معرض المثلین: په معرض دمثلینو
کي چي دادواړه یو شی دی صرف په یوه کي لږ زیادت دی (ولذالک حسن الجمع بین

**الثلاثة فی قوله شعر)** ( **ولذالک**: داغه خو وجه ده ( **حسن الجمع**: ښه ده جمعه ( **بین الثلثة فی قوله شعر** ) په مابین ددرو کی په دی قول دشاعر کی ( **ثلثة تشرق الدنیا ببهجتها + شمس الضحی وابو اسحق والقمر +** دری شیان دنیا روښانه کوي پخپل حسن سره اول شمس الضحی دی. دوهم ابو اسحاق دی دریم القمر دی. وهم دا ښکاره کوی چي ددادرو یوه نوعه ده چي هغه روښانه کیدل ددنیاکوی دادری سره مختلف دی بالعوارض **وهی کون الشمس کوکبا معینا نهاریا: وکون القمر کوکبا مشخصا لیلیا**: و کون ابو اسحاق انسانا: په شمس او قمر کی اشراق حسی دی په ابو اسحاق کی اشراق عقلی دی ( **او تضاد کالسواد والبیاض والایمان والکفر وما یتصف بها)** تضاد دیته وایي چي دواړه وجودی وی او دواړه به پریوه محل راتلی سي لیکن که یو راغلی دبل به هیڅ امکان نه وی. لکه سواد او بیاض که یو واریو شی تورسو قطعا سپین نسي کیدای که یو واریو شي سپین سو قطعا تور نسي کیدای په یوه وار تور او سپین یو ځای ته راتلل ناممکنه ده تورهم وجودي دئ، سپین هم وجودي دئ لهذا دلته تضاد دئ. لیکن سواد او بیاض په محسوساتو کی ایمان او کفر دا دواړه یو ځای ته راتلل ناممکنه ده کم محل ته چی اسلام ولاړسی هغه محل ته کفر نسی تلی کم محل ته چي کفر ولاړ سی هغه محل ته اسلام نه سی تلی. داسی نسی کیدی چي یو سړی دی هم کافروی هم دی مؤمن وی لهذا یو به وی: ایمان او کفر په معقولاتو کی: نفس تور. نفس سپین. نفس ایمان نفس کفر داسره متضادین دي ( **وما**: هغه نفر ( **یتصف بها**: چي متصف وی په دی مذکوراتو پوري نو په دوی کي هم تضاد وی دا معنی زه تک تور یم ملا دوست محمد تک سپین دی اوس ما او ملا دوست محمد سره متضادین یو لکه نفس تور واله او سپین واله چي سره متضادین دي همدارنګه ما او ملا دوست محمد سره متضادین یو: یو سړي کافر دی. بل سړي مؤمن دی. کافر او مسلمان سره متضادین دی لکه نفس کفر او ایمان چي سره متضادین دي همدارنګه مسلمان او کافر سره متضادین دي.

( **اوشبه تضاد کالسماء والارض والاول والثانی فانه یلازلهما منزلة التضایف)** شبه تضاد دیته وایي چي دتضاد ټول شرائط پکښي پوره نه وي بعض شرائط پکښي وي: په تضاد

کي يو شرط داؤ چي دواړه به په يوه محمل کي واقع کيدای سی او ددوی دواړوپه مابين کی به غاية التفاوت وی او دواړه به وجودی وی: داسمان او دځمکي په مابين کی تضاد نسته شبه تضاد سته ولی هغه وصف چی دواړه به په يو محل کي واقع کيدای سي دا وصف په اسمان او ځمکه کی نسته اسمان او ځمکه په يو محل کی نسي واقع کيدای يوه شی ته اسمان او ځمکه نه ويل کيږي دتضاد بعض شرائط په شبه تضاد کی سته هغه دادی اسمان او ځمکه دواړه وجودي دي اسمان په غاية الارتفاع کی دی ځمکه په غاية الانحطاط کی ده لهذا اسمان او ځمکه متضادين نه دی ځکه توارد داسمان او دځمکي پر يو محل نه کيږي ځکه دوی دواړه دمن قبيل الاجسام څخه دی دمن قبيل الاعراض څخه نه دی .(**والاول والثاني**: اول او ثانی متضادين نه دی ولی په تضاد کي شرط دادی چي دواړه به وجودي وي دواړه به په يو محل کي واقع کيدای سي : اول او ثانی دواړه وجودی نه دی. په يو محل کي واقع کيدای نسی نو شبه تضاد پکښي دی ځکه اول دثانی ضد دی چي تر څوپوري اول والی نه وی ختم سوي ثانی والی نه راځي. چي تر څو پوري ثانی والی نه وی ختم سو ی ثالث والی نه راځي لهذا يو به ختميږي بل به په وجود کي راځي نو ددوی په مابين کي تقابل دسلب او ايجاب دی. يا تقابل دعدم او ملکه دی. ( **فانه ينزلهما منزلة التضايف**: ځکه وهم. تضاد او شبه تضاد ګرځوي په منزله دتضايف: په دارکم چي ديوه تصور وکړي تصور دضد خپله راځي . ( **ولذالک تجدالضد اقرب خطورا بالبال مع الضد**) دا غه خو وجه ده چي يو ضد به دبل ضد سره په زړه کي ډير نژدي پيدا کيږی مثال په تصور داسمان سره زموږ ذهن ته تصور دارض ژر راځي موږ چي تصور دسواد وکړو نو زموږ ذهن ته ژر دا راځی چي سواد مبائن دی دبياض سره. چي دبياض تصور موږ وکړو نو ذهن ته ژر داراځي چي بياض مبائن دی دسواد سره . چي ورځ زموږ په ذهن کي راسي نو ذهن ته ژر شپه راځي: قاعده که هر وخت ديوه تصوير سره بل تصوير راتلی نو عطف کيږي که ديو دتصوير سره بل تصوير نه راتلی بيا عطف نه کيږي ( **او خيالي بان يکون بين تصوريهما تقارن فی الخيال سابق علی العطف** ) خيال ددوی په اصطلاح کي ديته وايي چي دمعطوف او معطوف عليه په

مابين كي به داسي علاقه وي چي په سبب دهغي سره خيال حكم كوي قوة متصرفى ته چي ثانى عطف كوه پر اول باندي اوس دا خيالى يو كلي دي دهغى لاندي ځومره مصداقونه دي دهغي انضباط نسته. ( بان يكون بين تصوريهما تقارن فى الخيال سابق على العطف: په مابين دشئينو كي به تقارن فى الخيال وي داسي تقارن چي دا تقارن به مخكي وي پر عطف باندي. (واسبابه مختلفة) اسباب دتقارن فى الخيال مختلف دى مثلا زما تعلق دعلم سره دى دنصيب الله تعلق دشاعري سره دى. دنيک تعلق دسياست سره دى. ددوست تعلق دتبليغ سره دى وغيرذالک : لهذا دهر چا خپل تصورات دى: يو طالب ډير وړي ؤ يو چا دجمعي سوال ورځخه وكړي ورته وى ويل دوه او دوه يې څو نو دطالب په ذهن كي دوډى ګرځيده او راګرځيده نو ورته وې ويل څلور دوډى. كيږي لهذا دهر چا ددماغ تصويرونه جلاجلا وى ځكه قزوينى وايي چي اسباب دتقارن فى الخيال مختلف وي: نجار اره او چاكو دواړه استعمالوى دنجار په دماغ كى دچاكو او دارى ددواړو تصويرونه دى لهذادواړه سره عطف كولاى سى ليكن ما او تا يى نسو عطف كواى ځكه ما او تا نجار ان نه يو او دا تصويرونه زما او ستا په دماغ كى نسته: ( ولذالک اختلف الصور الثابتة فى الخيالات ترتبا ووضوحا) داغه خو وجه ده چي مختلف دى صور داسى صور چي ثابت دى په خيالاتو كي دجهته دترتيب مثلا ديو سړى په خيال كي صورتونه مرتب دى دبل سړى په خيال كى غير مرتب دى لكه اره او چاړه دنجار په خيال كي مرتب دى دعام سړي په خيال كي غير مرتب دى : دجهته دوضاحت مثلا يوه متكلم ته به دا صورتونه معلوم او واضح وي بل متكلم ته به دا صورتونه معلوم نه وى ( ولصاحب علم المعانى فضل الاحتياج الى معرفة الجامع لا سيما الخيالى ) صاحب دعلم معانى زيات احتياج لري ومعرفت ته دجامع ځكه لوى باب دعلم المعانى فصل او وصل دى: دغه فصل او وصل مبنى دى پر جامع بيا خاص كر معرفت دخيالى ضروري دى .( فان جمعه على مجرى الالف والعادة) ځكه جمع كول دى دخيال خيال امرين جمعه كوى: ( على مجرى الالف والعادة : دا جارى او بناء دى پر الف او عادت باندي:

(ومن المحسنات الوصل تناسب الجملتين فى الاسمية والفعلية)) دوصل دمحسناتو ځخه تناسب دجملتينو دی په اسمية کی چي دواړي جملی به اسميتين وي په فعليت کی چي دواړي جملی به فعليتين وي (والفعليتين فى الماضى والمضارعة الالمانع) تناسب دفعليتينو به وی په ماضی کی يعنی دواړی جملی به فعليتين ماضيتين وي: تناسب دفعليتينو به وی په ماضی کي يعنی دواړی جملی به فعليتين ماضيتين وي: تناسب دفعليتينو به وی په مضارعت کی يعنی دواړی جملي به فعليتين مضارعتين وي مګر که مانع ولاړ نهٔ وي:

## اجراء الفصل والوصل

الحمد لله رب العلمين، الرحمن الرحيم، ملك يوم الدين، اياك نعبد، واياك نستعين (الفاتحة ١/٥)

**تشريح:** دالحمد لله ځخه بيا تر ملک يوم الدين پوري يوه جمله ده، اياک نعبد واياک نستعين بله جمله ده ددغه دواړو جملو په مابين کي واو نسته:

**فائده:** هر ځای که مضمون سره بدل سو کمال انقطاع ده مګر شرط دادئ چي دمضمونينو په مابين کي به تضاد نه وي که تضاد وو بيا جهة جامعة سته مثال اِنَّ الاَبْرَارَ لَفِيْ نَعِيْمٍ وَاِنَّ الْفُجَّارَ لَفِيْ جَحِيْمٍ:

ددغه دواړو جملو مضمون سره جلا دئ مګر جامع ددوي دواړو په مابين کي تضاد دئ نو من وجه اتصال دئ من وجه انقطاع ده نو وصل واجب دئ الحمد لله: نبی عليه الصلوة والسلام په حديث کي وايي چي الله پاک وايي دا جمله زما ده حَمِدَنِیْ رَبِّیْ، اياک نعبد واياک نستعين ځان ته مضمون دئ من وجه مضمونان سره جلا سوه ددې دواړو جملو په مابين کي تضاد نسته نو عطف نه پريږدي په الحمد لله کي مسند اليه حمد دئ داياک نعبد مسند اليه نحن دئ نو يو ځای مسند اليه وصف دئ بل ځای ذات دئ نو دحمدُ او دنحنُ په مابين کي مناسبت نسته جهة جامعة نسته نو

ددواړو مضمونان اجمالا او تفصيلا سره جلا دي نو جهة جامعة نسته نو واو به نه راځي :

**اياک نعبد اياک نستعين :**

اياک نستعن دا جمله عطف ده پر اياک نعبد باندي :

**تشريح:** **اِيَّاكَ او اِيَّاكَ** سره برابر دئ دنعبد ضمير او دنستعين ضمير سره برابر دئ صرف عبادت او استعانت ددئ دواړو په مابين کی مناسبت سته نو جهة جامعة من کل وجوه راغلي نو عطف هم راغلی اوس راشه دعبادت او داستعانت په مابين کي جهة جامعة څه شي دئ عبادت دالله کول استعانت دالله څخه غوښتل دادواړه سره قريب دي الله سبحانه داستعانت او عبادت تعبير په قران کي په عبادت کړي

**اِنَّ الَّذِيْنَ يَسْتَكْبِرُوْنَ عَنْ عِبَادَتِيْ سَيَدْخُلُوْنَ جَهَنَّمَ دَاخِرِيْنَ :**

دعبادت څخه بالاتفاق دعاء مراد ده او دعاء استعانت ده الله پاک دعاء ته عبادت ويلي، دالله رسول وايي :

**اَلدُّعَاءُ مُخُّ الْعِبَادَةِ :**

عبادت ديته وايي چي سړئ يو چاته ځان انتهائي ذليل ښکاره کړئ انتهائي تذلل ته عبادت وايي دچا درگا ته کچکول نيول بيا په دې شکل نيول چي ټول عمر به تاته کچکول نيسمه دبل چا درگا ته به کچکول نه وړم راځم به خالص دغی درگا ته دغه نو انتهائي تذليل دئ :

لهذا عبادت او استعانت سره قريب دي بلکي که دا درته ووايم چي عبادت به جنس کړو استعانت به ددغه عبادت يو خاص نوعه سي طالبه پر بيت الله را تاويدل عبادت خو له بندول دالله دپاره عبادت ټيټ کيدل عبادت، کچکول ورته نيول عبادت نو گويا کي دجنس او نوعی حيثيت يې واخيستي او قانون دادئ چي دنوعي څخه فصل وه باسي جنس جوړيږي دحيوان ناطق څخه چي ناطق لري کړې حيوان جوړيږي موږ وويل عقل چي يو شي ته متوجه سي عوارض لري کړي دوی مثلين په معرض کي دمثل واحد ښکاره کړي ودغه ته ويل کيږی تماثل، تذلل په شکل دکچکول اوس کچکول لري کړه تذلل به پاته سي او عبادت هم انتهائي تذلل نو

دواړه یو شي سوه عقل چي عبادت او استعانت ته متوجه سي دواړه یوه شي ته راباسي نو ددواړو په مابین کي تماثل سو؛

اهدنا الصراط المستقیم : دایاک نعبد وایّاکَ نستعین او اهدناالصراط المستقیم په مابین کي کمال انقطاع ده، ولی یوه خبریه ده بله انشائیه ده نو واو به نه راوړي که خبر اوانشاء نه وای نو موږ به عطف کړي وای ولی په اهدنا الصراط المستقیم کي موږ نوی شی نه غواړو زوړ شي غواړو ایّاک نعبد وایاک نستعین:

خالصة ستا عبادت کوو او هر شی که می په کار سو خالصة له تایي غواړو او پر دې مي ایمان هم دئ اهدنا بس پر دغه مي ته ثابت قدم کړه او په دغه حالت کي مرګ راته راوله ولی مخته هدایت وو ولی موږ په خوله اقرار وکړئ چي اِیّاکَ نعبد وایاک نستعین خالصة له تا مدد غواړو نو داعین هدایت دئ اوس چي ته بیا هدایت په اهدنا کي غواړي دا خو تحصیل دحاصل دئ عجیبه نه ده په خوله یو وار اقرار کوي چي خالصة ستا عبادت کومه او خالصة له تایې غواړم فقیره مریږي ولی نه چي اِهدنَا ته هدایت راته وکړه نو ددې خو دا معنی چی ته مخته ګمراه وي لهذا بنکاره خَبره ده چي مقصد په اهدنا کي ثبات علی الهدایة دئ یعنی دغه هدایت چي ما په خوله اقرار په وکړئ یا الله زما وزړه ته یې هم شوه کوه هر وخت چي زړه ته شوه سو بس ثابت قدم سو طالبانو دا ټوله تقریر دواو دراوړلو او نه راوړلو دئ :

**اَنَّهُ هُوَ اَضۡحَکَ وَاَبۡکٰی وَاَنَّهُ هُوَ اَمَاتَ وَاَحۡیٰ (النجم ۴۳/۴۴)**

**تشریح :** یو ځای الله وایی خوشحالي او غم زما په لاس کي دي الله وایي خندوونکي ذات هم زه یم ژړونکي ذات هم زه یم په مال، دولت، قوم په یو شي کي خوشحالی نسته خو شحالي او غم زما له طرفه درځي، انه هو امات واحی : مرګ اوژوند هم زما په لاس کي دئ دا دوی جملې دي ددواړو مضمونان سره جلا دي، انه هو اضحک وابک دا جلا مضمون وانه هو امات واحی جلا مضمون نو واو نه غواړي لیکن اضحک وابک امات واحی دوې جملې دي او دافعلو نه متعدی دي، ای: اَضۡحَکَکَ . اَبۡکٰکَ . اماتَکَ. اَحۡیٰکَ چونکي داضحک او ابکی په مابین کی تضاد دئ دا دواړه دانسان کیفیات دی او دواړه کیفیات مثبت دي او دواړه کیفیات

پريو محل راځي او دواړه كيفيات په يوه وخت كي نه راځي يكي باديگري راځي نو ددواړو په مابين تضاد دئ دواړه سره متقابل دي امات واحيا: دا دواړه سره متضاد دي لهذا ددواړه مضمونان سره جلا دي نو عطف نسته خو كوچنى جملې چي خبر واقع دي ددوى په مابين جهة جامعه سته نو ځكه عطف دئ:

**لَهُمْ قُلُوبٌ لَّا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لَّا يَسْمَعُونَ بِهَا ( الاعراف ۱۷۹)**

اجمالا تركيب: لَهُم خبر مقدم قُلوب لَايَفقهون بهاَ: مبتداء مؤخره، وَلهم، خبر مقدم، اَعين لا يُبصرون بها: مبتداء مؤخره، وَلَهم خبر مقدم، اذان لا يَسمَعون بِها مبتداء مؤخره:

**تشريح:** دادرې سره جملې اسميي دې او سره عطف دي جهة جامعة سته، من وجه اتصال من وجه انقطاع دېته جهة جامعة وايي، لهم قلوب لا يفقهون بها: دا ځان ته جلا مضمون لري، ولهم اعين لا يبصرون بها،: داځان ته جلا مضمون لري، ولهم اذان لا يسمعون بها: داځان ته جلا مضمون لري، دغه مضمونان بعينه يو شى نه دي چي يو دبل دپاره تاكيد سي، نو مضمونان سره جلا دي من وجه انقطاع راغله اوس راسه من وجه اتصال پيدا كړو لهم، لهم، لهم په خبرو كى سره برابر دي قلوب، اعين، اذان دادري سره اعضاء دي دانسان اوس راسه زړه، ستركه، غوږ داڅوک جمعه كوي وهم خيال عقل څوک يې جمعه كوي زړه ستركه غوږ دادرې سره اعيان دي داعيانو تصاوير قوت خياليه سره جمعه كوي زړونه لري پوهه نه په كيږي ستركي لري ليدل نه په كيږي غوږنه لري اوريدل نه په كيږي پوهيدل اوريدل ليدل دادري سره اعراض دى دلته عدم فقاهت دكفارو مراد دئ نو جزى سو قوت خياليه سره جمعه كوي دعدم فقاهت سره عدم بصر عدم سمع په دماغ كي راځي دلا يفقهون لا يبصرون لا يسمعون په مابين كي جهة جامعة راغلى دقلوب اعين اذان په مابين كي جهة جامعة راغلى نو ځكه واو عاطفه راغلى:

**أُولَٰئِكَ كَالْأَنْعَامِ**: دلته واو نسته ځكه داجمله تاكيد معنوى ده دمختته جملې څخه ځكه حيوان دماوراء المحسوسات څخه هيڅ نه محسوسوي كافر دماوراء المحسوسات

څخه هیڅ نه محسوسوي وایي خدای نه وینم نو څنګه یې ومنم ، دقبر عذات نه وینم څنګه یې ومنم؛نو الله وایي دا داسي دي لکه حیوانات لهذا اولئک هغه مضمون ورکوي کوم مضمون چې مخته جمله ورکوي اولئک هم المفلحون دلته واو نسته ځکه دا تاکید معنوی دئ داولئک کالانعام څخه تاکید معنوی مختهٔ یو وهمه وي هغه رفعه کوي دلته وهمه سته هغه وهمه داده ولی حیوانات ورته وایی دابه تا اتکلن ورته ویلي وي دغه وهمه په اولئک هم الغافلون دفعه سوه قطعا دوی ته اتکلن حیوانات نه دي ویل سوي دا دحیواناتو سره په یو غټ صفت کي شریکان دي چي هغه صفت غفلت دئ غفلت دبته وایی چي الله سبحانه دسړي دزړه او دماغ څخه وویستل سي :

**قَالُوْا اِنَّمَا اَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِیْنَ، مَا اَنْتَ اِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا ( الشعراء۱۵۳/۱۵۴)**

**تشریح** دلته واو نسته ولی کمال اتصال دئ دوهمه جمله داولی جملې دپاره تاکید لفظي ده، المسحرین: مسحر دسَحَر څخه دئ سَحَر په عربي کي هغه سړي ته وایي چي خوراک او څښاک کوي انما انت من المسحرین: ته نه یې مګر دهغه خلګو څخه یې چي تاته خوراک څښاک درکول کیږي یعني تاکل وتشرب نو ګویا کي دوی وویل انما انت بشر مثلنا تأکل وتشرب:

مَاانت الا بشر مثلنا: دا جمله بعینه دانما انت بشر مثلنا تأکل وتشرب معنی ورکوی لهذا ددواړو جملو معنی یوه ده نو داتاکید لفظي سو نو کمال اتصال راغلی چي کمال اتصال راغلی نو واو نه راغلی:

**قَالُوْا اِنَّمَآ اَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِیْنَ: وَمَآ اَنْتَ الا بَشَرٌ مِثْلُنَا ( الشعراء ۱۸۵/۱۸۶)**

**تشریح:** دلته من المسحرین دسحر څخه دئ یعني ته نه یې مګر دمسحرین څخه په تا جادو سوی وما انت الابشر مثلنا ته نه یې مګر زموږ په مثال یو بشر یعنی زموږ رکم سړی یې دا دواړه مضمونان سره جلا سوه نو من وجه انفصال راغلی دوی به ویل ته زموږ رکم سړي یې مګر دا ته چي نابلده خبری کوې ناشدي خبري کوي دا په تا جادو سوی عقل به ورته متوجه سي جادو به لیري کړئ اتحاد به راسي دواړه به بشر مثلنا

کړي ولی من المسحرين هم بشر دئ صرف جادو په سوی عقل به جادو ليري کړي خالی بشر به پاته سي:
علمي نکته غلام سه، غلام دالله سه غلام دالله دپاره سه: دنبی په طرز غلام سه يعنی خپلي طريقې به نه چلوې هغه طريقه چي نبي يې چلوی په هغه طريقه به ځي:
**إِذْ قَالُوا لَيُوسُفُ وَأَخُوهُ أَحَبُّ إِلَىٰ أَبِينَا مِنَّا وَنَحْنُ عُصْبَةٌ إِنَّ أَبَانَا لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ (يوسف ٨)**

اجمالا ترکيب: ليوسف واخوه مبتداء، احب الی ابينا منا ونحن عصبة: خبر بيا دا ټوله جمله اسميه مقوله دقالوا، ان اباناً لفی ضلال مبين: اباناً: اسم دانَّ لفی ضلال مبين دا جمله عطف نه سوه پر ليوسف واخوه احب الی ابيناً منّاً باندي ځکه دلته کمال انقطاع ده جهة جامعة نسته ولی په اوله جمله کي مسند اليه لَيُوسُفُ وَأَخُوهُ دئ، په دوهمه جمله کي مسند اليه أَبَانَا دئ په اوله جمله کي مسند أَحَبُّ دئ، په دوهمه جمله کي مسند ضلالٍ مبين دئ:
**اُقْتُلُوا يُوسُفَ او اطْرَحُوهُ (يوسف ٩)**:
**تشريح:** دا جمله پر ليوسف واخوه احب الی ابينا منا: باندي عطف نه ده ولی مخته جمله اسميه خبريه ده او دا جمله فعليه انشائيه ده: دخبريې او انشائي په مابين کي کمال انقطاع وي: دا اِطْرَحُوهُ جمله عطف ده پر اقتلوا باندي ولی دواړي انشاء دي لفظا ومعنا جهة جامعة نسته فائده: عطف په اَوْ، ثم، حتی، فاء:
**فائده:** عطف په او، ثم، حتی، فاء، جهة جامعة نه غواړي:
**يَخْلُ لَكُمْ وَجْهُ أَبِيكُمْ**: يخل جواب دامر دئ، ، لکم متعلق تر يخل: وجه ابيکم دا به فاعل سي د يخل، وَتَكُونُوا مِنْ بَعْدِهِ قَوْمًا صٰلِحِينَ، دا جمله عطف ده پر يخل باندي دوجهُ أَبِيكُمْ څخه مراد يعقوب عليه السلام دئ، دتکونوا دواو څخه مراد زامون ده دي:

جامع ددوی په مابین کي تقابل دتضایف دئ:

**فائده:** په افعال ناقصه کي مسند خبر ددغو افعالو وي، دیخل مسند او دقوما صالحین مسند په ما بین کي مناسبت دعلت او معلول دئ، دوی خبري دي زوی صالح کیدل دپلار ورته توجه کیدل دا دواړه علت او معلول دي چي زوی صالح سي نو پلار ورته متوجه سي:

**قَالَ قَآئِلٌ مِنْهُمْ لَا تَقْتُلُوْا يُوْسُفَ وَاَلْقُوْهُ** (يوسف ١٠)

**تشريح:** دا جمله پر يَخْلُ نسی عطف کیدای ځکه دا جمله جواب دامر نه ده پاته سو يخل او يخل جواب دامر دئ دا جمله پر اُقْتُلُوْا نسي عطف کیدای ځکه یوه خبریه ده بله انشاء ده، دا جمله پر اِنَّ اَبَانَا عطف نه ده ولی اِنَّ ابانا مقوله ده دقالوا او زه نه غواړم چي دا مقوله سي که چیري مقوله سي نو دامعنی قالوا: دوی وویل یوسف او ورور دیوسف ډیر محبوب دئ زموږ وپلار ته ترموږ حال چي موږ قوتناکه ډله یو واقع زموږ پلار پر خطا دئ، او دوی وویل قَالَ قَآئِلٌ یو سړی پخوا ویلي وه او دوی دی نه وایي، دا جمله پر لیوسف واخوه عطف نه ده ولی لیوسف واخوه مقوله ده دقالوا او زه نه غواړم چي دا مقوله سي، داجمله پر لَقَدْ كَانَ فی یوسف باندي نسي عطف کیدای ولی دا جمله خبریه ده او لقد کان فی یوسف دا جمله انشاء ده داجمله پر یوې جملې نه سوه عطف نو فصل دئ شبه دکمال اتصال ده وروښه چي سره کښیناسته اقتلوا یوسف تاسو یوسف قتل کړئ یا یوسف په ځمکه کي یو ځای وغورځوئ نو دپلار مخ به تاسو ته سي تاسو به دپلار مخته ښه خلک سي:

پوښتنه ورځخه پیدا سوه چي یوه داخبره وکړه دا نورو څه جواب ورکړئ نو یوه سړی ددوی څخه وویل قَالَ قَآئِلٌ مِنْهُمْ لَا تَقْتُلُوْا يُوْسُفَ:

**فائده:** هر ځای که قصه شروع سوه او دقصې په منځ کي قَالَ راغلی بس داشبه دکمال اتصال ده جواب دسوال مقدر دئ **مثال قوله تعالی قَالَ لَهُ مُوسٰی هَلْ اَتَّبِعُكَ عَلٰی**

اَنْ تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمْتَ رُشْدًا ، قَالَ اِنَّکَ ، قَالَ سَتَجِدُنِیْ ، قَالَ فَاِنِ اتَّبَعْتَنِیْ ، قَالَ اَخَرَقْتَهَا ، قَالَ اَلَمْ اَقُلْ ، قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِیْ ، قَالَ اَقَتَلْتَ ، قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّکَ ، ( الکهف له ٦٦ تر ٧٥)

لَا تَقْتُلُوْا يُوْسُفَ وَاَلْقُوْهُ : (يوسف ١٠)

تشريح: دالقوه جمله عطف ده پر لا تقتلوا باندي دواړي جملې انشاء دي دجهة جامعة دلا تقتلوا فاعل واودئ، دالقوه فاعل واو دئ دلا تقتلوا مفعول يوسف دئ، دالقوه مفعول هم يوسف دئ پاته قتل او القاء سو ددوی دواړو په مابين کي مناسبت دسبب او مسبب دئ :

قَالُوْا يَا اَبَانَا مَالَکَ لَا تَأْمَنَّا عَلٰى يُوْسُفَ وَاِنَّا لَهٗ لَنَاصِحُوْنَ ، (يوسف ١١)

دلته شبه دکمال اتصال د مختبه فائدې مطابق :

اَرْسِلْهُ مَعَنَا: (يوسف ١٢)

تشريح: دلته شبه دکمال اتصال ده جواب دسوال مقدر ده يعقوب عليه السلام دوی ته وويل څه وکړم دوی ورته وويل اَرْسِلْهُ مَعَنَا ته دی واستوه زموږ سره

قَالَ اِنِّیْ لَيَحْزُنُنِیْٓ اَنْ تَذْهَبُوْا بِهٖ وَاَخَافُ (يوسف ١٣)

تشريح: دلته شبه دکمال اتصال ده دَاَخَافُ جمله عطف ده پراِنِّیْ لَيحزننی باندي دخوف او دحزن په مابين کي مناسبت دسبب او مسبب دئ خوف دحزن دپاره سبب دئ په اِنِّیْ لَيَحْزنني کی مسند اليه يعقوب عليه السلام دئ داخاف مسند اليه يعقوب عليه السلام دئ نو جهة جامعه پيدا سو

قَالُوْا لَئِنْ اَکَلَهُ الذِّئْبُ (يوسف ١٤) :

تشريح : شبه دکمال اتصال ده

فَلَمَّا ذَهَبُوْا بِهٖ وَاَجْمَعُوْٓا اَنْ يَّجْعَلُوْهُ فِیْ غَيٰبَتِ الْجُبِّ (يوسف ١٥) :

تشريح: داجمعوا جمله عطف ده پر ذهبوا باندي ددواړو فاعل واو دئ جامع په مابين دذهب او اجماع کي سبب او مسبب دئ :

**فائده**: کله کله عرب غونډه درسته قصه عطف کړي پر بلي قصې باندي نو عرب وايي عطف دقصې پر قصې دئ عطف دقصې پر قصې باندي دوه محله لري یو محل که خبر عطف پر انشاء انشاء عطف پر خبر دې ته هم عطف دقصې پر قصې وايي دوهم محل که ددواړو مضمونان سره جلا وه بيا عطف وسو دېته هم عطف دقصې پر قصې وايي، خو شرط پکښي دادئ چې را روان مضمون به ددواړو یو وي خو صرف دقصې مخ به اوښتي وي:

وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ لَتُنَبِّئَنَّهُمْ بِأَمْرِهِمْ هٰذَا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ : مخکښي کارونه ټوله ددوی وه اوس دقصې مخه را واوښته دالله او ديوسف وخواته په جاءوا کی بیرته دوی دي هر ځای که داسي ځای راغلی يعني واو قصه راغلی نو بيا دمناسبت کوشش مه کوه دخبري خلاصه دا ده واو درې قسمه دئ۱-: واو حاليه ۲ -: واو وصليه ۳ -:واو قصه ۴ واو استنافيه،واو استنافيه جواب دسوال مقدر وي عند البيان نو په دې صورت کي شبه دکمال اتصال ده اوس وَأَوْحَيْنَا ته نسي عطف کوای پر يجمعوا فاعل دوی دي د أَوْحَيْنَا فاعل الله دئ ددې دواړو په مابين کي هيڅ مناسبت نسته: په ان يجمعوا کي اجماع ده په اوحينا کي وحي ده ددې دواړو هيڅ مناسبت نسته يا دلته واو حاليه دئ صرف قَدْ پر داخل کړه أَيْ وَقَدْ أَوْحَيْنَا أَنْ يَجْعَلُوهُ فِيْ غَيٰبَتِ الْجُبِّ: دلته ايجاز دئ ايجاز ديته وايي قصه را روانه ده په مابين دقصی کي یوه ټکړه پورته سوه، ماته ګوره قران داسي وايي دوی فيصله وکړه پر دې چي يوسف په کډي کي غورځوو بيا يی پر دې فيصله عمل وکړئ په کډي کی يی وغورځوی چي وي غورځوی الله وايی په دغه وخت کي ما وحيی ورته کړې وقد اوحينا: دا عبارت په هغه محذوفه عبارت کي ضمير دئ راجع دئ يوسف عليه السلام ته دهغه ضمير څخه حال دئ دا دمذکور عبارت څخه حال نه دئ:

وَجَاءُوا أَبَاهُمْ عِشَاءً يَبْكُونَ (يوسف ١٦)

**تشريح**: بيا ددوی قصه شروع سوه دا جمله دذَهَبُوا او دأَجْمَعُوا سره وصل ده قاعده: زه متکلم يم ته مخاطب يې ما تاته قصه راخيسته وايم دی يې وکړه بيا يې دی

وکړه بيا يې دی وکړه نو دماغ دده کارونه خپله راتوله وي ګوره يوسف يې را ويستی، بيا يې فيصله پروکړه، هغه فيصله دا ده ويل په کډي کي يې غورځوو، بيا يې په کډي کي وه غورځوی بيا راغله پلار ته ماخستن ژړل يې ګوره دماغ دا کارونه خپله راتوله وي بس دومره اقتران کافی دئ، :

قَالُوْا يٰٓاَبَانَآ اِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ وَتَرَكْنَا (يوسف١٧) :

تشريح: ذلته شبه دکمال اتصال ده دقاعده مطابق، وَتَرَكْنَا دا جمله عطف ده پر ذَهَبْنَا باندي مسند اليه ددواړو متحد دئ جامع په مابين دمسندينو کي تضاد دئ ولی دوی چي بيولې نو حرکت وو او دوی چي پريږدي نو سکون وو حرکت او سکون سره متضاد دي :

فَاَكَلَهُ الذِّئْبُ دا جمله عاطفه ده خو دلته عطف په فاء سره دئ او دا مناسبت نه غواړي:

وَمَآ اَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَّنَا دلته واو حاليه دئ وَلَوْ كُنَّا صٰدِقِيْنَ دلته واو وصليه دئ او واو وصليه حالی دئ ربط نه غواړي:

وَجَآءُوْا عَلٰى قَمِيْصِهٖ بِدَمٍ كَذِبٍ (يوسف ١٨)

تشريح: دا جمله مورد عطف کوو پر جَآءُوْٓا اَبَاهُمْ باندي قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ دلته شبه دکمال اتصال ده دمخته فائدي مطابق :

وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ (يوسف ١٨) بيا قصه واوښته :

اِنَّهٗ لَيْسَ مِنْ اَهْلِكَ اِنَّهٗ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ ( هود٤٦)

تشريح: انه عمل غير صالح دا جمله عطف نه ده پر انه ليس من اهلک باندي ولی دلته شبه دکمال اتصال ده جواب دسوال مقدر دئ هغه سوال دادئ نوح وايي ولی زما داهل نه دئ خو زما زوی دئ جواب ورکول سو چي نن داهليت بنياد حسب دئ نسب نه دئ يعنی دی خاوند دداسي عمل دئ چي بيکاره دئ يعني زه چي وايم دی ستا

داهل څخه نه دئ مراد ستا داهل هغه څوک دئ چي ما تاته وعده درکړې په نجات ددوی کي ولی دی کافر دئ :

خو دا تاکید لفظي هم دئ ، تاکید لفظي دارکم جوړېږي انه لیس من اهلک دی ستا داهل نه دئ وهم وسو چي داخبره به اتکلن سوي وي انه عمل غیر صالح ددي اتکل دفعه وسوه په دې ایت سره چي داخبره اتکلن نه ده ولی داراومدار داهل پر عمل صالح ده :

فَلَا تَسْئَلَنَّ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ دانشاء عطف پر خبر باندی په فاء سره پر وانه لري:

اِنِّیْ اَعِظُكَ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ :

تشریح: داجمله عطف نه سوه الله پاک واونه راوړي ځکه دلته کمال انقطاع ده یوه خبریه ده بله انشاء ده دخبراو انشاء په مابین کي کمال انقطاع وي :

اَلْقَارِعَةُ مَا الْقَارِعَةُ وَمَا اَدْرٰىكَ مَا الْقَارِعَةُ . يَوْمَ يَكُوْنُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوْثِ (القارعة له ا تر ۴)

تشریح: یوم یکون الناس دا جمله پر مخکنی جمله باندي عطف نه سوه ولی دلته شبه دکمال اتصال ده جواب دسوال ده واو دسوال او جواب په مینځ کي نه ارځي عام تر دي سوال مذکور وي که مقدر وي :

وَاَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ مَا اَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ فِیْ سِدْرٍ مَّخْضُوْدٍ (الواقعة ۲۷/ ۲۸)

ای هم کائنون فی صدر مخضود

وَلَا تَخَافِیْ وَلَا تَحْزَنِیْ اِنَّا رَآدُّوْهُ اِلَيْكِ وَجَاعِلُوْهُ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ( القصص ۷)

تشریح لاتحزنی عطف ده پر لا تخافی باندی ولی دواړي انشاء دي، اِنَّا رَادُّوْهُ دا جمله نسي عطف کیدای پر لا تخافی ولا تحزنی باندی ولی کمال انقطاع ده یوه انشاء ده بله خبریه ده :

وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيٰنِ قَالَ احدهما (یوسف ۳۶)

**ترجمه:** او نتوتل له ده سره په زندان کښې دوه ځوانان: نو بیا ګوره شبه دکمال اتصال ده وویل یوه له دي دوارو وَقَالَ الآخَرُ : دا جمله عطف ده پر قَالَ اَحَدُهُمَا باندي قَالَ قالَ سره برابر دي احدهما اوالاخر سره برابر دي جامع ددوي دوارو په مابین کي صداقت دئ نَبِّئْنَا بِتَأْوِيْلِهِ دلته کما انقطاع ده ولی یوه خبریه ده بله انشاء ده اِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ:

**تشریح:** دا جمله نه سوه عطف پر نبئنا بتأویله باندي ولی یوه انشاء ده بله خبریه ده:

وَلَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُنَا اِبْرَاهِيْمَ بِالْبُشْرٰى قَالُوْا سَلٰمًا قَالَ سَلٰمٌ فَمَا لَبِثَ (هود ٦٩)

تشریح: قال سلم دا جمله عطف نه سوه ولی دلته شبه دکمال اتصال ده جواب دسوال مقدر ده ملائکه په شکل دانسانانو راغلی وابراهیم علیه السلام ته په داسي حال کي چي زیری کوونکی وه وابراهیم او دده بی بی ته چي ستا سو زوی به پیدا کیږي نوم به یې اسحاق وي بیا به داسحاق زوی پیدا کیږي نوم به یې یعقوب وي نوملائکو ورته سَلَامًا سلام اچوو پر تاسي اوس سوال پیدا سو ابنه ابراهیم علیه السلام به څه ویلي وي نو ابراهیم علیه السلام وویل قَالَ سَلَامٌ ، سلام دي وي پر تاسی:

وَمَا اُبَرِّئُ نَفْسِيْ اِنَّ النَّفْسَ لَاَمَّارَةٌ بِالسُّوْءِ (یوسف ٥٣) :

**تشریح:** اِنَّ النفس لامارة بالسوء دا جمله عطف نه سوه پر ماقبل جملې باندي ځکه دا جمله جواب ده دسوال مقدر هغه سوال داولی جملې څخه پیدا دئ :

سوال دادئ لِمَ لا تُبَرِّئُ نَفْسَكَ ولی ته خپل نفس نه پاکوې نو ده ورته وویل ان النفس لامارة بالسوء واقعی نفس ډیر امر کوونکی دئ په بدی سره :

فَمَهِّلِ الْكٰفِرِيْنَ اَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا (الطارق ١٧) :

تشریح: دلته کمال اتصال دئ ولی دوهمه جمله داولی جملې دپاره تاکید لفظي ده نو ځکه عطف نه راغلی :

فَلْيَضْحَكُوْا قَلِيْلًا وَلْيَبْكُوْا كَثِيْرًا (التوبة ٨٢) :

تشریح دوهمه جمله عطف سوه پر اولی جملې باندي ځکه دواړه انشاء دي مسند الیه په دواړو کي متحد دئ مسندین او قید ونه دمسندینو متقابلین دي :

يُسَبِّحُ لَهُ فِيهَا بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ : ( النور ٣٦)

تشریح: دلته شبه دکمال اتصال ده ځکه دا جواب دسوال ده هغه سوال چي را پیدا دئ دماقبل څخه نو ځکه دوهمه جمله عطف نه سوه :

وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً ( النمل ٨٨)

تشریح: دلته دوهمه جمله عطف نه سوه پر اولی جملې باندي ولی کمال اتصال دئ ځکه دوهمه جمله بدل اشتمال ده داولې جملې څخه

## یو سل او پنځویشتم سبق تذنیب فی الحال

( تذنیب) تذنیب په لغت کي جعل الشئ ذُنابة للشئ یوشی اخیر ګرځول دشی اخر په اصطلاح کي تذنیب علم ګرځیدلی دهغه کلام دپاره چي هغه راځي په اخیر دمقصود کي او مرتبط وي دماسبق سره لیکن دماسبق څخه اجمالا معلوم سوی نه وی ځکه که معلوم سی دماسبق څخه اجمالا هغه ته تنبیه وایی په دی باب کی موږ ته دارابنو وی کله به واو دعطف دپاره وي. کله به واو حالیه وي.

(اصل الحال المنتقلة ان تکون بغیر واو لانها فی المعنی حکم علی صاحبها کالخبر ووصف له کالنعت حال مؤکده دیته وایی دایو جمله ده په دی جمله کی یو مضمون تیر سو او دا مضمون متعین دی وروسته جمله دا مضمون پخوی دیته حال مؤکده وایی مثال﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا﴾ الخ دلته حقا حال مؤکده دی په مخکی جمله کی یو مظمون تیر سوی حَقًا هغه مضمون پخوی. حال منتقله دیته وایی چي په مخکی جمله کی یو مضمون وی هغه مضمون محتمل وی وروسته حال احتمال ختم کړی مثال جاءنی زید ما ته راغلی زید. دلته دا احتمال سته چی زید دی حافیا راغلی وي دا احتمال سته

چي زيد دي متنعلا راغلی وي دا احتمال سته چي زيد دی راكبا راغلی وی. چي جاء نی زيد راكبا وويل سو احتمالات ختم سوه :

**قاعده**: په حال مؤكده كی واو نه راوړل كيږي مثال زيد ابوک عطوفا. دلته عطوفا حال مؤكده دی. ( **اصل الحال المنتقلة ان تكون بغير واو** ) اصل په حال منتقله كی دادی چي بغير دواو به وی:

**فائده**: حال، وصف، خبر دادری سره سوی دی ځكه خبر دمبتداء يو وصف بيانوي. صفت دموصوف وصف بيانوي. حال دذوالحال وصف بيانوی. كم شی چي ديو شی وصف بيانوی نودی به ورباندي حمل وی په وصف كي واو راوړل په خبر كي واو راوړل نا جائز دی ځكه وصف دموصوف سره شدة لصوق لري. خبر دمبتداء سره شدت لصوق لري.

ښه خبره داده چي په حال كی واورانسي ځكه حال ددوی سره يو ركم دی په شدة لصوق كي مبتداء. موصوف. ذوالحال. په مرتبه كی دجواهرو دي حال، وصف، خبر په مرتبه داعراضو دی. مبتداء. ذوالحال موصوف په مرتبه كی دموضوع دی حال. وصف خبر په مرتبه دمحمول كي دی. مبتداء ذوالحال موصوف بلا تشبيه لكه حمارا. وصف. حال. خبر بلا تشبيه لكه بارونه. دحال او دوصف معنًی فرق دادی. حال دخپل عامل قيدي وي. وصف دخپل عامل قيد نه وی. د يو سړي عادة دپښو تګ نه وی دده تګ دراكبًا وی يعنی دده عادت راكبا وی نو ته به داسی عبارت وايی جاءنی زيدن الراكب دزيد عادت دادی چی ماته راځي سپور راځي او س په دغه وخت كي چي ماته راغلی سپور ؤ. كه نه ؤ سپور عبارت ددی ښخه خاموشه دی ځكه وصف دعامل قيد نه وی.

وصف دمتبوع قيد وی: دحال په صورت كی **جاءنی زيدٌ راكبًا** ما ته زيد راغلی په دسی حال كی چي سپور ؤ. پاته سو دزيد عادت راكب دی كه نه دی راكب عبارت ددی ښخه خاموشه دی ليكن مجيئت يې په شكل كي دركوب دي. كه چا سوال وكړي چي دحال او دوصف ترجمه وكړه نو ته به ورته ووايی زيد چی ماته راغلی نو سپور ؤ داحال دی مثال جاءنی زيد راكبًا: دصفة ترجمه دزيد عادت داوی چی دی ماته سپور راځي. دوصف. اودحال. او دخبر فرق دادی. وصف او حال هغه اشياء دي چي نسبة

ودوی ته احتیاج نه لری. په خبر کي نسبة ده ته محتاجه وی. یعنی په وصف او په حال کی سکوت به غیر دحال او وصف صحیح کیږي. لیکن به غیر دخبره سکوت نه صحیح کیږي. (**لانها**: ای الحال. حال مؤنث سماعي دي جائز التانیث (**لانها فی المعنی حکم علی صاحبها**) حال په معنی کي داسي دی لکه ته چي په ذوالحال حکم لګوی (**کالخبر**. لکه خبر. (**ووصف له**: حال: په معنی کي وصف دی خپل صاحب لره (**کالنعت**. لکه نعت. (**لکن خولف اذا کانت الحال جملة فانها من حیث هی جملة مستقلة بالافادة فتحتاج الی ما یربطها بصاحبها**) جمله من حیث هی مستقله ده بالافادة دماقبل سره هیڅ تعلق نه لری عام تر دی جمله اسمیة وی. که فعلیة وي. لیکن که هر وخت جمله حال واقع وه دماقبل څخه نو خامخا به رابط وی ددی دپاره چي دجملي دماقبل ذوالحال سره ربط راسي. دغه رابط عام دی کله به واووی. کله به ضمیر وی. (**لکن خولف**. لیکن دا اصل مخالف دی. (**اذا کانت الحال جملة**) هغه وخت که حال جمله واقع وه (**فانها من حیث هی مستقلة بالافادة**) جمله داسي جمله چي حال واقع وی من حیث هی مستقله ده بالافادة (**فتحتاج**. احتیاج لري هغه جمله چي حال واقع وي (**الی ما**. هغه تړونکی ته (**یربطها بصاحبها**) چی جمله تړی دخپل ذوالحال سره (**وکل من الضمیر والواو صالح للربط**: هریو دضمیر او دواو صالح دی دربط (**والاصل هو الضمیر**) اصل ضمیر دی (**بدلیل المفردة والخبر والنعت**) قزوینی دلیل وایي ډیر ځایونه واو نه وی لیکن ضمیر وي لکه مفرد چي حال واقع سي نو هلته ضمیر وي واو نه وی یا خبر جمله واقع سي: یا صفت جمله واقع سي. مفرد چي حال واقع سي ضمیر وي. واو نه وی (**فالجملة ان خلت عن ضمیر صاحبها وجب الواو**) که په جمله کي ضمیر نه ؤ بیا واو راوړل واجب دی. (**وکل جملة خالیة عن ضمیر ما یجوز ان ینتصب عنه حال**) هره جمله داسی جمله چي خالی وي له ضمیره دهغه اسم هغه اسم چي جائز دی چي دده څخه حال

واقع سی. (يصح ان تقع حالا عنه بالواو) صحيح کيږي چي دغه جمله دی حال واقع سي دده څخه په واو سره (الا المصدرة بالمضارع المثبت) هغه حال چي په سر کي مضارع مثبت راغلی وي مثال ولا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ. په لا تَمْنُنْ کي انت ضمير دی دلته تستکثر حال دی دانت ضمير څخه. دلته واو راوړل نا جائز دی. ځکه تستکثر مضارع مثبته ده. (الا مصدرة مگر نه دی صحيح (المصدرة هغه جملة خبريه چي مصدره وی. (بالمضارع المثبت په مضارع مثبت سره نحو جاءنی زيد ويتكلم عمرو لِما سيأتي. (والا) دلته الا عطف ده پر دي قول اِنْ خلت نو دا معنی که چيری جمله حاليه خالی نه وه دذوالحال دضمير څخه (فان كانت فعلية. که چيري فعليه وه (والفعل مضارع مثبت) فعل مضارع مثبت ؤ (امتنع دخولها) منع دی دخول دواو (نحو قوله تعالى ولا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ (لان الاصل فى الحال هى الحال المفردة) ځکه اصل په حال کي حال مفرده دی ځکه مفرد اصل دی په اعراب کي (وهي دا مفرده (تدل. دلالت کوی (على حصول صفة غير ثابتة پر حصول دصفة داسي صفة چي غير ثابت وي .(مقارن: مقارن دی دغه حصول (لما جعلت قيدًا له : ځکه حال قيد دی دعامل (وهو كذالک) دغه مضارع مثبت (كذالک. هم دارنگه دلالت کوی پر حصول دصفة چي غير ثابت دی مقارن دی دغه حصول ځکه دا قيد گرځيدلی دی دخپل عامل. قاعده په حال مؤكده کي واو ممتنع دی. په حال مفرده کی واو نا جائز دی که مضارع مثبته حال واقعه سوه واو ناجائز دی لکه اِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَاءُ فَاقِعٌ لَوْنُهَا تَسُرُّ النَّاظِرِيْنَ) تسر الناظرين صفة دی دبقرة:

**قاعده:** صفة چي جمله واقع سی واو نه راځي علامه تفتازني وايی صفة به جمله واقع وی ليکن واو به وی مثال وَمَا اَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ اِلَّا وَلَهَا مُنْذِرُوْنَ. دلته ولها منذرون صفت دی دقريةٍ دپاره بناء بريو قول.

دموصوف او صفة په مینځ کی لصوق وی. که دموصوف او صفة په مینځ کي واو راغلی نو دا واو شدة لصوق فائده کوی:

## یوسل او شپږویشتم سبق

( اما الحصول فلکونه فعلا مثبتًا ) اما الحصول . دلالت دمضارع پر حصول دصفت داسي صفت چي غیر ثابت دی (فلکونه فعلا ځکه دا فعل دی نو دلالت کوی پر تجدد نه پردوام ( مثبتا. نو دلالت کوی پر حصول ( واما المقارنة فلکونه مضارعا ) دلالت دمضارع پر مقارنة ځکه دا مضارع ده .( واما ما جاء من نحو قُمْتُ واصکُّ وجهه وقوله شعر فلما خشیت اظافیرهم + نجوت وارهنهم مالکا) سوال تاوویل مضارع مثبت چي حال واقع سي واو نا جائز دی زه به دروښیم مضارع مثبته به حال واقع وی سره دواو مثال لک واصک. واصک مضارع مثبته ده حال واقع ده دقمت دضمیر څخه مع الواو : وارهنهم مضارع مثبته ده حال واقع ده دنجوت دضمیر څخه مع الواو ( فقیل علی حذف المبتداء ای وانا اصک وانا ارهنهم یو جواب دادی چي دلته مبتداء حذف ده نو جمله اسمیة ده او حال دادی جمله اسمیة چي حال واقع سي نو واو او ضمیر دواړه جائز دی واصک وارهنهم په اصل کی وانااصک وانا ارهنهم ؤ. ( وقیل الاول شاذ والثانی ضرورة دوهم جواب دادی. اول چي قمت اصک وجهه دی دا شاذ دی. دوهم چي نجوت وارهنهم دی دا جائز دی دضرورت شعري دوجي ( وقال عبدالقاهر هی فیهما للعطف والاصل صککت ورهنت عدل الی المضارع لحکایة الحال دریم جواب دادئ عبدالقاهر وایی واو په دواړو مثالو کي دعطف دئ واصک وارهنهم په اصل کي صککت ورهنت ؤ، او دا دواړه ماضیة دی لیکن عدول وسو مضارع ته ددی دپاره چي حکایة وسی دحال ماضیة ( وان کان منفیا فالامران جائزان الواو وترکه ) که چیري فعل مضارع منفیه وه بیا دوه امران جائز دی یعنی واو. او ترک دواو ( کقراءة ابن ذکوان فَاسْتَقِیْمَا وَلَا

تَتَّبِعنِ بالتخفيف ) لکه قراة دابن ذکوان په دي قول دخدای پاک کی فَاسۡتَقِيۡمَا وَلاتَتَّبِعنِ.

وَلاتَتَّبِعنِ : په تخفيف دنون سره نو لا نافية ده. لا ناهيه نه ده ځکه نون ثابت دی هغه نون چي علامه درفع ده ولا تتبعنِ خبرية ده. فاستقيما انشائيه ده دلاتتبعن عطف پر فاستقيما نه صحيح کيږي ځکه عطف دخبر پر انشاء نه دی صحيح. په ولا تَتَّبِعنِ کی واو للحاليه دی. فاستقيما وَلا تَتَّبِعنِ ترجمه تاسو دواړه برابر ودريږي په داسي حال کي چي اتباع مه کوی دفرعون او دهغه دملګرو. دا قراة دابن ذکوان ۆ. دوهم قراة دعام القراء دی. هغه قراءة دادی فَاسۡتَقِيۡمَا وَلاتَتَّبِعٰنِّ بالتشديد لهذا په دي صورت کی لا تَتَّبِعٰنِّ نهی مؤکده دی بنون الثقيلة. ولا تَتَّبِعٰنِّ عطف دی پر فَاستَقِيۡمَا باندي ځکه هريو انشاء ده. ( ونحو وَمَالَنَا لا نُؤۡمِنُ بِاللهِ دلته لا نُؤۡمِنُ دلنا دضمير څخه حال دی بترک الواو. په اول مثال کي واو مع الضمير ۆ په دی دوهم مثال کي ضمير سته واو نسته. ( لدلالته على المقارنة لکونه مضارعا دون الحصول لکونه منفيا) په مضارع منفی کي ولی واو او ترک الواو جائز دی ځکه دادلالت کوي پر مقارنة باندي ځکه دا مضارع ده. پر حصول دلالت نه کوي ځکه دا منفی ده. ( وکذالک ان کان ماضيا لفظا او معنیٰ هم دارنګه جائز دی واو او ترک دواو که چيري فعل ماضيه وه بيا عام تر دی فعل لفظا ومعنی ماضيه وی. که فعل ماضيه وي معنى فقط (کقوله تعالى اَنّٰى يَكُوۡنُ لِىۡ غُلٰمٌ وَّ قَدۡ بَلَغَنِىَ الۡكِبَرُ بالواو) دلته وقد بَلَغَنِىَ الكبرُ ماضيه مثبته ده لفظا ومعنى ليکن وقد بَلَغَنِىَ الكبرُ جمله حاليه مع الواو ده.

(وقوله تعالى اَوۡ جَآءُوۡكُمۡ حَصِرَتۡ صُدُوۡرُهُمۡ ) ای قد حصرت صدورهم دلته قد حصرت صدورهم ماضيه مثبته ده لفظا ومعنى ليکن قَدۡ حَصِرَتۡ صدورُهم جمله حالية بدون الواو ده. ماضيه معنى فقط. مراد دماضيه معنى څخه هغه مضارع منفی ده چي منفی

په لَمْ اولَمَّا سره وی ځکه دا دواړه معنی دمضارع اړه وي وماضيه ته (وقوله تعالى أَنَّى يَكُونُ لِي غُلَامٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ) دلته ولم يمسسني بشر ماضيه منفية معنى بلم ده. ليكن ولم يمسسني بشر جمله حاليه مع الواو ده. (وقوله تعالى فَانْقَلَبُوا بِنِعْمَةٍ مِنَ اللهِ وَفَضْلٍ لَمْ يَمْسَسْهُمْ سوء ماضيه منفيه معنى بِلَم ده. خو لَم يَمسسهم سوء جمله حاليه بدون الواو ده. (وقوله تعالى أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ) دلته وَلَمَّا يَأْتِكُمْ الخ ماضيه منفيه معنى بِلَمَّا ده ليكن وَلَمَّا يَأْتِكُمْ جمله حالية مع الواو ده.

## يوسل اواوويشتم سبق

(اما المثبت فللدلالته على الحصول) (اما المثبت. واو راوړل. او واو نه راوړل په ماضيه مثبته كي (فللدلالته على الحصول) دا دليل دترك الواو دى: ځكه ماضيه مثبته دلالت كوی پر حصول دصفت داسي صفت چي غير ثابت دى نو ماضى مشابه سوه دحال مفرده سره نو جائز دی ترک الواو. (لكونه فعلا مثبتًا) ځكه دا فعل مثبت دى. (دون المقارنة) ماضيه مثبته پر مقارنة دلالت نه كوی نو ماضى مشابه نه سوه دحال مفرده سره نو جائز دی واو راوړل. (لكونه ماضيا) ځكه دا ماضيه ده. (ولهذا اى لعدم دلالة الماضى على المقارنة) له دی وجی چي ماضيه دلالت نه كوی پر مقارنة دحال (شرط ان يكون مع قد ظاهرة او مقدرة) شرط سو دا چي ماضيه به سره دقدوی: قد كله ظاهر وی كقوله تعالى وَقَدْ بَلَغَنِيَ الْكِبَرُ. قد كله مقدر وی كقوله تعالى حَصِرَتْ اى قَدْ حَصِرَتْ. كه ته سوال وكړي چي قد ولی شرط سو دماضى سره جواب قد په ماضى كى شرط سو ځكه ماضى حال ته را قريب كړي (واما المنفى: يعنى جواز دامرينو چي اتيان بالواو دى. ترك بالواو دى (فللدلالته على المقارنة) ځكه ماضى منفى دلالت كوی پر

مقارنة باندي دلته ترک الواو جائز دی ځکه دا مشابه دی دحال مفرده سره **( دون الحصول )** ماضی منفی پر حصول دلالت نه کوی دلته واو راوړل جائز دی ځکه دا مشابهت نه لري د حال مفرده سره .

**( اما الاول فلانّ لمّا للاستغراق)** **( اما الاول.** دلالت دماضی منفی پر مقارنة **( فلانّ لمّا للاستغراق)** ځکه لما داستغراق دپاره ده په حسب دوضع یعنی لما چي کمه معنی په کم وخت کي نفی کړه دهغه وخت څخه بیا تر زمانی دتکلم پوري به نفی وي . یعنی دا ټول وخت لما را استیعاب کړی **( وغيرها)** غیر دلما لکه لم . وما . **( لانتفاء مقدم)** مخکی نفی کوی تر زمانی دتکلم پوري **( مع ان الاصل استمراره)** سره ددی چی اصل دادی چی دغه نفی **مُسْتَمِر**وی دتکلم تر وخت پوري **( فيحصل به الدلالة عليها عند الاطلاق)** په نفی سره حاصلیږي دلالت پر مقارنة چي وویل سي . **( بخلاف المثبت)** مثبت پر مقارنة دلالت نه کوي **( فأن وضع الفعل على افادة التجدد)** ځکه وضع دفعل ددي دپاره ده چي افاده دتجدد وکړي. مثال ته ووایی **ضَرَبَ** اوس دا کافی دی په صدق کي چي ضربَ واقع دی په یو جز داجزاء دماضی کی یعنی ماضی مثبته استغراق نه فائده کوی . که یو سړي ووایی ما ضرب اوس دا فائده کوی استغراق دنفی ټولو اجزاء دزمانی دماضی ته **( لكن لا قطعيا بخلاف لمّا** ځکه لما دا فائده کوی قطعا **( وتحقيقه )** تحقیق ددغه کلام دادی **ان استمرار العدم لا يفتقر الى سبب )** واقع استمرار دعدم احتیاج نه لري وسبب ته **( بخلاف استمرار الوجود)** په خلاف داستمرار دوجود ځکه دا محتاج دی وسبب مؤثر ته .

## یوسل او اتویشتم سبق

**( وان كانت اسمية فالمشهور جواز تركها بعكس مامرّ فى الماضى المثبت نحو كَلّمْتُهُ فوه الى فىّ)** ټول هغه صورتونه چي مخکی په تفصیل باندی ذکر سوه هغه په جمله فعلیه کی

وه. كه جمله اسميه حال واقع سی نو مشهوره په نيز دعلماء العرب جواز دترک الواو دي دوجی دعکس دهغه دليل چي په ماضی مثبته کي تيرسو. جمله اسميه من وجه مشابه ده دحال مفرد سره. من وجه مشابه نه ده دحال مفرد سره.
دا جمله اسميه دلالت کوی په مقارنت باندی ځکه دا جمله اسميه دلالت کوی پر دوام اوثبوت باندی لهذا په دی صورت کی جمله اسميه مشابه سوه دحال مفرد سره نو دا غواړی سقوط دواو. جمله اسميه پر حصول دصفة غير ثابتة دلالت نه کوی پر دوام او ثبوت دلالت کوی جمله اسميه پر حصول دصفة ثابتة دلالت کوی په دی صورت کی جمله اسميه مشابه نه ده دحال مفرد سره نو داغواړی وصل دواو. **نحو كلّمته فوه الى فیّ.** ما خبری وکړي دزيد سره په داسی حال کی (**فوه**. چي خوله دده (**الى فیّ.** زما دخولی سره وه ترکيب (**فوه**. مضاف او مضاف اليه مبتداء (**الى فیّ.** په اعتبار د**متعلّق** خبر دا جمله حال ده دتاء ځخه تقدير دعبارت **كلمته فی حال كونی مشافها له.** دا هم صحيح کيږی چي جمله حال سی دهاء ځخه تقدير دعبارت **كلمته فی حال كونه مشافها لی.** داهم صحيح کيږي چي جمله حال سي دتاء او هاءدواړو ځخه تقدير ذعبارت كلمته فی حال كوننا مشافهين. دا خبره محشی کړی (**.وانّ دخولها اولى لعدم دلالتها على عدم الثبوت مع ظهور الاستيناف فيها فحسن زيادة رابط**) په جمله اسميه کي واو راوړل اولی دی ده ترک الواو نه : ځکه په جمله اسميه کي استيناف ظاهره وی يعنی جمله اسميه متستقله وی اوس چی تا په جمله اسميه کي واوراوړي نو به دا جمله اسميه په ماقبل پوري وتړل سي او استيناف به ورختم کړي او په اول وهلت کي به معلومه سي چی دا جمله حاليه ده مستأنفه نه ده :

(**وايضا المشهور ان دخولها اولى**) هم دارنګه مشهوره داده چی دخول دواو اولی دی ده ترک واو نه (**لعدم دلالتها على عدم الثبوت**) ځکه جمله اسميه دلالت نه کوی پر عدم ثبوت باندی بلکی جمله اسميه پر دوام او ثبوت دلالت کوي ځکه نفی چي پر نفی داخل

سي اثبات فائده کوی . ( مع ظهور الاستيناف فيها فحسن زيادة رابط ) په جمله اسميه کي داستيناف بوئ وی نو قوی رابط پکار دی قوی رابط نه دی مگر واو .

نحو ﴿فلا تجعلوا لله اندادا وانتم تعلمون﴾ دلته وانتم تعلمون جمله اسميه حاليه مع الواو ده دلا تجعلوا دضمير څخه. که ته سوال وکړي چي تعلمون فعل دی دافعال قلوب څخه دوه مفعوله غواړی دلته يو مفعول نسته يو جواب ددی دا دی چي دافعل په منزلة دلازمي دی نو دا معنی وانتم من اهل العلم دوهم جواب ددی دادی چي دلته مفعولان مقدر دی نو دا معنی وانتم تعلمون ماپينه وبينها من التفاوت . ( وقال عبدالقاهر ان كان المبتدأ ضمير ذي الحال وجبت نحو جاء زيد وهو يسرع او هو مسرع ) که چيري په جمله اسميه کي مبتداء ضمير دی او دغه ضمير ذوالحال ته راجع دی نو په دی صورت کی واو راړل واجب دی بيا عام تر دی په جمله اسميه کي خبر فعل دی نحو جاء زيد وهو يسرع: او که په جمله اسميه کي خبر اسم دی نحو جاء زيد وهو مسرع.

(وقال عبدالقاهر . عبدالقاهر ويلی ( ان كان المبتداء ضمير ذي الحال . که چيري مبتداء ضمير دذوالحال دی ( وجبت . واجب دی واو نحو جاء زيد وهو يسرع او هو مسرع . ( وان جعل نحو على كتفه سيف حالا كثر فيها تركها ) که چيري وګرځول سی مثل دعلی کتفه سيف حال نو په دی حال کی زيات دی ترک دواو مراد ددی ترکيب څخه هغه ترکيب دئ چي جاء، مجرور، يا ظرف مقدم وی وروسته اسم مرفوع وی او دا ټوله جمله حال وی دماقبل څخه نحو جاءنی زيد علی کتفه سيف ما ته راغلی زيد په داسی حال کی چي دزيد پر اوږه توره وه که چيری ذوالحال نکره ؤ بيا واو راوړل واجب دی ددی دپاره چي دحال التباس رانسی دصفت سره كقولک جاء رجل طويل وعلى كتفه سيف دلته واو واجب دی. که چيري واو رانسی نو بيا به صفت سی . دا خبره محشی کړي ( على كتفه سيف ) په دي جمله کی څلور ترکيبونه جائز دی ۱ ظرف په اعتبار دمتعلق خبر مقدم . سيف مبتداء مؤخره دا جمله اسميه سوه او جمله اسميه تقاضی کول دراوړل دواو . ۲ علی کتفه جار مجرور متعلق تر ثابت مقدر پوري سيف فاعل دثابت مقدر دپاره بنا پر دی

ترکیب حال مفرد دی نو تقاضی کوی دنه راوړول دواو ۳ علی کتفه جار مجرور متعلِق تر ثَبَتَ مقدر پوری سیف فاعل دثبت مقدر دپاره بنا پردی ترکیب دا جمله فعلیه ده تقاضی کوی دواو دراوړولو او دواو دنه راوړلو ۴ علی کتفه جار او مجرور ظرف سیف فاعل برای ظرف بنا پر دی ترکیب دا جمله ظرفیة ده جمله ظرفیه تقاضی کوی دواو دنه راوړلو ۵ علی کتفه متعلِق تر مضارع مقدر پوري . په علی کتفه سیف کی واو نه راوړل اولی دی ځکه دیر ترکیبونه تقاضی کوی دواو دنه راوړلو . بله وجه داولیة علی کتفه سیف دا مجموعه ده دواجب او ناروا یعنی په بعضو تراکیبو کي واو راوړل نا جائزپه بعضو تراکیبو کي واو راوړل واجب. کمه جمله چي مرکب سي دواجب او ناروا نو ترک الواو اولی دی.

(نحو اذا انکرتنی بلدة او نکرتها خرجت مع البازی علیّ سواد) کله چی بد وګڼلم ددی کلی خلکو یا ماته بد ښکاره سوه نو زه اووتلم سره دباز نه په داسي حال کي چي په ماباندي تیاره وه یعنی سهار وختی په تیاره کی ووتم ددی دپاره چي دخلګو په ماباندی نظر ونه لګی او زما په دوی باندي نظر ونه لګی . علیّ سواد حال واقع دی دخرجت دضمیر څخه واو حالیه نسته (وحسن الترک تارة لدخول حرف علی المبتداء کقوله شعر فقلت عسی ان تبصرینی کانما+ بنی حوالی الاسود الحوارد) قزوینی یو قاعده بیانوی قزوینی وائی ښه دی ترک دواو په جمله اسمیه کی دوجی ددخول دیو حرف په مبتداء باندی چي ددي حرف دوجی دجملی ربط راغلی وي دماقبل سره شاعر خپلي ښځي ته وایی (عسی. قریبه ده (اَن تبصرینی. چي ته به ما ووینی (کانما. ګویا کي (بنی . زامون زما (حوالی . شاوخوا الاسود. زمری (الحوارد غصه ناک.

ترکیب :بنی مبتدا. حوالی حال من بنی. حوالی حال دی دبنی څخه الاسود موصوف . الحوارد. صفت موصوف سره دصفت دا به خبر سي دمبتداء . مبتداء سره دخبره دا به حال سي دتبصرینی دمفعول څخه یعنی حال به سي دیاء متکلم څخه واو ورسره نسته دوجي ددخول دکانما که چیری دخول دکانما نه وای پر جمله اسمیه باندي نو بیا کلام

حسن نه ؤ مگر بالواو حسن ؤ (**واخرى لوقوع الجملة بعقب مفرد كقوله شعر والله يبقيك لنا سالما بُرداک تعظيمٌ وتبجيل**) كله ترک دواو حسن وی له دی وجی چي جمله اسميه حال واقع وي وروسته تر حال مفرده په حال مفرده کی واو نه وی نو هغه جمله اسميه چي حال واقع وی وروسته تر حال مفرده هلته واو نه راوړل حسن دی په طبعه دمفرد (**والله يبقيك**. الله دی تا ژوندی وساتي (**لنا** زموږ دپاره (**سالما**. په داسي حال کي چي ته به سالم یی دمصيبتو څخه (**برداک تعظيم وتبجيلٌ** په داسي حال کي چي ستا دوه پټوګان تعظيم دی (لوی) **فقوله بُرداک تبجيل** حال واقع دی ديبقيک دکاف څخه (**سالما** هم حال دی ديبقيک دکاف څخه . لهذا په دی جمله اسميه حاليه کی واو نه راوړل حسن دی ځکه دا جمله واقع ده وروسته تر حال مفرده . په حال مفرده کی واو نه وی نو په جمله اسميه کي به هم واو نه وی طبعا.

**دکتاب پای**

# يادونه

دهر قسم اسلامي ليکنو ، او دهغو په معياري توګه دچاپولو لپاره زموږ له اداري سره اړيکه نيولای سي! ۰۳۱۰۸۰۶۵۷۳۵

**په درنښت ستاسو ورور مولوي رحمت الله اغا «خليل ذاکري» عفی الله عنه**

۲۸-۷-۲۰۱۹م

# دمضامینو فهرست

